بسم الله الرحمن الرحيم

# بدر الفتاوى

## في الفقه الحنفي

دافغانستان د اسلامي امارت د ستري محكمې
قاضي القضاة او د مركزي دار الافتاء رئيس

مولانا مفتي نور محمد ثاقب

په مشرتابه كې

مكتبة نور القرآن
كاسي روډ۔ كوټه

# بدرالفتاوٰی

## فی الفقه الحنفي

دريم ټوک

دافغانستان داسلامي امارت دستري محكمې قاضي القضاة
او دمركزي دارالافتاء رئيس مولانامفتي

## نورمحمدثاقب

په مشرتابه كي

دافغانستان دمركزي دارالافتاء لخوا صادرشوي مسائل

مرتب

مفتي مولوی احمد «نوري ،ضيائي»

همكار

ابوخالد مولوی عبدالاحد «مجروح»

ناشر

مكتبه نور القرآن النور كتب خانه ماركيټ كاسي روډ كوټه
۰۳۲۱۲۵۸۹۶۷۳ ، فضل ربي ۰۳۰۲۸۰۶۵۱۵

## کتاب پیژندنه :-

دکتاب نوم : **بدرالفتاوی فی الفقه الحنفي** دریم ټوک
تألیف : دافغانستان داسلامي امارت د مرکزي دارلافتاء علماء
ترنظارت لاندي: دافغانستان دستري محکمي قاضی القضاة
اودارالافتاء رئیس مولانامفتي نورمحمد ثاقب
ترتیب: مفتي مولوی احمد «نوري ، ضیائي»
تصحیح اوعنوانات : مولوی عبدالاحد «مجروح»
خپرونکي: نورالقرآن خپرندویه ټولنه
النورکتب خانه مارکیټ کاسی روډ کوټه
چاپ ځای : لاهورپاکستان
دخپریدوکال: ۲۰۱۵میلادی دمارچ میاشت
دچاپ شمیر : ۱۱۰۰عدد

# ددریم ټوک فهرس

اللهم اختم لنا بالخير والسعادة والبشارة والايمان




ددعا په هیله

عبدالاحد «مجروح»

دهجرت میله پښتون آباد کوټه

بسم الله الرحمن الرحيم

## که پنځه کاله وروسته دشفعې دعوه وکړي اوداوايي چې ماپه زړه کي دشفع ناره وکړه څه حکم لري؟

**سوال**: و حضورته د دارالافتاء جناب محترم رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

محترما زه حاجی عبدالرحمن د حاجی محمد گل زوی د پنجوائی د ولسوالی د تلکان د قریه اوسیدونکی یم .عرض لرم ما دروسانو په وخت کی د کندهار د ۶ ناحیی په منطقه کښی یو باب سرای رانیولی وو ځکه زه په هغه وخت کښی پاکستان ته په هجرت تللی وم بیا چه روسان د افغانستان د پاکی خاوری څخه ولاړه زه بیرته و خپل وطن ته راستون سوم نو په داغه سرای کی می ختی شروع کړی یو دوو ۲ سپین ږیرو زما څخه پوښتنه وکړه چه داغه سرای تا په څو افغانیو رانیولی دی ما ورته وویل چه ما په ۳ لکه افغانی رانیوی دی دغه زما د سرای و بغل ته داغه سپین ږیری ویلی وه پس له یوی هفتی داغه زما د بغل سړی پر ما راپورته سو د شفعی دعوه ئی په ما وکړه زما څخه ئی هغه سرای واخیستی ځکه په هغه وخت کی شرعی نظام حاکمیت نه درلودی نو اوس چه شرعی نظام په افغانستان کی نافذ دی عدالت و مابین ته راغلی دی نو زه د خپل سرای چه زما څخه په زبردستی اخیست سوی دی د خپل حق غوښتونکی یم او په داغه مابین کی چه ده زما سرای نیولی وو ۵ کاله عمر تیر سوی وو پس له هغه ئی په ما د شفعی دعوه وکړه دهغه وخت قاضی دده څخه پوښتنه وکړه چه تا د شفعې نعره وکړه چه زه د دغه سرای شفعه یم یا دې شاهدان و درول ده وویل چه مانه ناره کړی ده او نه می شاهدان درولی دي هغه قاضی بیا ورته وویل چه په زړه کښی دي هم نعره نه وکړه یا دي په زړه کی نه دروگرځیدل چه ناره و کړی او یا شاهدان و دروی ده وویل چه هو په زړه کښی می را وگرځیدل هغه ورته وویل چه بس شفعه ستا حق ده نو بیا ما ورته وویل چه ته دغه لاری ورښه یی نو زه په تا ولی شریعت کوم؟

(حاجی عبدالرحمن)

**جواب**: کله چه یو شفیع طلب د خپلې شفع کوي نو اول واری به په هغه مجلس کی چه دی په بیع خبریږي طلب د شفع به کوي یعنی داسی یو لفظ به وايي چه ده شفع پر طلب باندي دلالة وکړی یوازی په زړه کی غوښتنه کفایت نه کوي دوهم واری به دستی راولاړیږي او د نورو شاهدانو په مخ کی به وايي چه زه دغه خپل حق د شفع غوښتونکی یم دریم واری به راځی د قاضی په مخ کی به غوښتنه د حق کوي دا نو ۳ طلبه سوه که چیری په اول طلب کی تاخیر وکړی یعنی په هغه مجلس کی چه دی په بیع خبر سوی دی غوښتنه ونکړی وروسته بل ځای غوښتنه وکړی او هیڅ مانع او عذر په اول مجلس کی نه وی نو دده حق د شفعی باطل سو او که په دوهم طلب کی دونه تأخیر وکړی چه په هغونه وخت کی دی شاهدان پیدا کولای سی او ده خپل حق غوښتنه کولای سی او نه یی وکړی هم یی حق باطلیږي او حق د شفعی په تیریدلو سره د کلونو نه باطلیږي یعنی که دغه شفیع پس د ډیرو کلونو په دغه بیع خبر سو هم یی حق د شفع سته.

یلزم فی الشفعة ثلاث طلبات وهی طلب المواثبة و طلب التقریر و الاشهاد و طلب الخصومة والتملک (المجلة الم۱۰۲۸) یلزم علی الشفیع ان یقول کلاما یدل علی طلب الشفعة فی المجلس الذی سمع فیه فی الحال کقوله انا شفیع المبیع الخ (المجلة الم۱۰۲۹) لو اخر الشفیع طلب المواثبة عن مجلس علمه بالبیع بدون عذر کان اشتغل بامر اخر ..... سقط حقه فی الشفعة فان وجد عذر مانع من المبادرة بالطلب کوجود حائل مخیف من وحش او سیل مثلا لا تبطل شفعته حتی یزول المانع (الفقه الاسلامی ص۸۳۰ ج ۵) هکذافی (بدائع الصنائع ص۱۷ ج ۵) (المجلة الم۱۰۳۲) ولو اخر الشفیع طلب التقریر و الاشهاد مدة یمکن اجراء ها فیها ولو بإرسال مکتوب یسقط حق شفعته (الفقه الاسلامی ص۸۳۰ ج ۵) هکذافی (المجلة الم۱۰۳۳) لو اخر الشفیع طلب الخصومة بعد طلب التقریر و الاشهاد شهرا من دون عذر شرعی ککونه فی داراخری یسقط حق شفعته (المجلة الم۱۰۳۴) هکذافی (الفقه الاسلامی ص۸۳۱ ج ۵) قوله لو اخر شهرا هذا قول محمد و به یفتی کما فی ردالمحتار عن شیخ الاسلام و قاضیخان

فی فتاواه و شرحه علی الجامع و مشی علیه فی الوقایة و النقایة و الذخیره و المغنی و فی الشرنبلالیة عن البرهان انه اصح ما یفتی به ..... الفتوی الیوم علی قول محمد لتغیر الزمان (شرح المجلة للاتاسی صـ۶۱۸ج ۳) و به ظهر ان افتاء هم بخلاف ظاهر الروایة لتغیر الزمان فلا یرجح ظاهر الروایة علیه و انکان مصححا ایضًا ..... و قد شاهدت غیر مرة من جاء یطلبها بعد عدة سنین قصدًا للاضرار و طمعا فی غلاء السعر فلا جرم کان سدهذالباب أسلم والله تعالی ﷻ اعلم ـ (ردالمحتار صـ۱۵۹ج ۵) (وحکمها جواز الطلب عند تحقق السبب) ولو بعد سنین ـ مرتبط بقوله له جواز الطلب ای اذا لم یعلم بها (ط) (ردالمحتار صـ۱۵۴ج ۵) هکذافی (الفقه الاسلامی صـ۷۹۵ج ۵)

والله تعالیﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که یوه ښځه دچاکورته پناه ورورړي**

**اوپه عده وفات کي وي خوک دعوی په وکړي دانکاح صحیح کیږي کنه؟**

**سوال**: د یوې ښځې میړه مړسو میراث خورو خپل کور ته بوتله زیات ظلم ئی دد غې ښځی سره کاوه دغه ښځه مجبوره سوه د دوئ د ظلم د لاسه د کوره ووتله د یو چا کور ته ئی پناه وروړه هغو ته ئی وویل چه ما تر هغه وخته وساتئ چه زما خپلوان راځی هغو ورته وویل چه که چیری زمونږ کورته راځی په مونږ کی به حتمًا یو سړی میړه کوي هغې ورته وویل چه زه اوس په عدة کی یم ، هغوی ورته وویل که عدة وي که هر څه وي حتمًا به یو میړه کوي ، ښځی څه ونه ویل په هغوئ کی یو تن وویل چه بس د غه ښځه زما ده د همدغې عدې په وخت کی ښځی ورته ویلی دي چه ستاسی خوښه ده د همد غه عدې په وخت کی د ښځې ورور ورغلی ښځه ئی کورته راوستله ، ښځې وویل چه زه د غه سړئ نه کوم اوس د غه سړی وایي چه د غه

زما ښځه ده ، آيا دغه ښځه بل ميړه شرعی کولاس سی او کنه ؟ د دغې ستونزی په هکله رهنمای شرعی راته وکړئ ثواب به مو وي ؟

(عبدالله د محمد هاشم زوی)

**جواب** : که واقعه داسی وي لکه مستفتی چه ليکلي دي نو دا ښځه بالکل کولای سی چه بل ځای ميړه وکړی هر ځای چه ددې خوښه وي ځکه په وخت کی د عدّي چه عقد د نکاح وسی هغه عقد هم باطل دی هيڅ صحت نه لري او په صورت کی د استفتاء خو عقد هم نه دی سوی .
د بالغی ښځې د نکاح لپاره يو شرط دادي چه دا به په هغه ځای راضی او خوشحاله وي او که ددې خوښه او رضاء نه وي نو نه ئی خپل قريبان کولای سی چه يو ځای ئی په زوره او جبراً په نکاح ورکړی نه د پخوانی ميړه قريبان کولای سی چه جبراً يی په نکاح کړی . نو د دغې ښځې پر قريبانو دا لازمه او حتمی ده چه ددي خوښی او رضاء ته به گوری او په هغه صورت کی چه د ښځی رضاء نه وي او قريبان يی ورکړی نو دا کار ناروا او ناجائزه دی.

ثانيـا ـ تحـريم الـزواج لايجـوزلـلاجـنـبـی اجماعـا انـكـاح المعـتـدة لقولـه تعـالی ولاتعزمـوا عقـدة الـنـكـاح حـتی يبلـغ الكـتـاب اجلـه ـ ای لا تعقـد و اعقـد النـكـاح حـتی تنـقـضی العـدة التی كـتبهـا الله علی المعـتدة . . . . واذا تزوجت فالنـكـاح بـاطل (الفقه الاسلامی صـ۶۵۳ج ۷) (بـدائع الـصنـائع صـ۲۰۴ج ۳) يا ايهاالذيـن آمنـوا لايحل لكم ان تـرثـوا النـسـاء كـرهـاً (آلاية سورة النـسـاء آية نمـ۱۹) ای تأخـذ وهـن كـمايؤخـذ الميـراث و تزوجـوهن كـارهـات او مكرهـات (تفسير المظهری صـ۴۹ـ ج ۲ـ ۲) هـكذافی (روح المعانی صـ۲۴۱ج ۴) .
باب اذا زوج ابنـته وهـی كـارهـة فنـكـاحـه مـردود حـدثـنـا اسماعيل . . . . . . عـن خنسـاء بنـت خـذام الانـصـارية ان أباهـا زوجهـا وهی ثيب فكـرهـت ذلک فأتـت رسول الله ﷺ فـردّنـكـاحـهـا (بخـاری شريف صـ۷۷۱ج ۲) و (مشكوة المصـابيح صـ۲۷۰)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## داجاري دمځکې عشر چې ورکړل سي داجاري پرپیسو هم زکات یاعشر سته کنه؟

**سوال**: د کندهار ولایت د دارالافتاء د محترم رئیس صاحب حضورته السلام علیکم.
اما بعد: ما یوه اندازه خالصه مځکه واقع پیرپایمال کی چه په باوړی سره آبیاری کیږي په ( ۳ ) کالو چه د یوه کال إجاره اتیازره کالداری پاکستانی په إجاره ورکول سوي دی، د مځکې د ټولو حاصلاتو عشر ورکول سوي دي، دوهم ځل په دغه اتیا زره کالدارو د اجارې زکات کیږي او که څنګه هیله ده چه شرعی مسئله راکړي. که چیري کیږي نو څووم زکات ورکول کیږي او مذکوره مځکه سالانه په اجاره سره تر اتیا زره ۸۰۰۰۰ زیات ارزښت لري اعنی مذکور مبلغ اجرة ناقص دی؟

**جواب**: که دغه مؤجر د إجاره دار څخه دونه أجرة اخستی چه إجاره دار ته د أجرة او عشر ورکولو پس یا هیڅ نه پاتي دی یا ډیر لږ څه پاتیدی نو په دي صورت کی به عُشر پر مؤجر وي نه پر اجاره دار او که إجاره دار هم أجرة ورکړی هم یی عُشر ورکړی او بیا هم ښه کافی ګټه ورته پاته سوه نو بیا عُشر پر إجاره دار دی. او که دغه أتیا زره کالداری مؤجر واخستلی او کال پر تیر سو نو بیا پر دغه پیسو زکوة لازمیږي او دا چه هم د مؤجر څخه عُشر اخلی هم یی د مستأجر څخه نو دا سخت ظلم او حرام کار دی.

فان امكن اخذ الاجرة كاملة يفتى بقول الامام والافبقولهما لما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لايقول به احد (ردالمحتار صـ۶۰ج۲) هكذافى (امدادالفتاوى صـ۵۸ج۲) (احسن الفتاوى صـ۳۴۷ج۴) (تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۰ج۱).

عشر نکالنے کے بعد پیداوار فروخت کے تو اس سے حاصل ہونے والی رقم پر زکوۃ الگ فرض ہے.

لان الحقين لم يتعلقا بمحل واحد فان العشر حق الارض النامية بالخارج حقيقة وزكوة النقود حق المال النامى تقديرًا..... البحرالرائق (احسن الفتاوى صـ۳۷۰ج۴)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**کومه مځکه چې خرڅه سي تعمير پکښې**

**جوړسي بياتقسيم سي، ورثه تصرف ويني (۲۸) کاله تيرسي ورثه دعوه کولای سي کنه؟**

**سوال** : و حضور تـه د مقام محترم فضيلت مآب د دارالافتاء مرکزی اسلامی افغانستان و محترم رئيس صاحب ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

اما بعد : ستاسی د مبارک حضور څخه احترامانه هيله لرو چه زمونږ د يوې ساده حقوقی موضوع صورت حال فـقط په ۶ مادو کی ستاسی و مبارک حضور ته وړاندي کوو . هيله لرو چه ستاسی د رحمت او مهر بانی له رويه پر هره ماده باندی جلا جلا د کتابو لـه رويـه شرعی فتوی راکړئ.

يوه ټوټه خالصه مځکه چه په ۱۲۵۱ سنه کی ۲۸ کاله پخوا چه ۲ حصې حاجی محمد اسلم نامی او يوه حصه غلام قادر نامی د قاضی صاحب جان نامی څخه پـه قطعی قيمت رانيولـه . او غلام قادر نامی په هغه ۱۳۵۲ سنه کی د خپلې دريمې حصی قيمت و قاضی صاحب جان نامی ته ور ورساوه او پر حاجی محمد اسلم نامی باندی ئی فقط يو لک افغانۍ پاته سوي او په هغه وخت کی حاجی محمد اسلم نامی دغه يو لک افغانۍ رسيده گی نسوای کولای . نو په همدې نسبت د شرعی قبالی مراتب معطله سوه څه لږ وقت وروسته قاضی صاحب جان نامی و فـات سو . او زمـونږ پـلاس کی هغـه عرفـی قبالـه تـر نـن ورځـی پـوری پاتـه سـوه او د مځکی ذوالیدی او تصرف هم تر نن ورځی پوری چه ۲۸ کاله کيږی زمونږ پلاس کيدی.

(**اول سـوال** ) پـه دغـه ۱۳۵۲ سـنه کـی مـونږ پـه دغـه مځکـه کـی دوه ۲ منزلـه او ۳ منزلـه تعميرونه جوړ کړه او په دغه وقت کی د قاضـی صـاحب جان نامی ټولـه ورثـه حاضر او زمـونږ دغه د تعمير وجوړول ئی په سترگو ليدل هيڅ کوم يوه نه عرض وکړ او نـه شکايت نو آيا دغـه پټه خوله شرعاً د دوئ اقرار بلل کيږي او کنه ؟

(**دوهم سـوال** ) بيا پـه ۱۳۵۴ سـنه دغې کارخانی د برق د شاتی لـه سببه اور واخيست او دوهمه پلا مو بيا د تعمير په جوړولو شروع وکړه او پـه دغـه وخت کـی هم دوئ ټولـه حاضر او زمونږ سره څنگ پر څنگ همسايگان او فقط يو ديوال مـو پـه مابيـن کي دی او زمـونږ دغـه

تعمیر جوړول ئی دوهمه پلا بیا په خپلو سترگو لیدی بیا هیڅ کوم یوه نه عرض وکړ او نه شکایت ؟

(**دریم سوال**) بیا پر ۲۱ / ۱ / ۱۳۷۲ سنه کی د قاضی صاحب جان یو زوی شیخ نامی په محکمه کی د خپل عرض په اثر پسله تحقیقه داسی اقرار وکړی چه هو زما پلار دغه مځکه خرڅه کړیده خو قباله ئی عرفی ده او هم زما د پلار یو لک افغانی پر حاجی محمد اسلم باندي پاته دي نو د محکمه مرافعی محترم اعضاؤ د شیخ نامی د دغه اقرار په اثر زمونږ قباله را تائید او مهر او امضا کړه ؟

(**څلورم سوال**) اوس بیا پسله ۲۸ کالو د قاضي صاحب جان ورثې په خپل مابین کی یو داسي وکالت خط ترتیب کړیدی چه په دغه وکالت خط کی بعضی وجود لری او بعضي ئی نه لري بعضی په امریکا کی او بعضی په افغانستان کی او بعضی مړه او بعضی ژوندي دي ، او که بعضی د قاضی جان د ورثې څخه ژوندی وي او په دغه وکالت خط کی وجود ونه لری دغه وکالت صحت لري او کنه ؟

(**پنځم سوال**) زمونږ دغه قباله چه د محکمی مرافعی له خوا د قاضی صاحب جان د زوی شیخ نامی د اقرار په اثر تائید سوی او هم په خپله قاضی صاحب جان او هم ئی بل زوی حمید نامی هم امضا کړیده او هم دا ۲۸ کاله کیږي چه ذوالید او تصرف زمونږ پلاس کیدی او هم مو په سوو میلونه افغانی مصرف پکښی کړیدی فقط دا یو د (عرفی قبالی پنامه) دا ټوله حیف او برباد او که څنگه ؟

(**شپږم سوال**) بیا پسله څو کالو حاجي محمد اسلم نامی هم وفات سو او د حاجی محمد اسلم نامي څخه بیا و ندا احمد نامي ته ورثه پاته سوه د ندا محمد نامي څخه بیا د ده وزامنو ته ورثه پاته سوه زامنو ئی بیا دغه مځکه سره تقسیم کړه په دغه حصه کی د قاضي صاحب جان د ورثې ادعا شرعًا د کتابو له رویه قابل د اعتبار ده او کنه ؟

**د اول او دوهم سوال جواب**: که چیری واقعه داسی وي لکه په استفتاء کی چه لیکل سوي دي يعني تاسو په دغه مځکه کی بناء کړی وي او قاضی صاحب جان یا د هغه ورثه ؤو ستاسو دغه تصرف لیدلی وي او دعوی ئی نه وي کړی او هیڅ شرعی عذر هم دپاره د ترک دعوی په

هغه وقت کی موجود نه وي نو دغه سکوت مانع د دعوی څخه گرځي يعني دوئ نسی کولای چه په اوس وخت کی دعوی وکړی.

قـال فـی شـرح تنويرالابـصار المسمی بمنـح الغفـار فـی مـسائل شـتی فـی آخرالكتاب باع عقارا أوحيوانا او ثوبا و ابنه و امرء ته حاضـر يعلم به ثم ادعی الابن انه ملكه لاتسمع دعواه بخلاف الاجنبی ولو جـارا الااذا تـصرف المشتری فيه زرعا و بنـاء فلا تسمع دعواه ..... وقد كثر افتاء الحنفية عن علمـاء مصر بتساوی الجار مع الاجنبي في الحكم المذكورلاشتراكهما في العلم و العلة الموجبة لعدم سماع دعوی الجار بعد تصرف المشتری فيه زرعًا و بنـاء علی ماعليه الفتوي قطع الاطماع الفاسدة و سدباب التزوير والتلبيس و هـذا قـدر مـشترك بيـن الجـار و الاجنبـي و اشـترط فيهمـا تـصرف المـشتری زمانـا (الفتـاوی الخيرية صـ۵۹ج۲) هكـذافی (تنـقيح الفتاوی الحامدية صـ۴ج۲) (ردالمحتار صـ۳۸۲ج۴).

د دريم **سوال جواب**: دا واضحه ده چه قاضی دا اختيار لري چه د يو چا اقرار قبول کی يا يی ردکی او خپل حکم صادر کړی.

د **څلورم سوال جواب** : په دغه وکالت خط کی چه هر څوک وکيل تاکل سوی دي د هغه وکالت صحيح او تصرفات يی صحيح دي د هغه چا په حق کی چهٔ دی ئی وکيل کری دی کچيری د وکالت خط د صحت شروط پکښی موجود وه ، او د هغه کسانو په حصه کی تصرفات نسی کولای چه ده ته ئی وکالت ندی ورکړی.

يصح ان يوكل أحـد غيره فی الاموالتی يقدرعلی اجراء هـا بالذات و بايفـاء واستيفاء كل حق متعلق بالمعاملات الخ (المجلة الـ۱۴۵۹).

**د پنځم سوال جواب**: عرفی قباله حکم د شرعی قبالی نلري ځکه چه امکان د تزویر پکښی ډیر دی او مثنی نلری نو قاضی صاحب کولای سی چه قبوله یئ کړی یا ئی رد کړی که تلبیس او تزویر یا خلاف الشرع حکم پکښی راغلی وو.

**د شپږم سوال جواب**: که چیری پر مُورِث باندی دعوی صحیح وه نو پر وارث ئی هم صحیح کیږي او که پر مُورِث باندی دعوی نوه صحیح نو پر وارث باندی هم نه صحیح کیږی نو که د قاضی صاحب جان ورثه ؤو پر حاجی محمد اسلم او ندامحمد دواړو حق د دعوی درلودی نو د ندامحمد پر ورثه ؤو یی هم لري کچیری یو بل شرعی مانع او عذر د صحت څه د دعوی موجود سوی نوو او که یی پر هغو حق نه درلودی پر ورثه ؤو یی هم نه لری.

ما یمنع صحة دعوی المورث یمنع صحة دعوی الوارث لقیامه مقامه کما فی الحاوی الزاهدی و غیره (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۴ ج۲) هکذافی (سلیم باز صـ۹۹۴)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که په یوه هیواد کي قتل وکړي ورثه په بل هیواد کي قصاص اخیستلای سي؟

**سوال**: و حضور ته د علماؤ کرام ریاست دارالافتاء مقام عالی تمیز السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

محترما! تخمین ۸ کاله د مخه زمونږ د وطن مهاجر چه په پاکستان کی ئی سکونت درلودی هلته ئی په پاکستان کی سید گل نامی د حاجی گل محمد او غمی سره جنگ کړی وو چه په نتیجه کی سید گل په قتل ورسیدی اوس د سید گل ورثی قاتلین دلته په کندهار کی ټینګ کړل دوسیه ئی د محترم امیرالمؤمنین صاحب په هدایت محکمې ته رارسیدلی او د مقتول ورثې پر قاتلانو باندي شاهدان هم حاضر کړی نو ستاسو د عالیقدر محترمینو څخه دا فتوی غواړو چه د دغسی واقعاتو چه په پاکستان کی واقع شوي وي دلته په افغانستان کی قصاص کیږی که یا چه ستاسو د فتویو روسته شرعی لار خپله کړو؟

**جواب**: لکه څرنګه چه مستفتي ليکلي دي چه قتل په پاکستان کی سوي دی او قاتلان ئی اصلاً د دې ځای دي نو په دغه موضوع او همدارنګه په امثالو کی د دې موضوع قضاء د دې ځای د قاضی صحيح ده ولی که چیری دغه قاتلان اصلاً د پاکستان وای او دلته په سفر راغلي وای او د دعوی په وجه بیا قاضی ته په لاس ورغلي وای هم قضاء د قاضی صحيح وه نو اوس چه اصلاً قاتلان د دې ځای دي نو بالکل ئی قضاء صحيح ده خو په دی شرط چه امیرالمؤمنین به د دغسی قضیو د اوريدلو څخه منع نه وي کړی.

للحاكم فی قضاء ان يسمع دعوى الاراضی التی هی فی قضاء اخر ولكن يلزم بيان حدودها الشرعية على الوجه الذی ذكر فی كتاب الدعوى (المجلة صـ١٨٠٧) و يشترط ايضًا انيكون المدعی عليه موجودا فی ولاية ذلك الحاكم ولو بطريق السفر لان الحاكم المعين لقضاء لم يقيد بالحكم بين سكانه فقط بل له حق القضاء على كل من وجد تحت ولايته ولو اتفاقا (سليم باز صـ١١٧٣ج) و اذا صح للحاكم ان يسمع دعوى عقار لاتحت ولايته فمن باب اولى دعوى الدين والمنقول كما لو ظفر حلبی بدمشقی وجد مسافرا فی حلب الخ (اتاسی صـ٧٧ج ۶) هكذا فی (درر الحكام صـ۶١۴ج ۴) (واقعات المفتين صـ٢٢١) (الفتاوى الهندية صـ٣۶٨ج ٣) او كان الحاكم ماذونا باستماع بعض الدعاوی المعينة دون غيرها فله ان يسمع الدعاوی المأذون بها فقط وان يحكم بها وليس له سماع ماعداها والحكم به الخ (المجلة المـ١٨٠١).

**(تتمة)**: جناب محترم قاضی صاحب محکمه عدلیه السلام علیکم ورحمة الله وبركاتهُ. وبعد په دې موضوع کې چه په پاکستان کی قتل سوی وي او مدعی او قاتلان په افغانستان کی محکمې ته حاضر سی په نوموړی موضوع کی مونږ خپل کوشش او مطالعه وکړه خو

صریح جزئیه مو پیدا نه کړه او همدارنګه ردالمحتار او طحطاوی نوموړی موضوع ذکر کړی او حکم یی نه دی کړی او خبره یی مجهوله پریښې ده چه د هغوئ عبارت په لاندی ډول دی.

سرق فی ولایة سلطان لیس لسلطان آخر قطعه (الدرالمختار) وهل کذلک بقیة الحدود و القصاص ایضًا لم أره (ردالمحتار صـ۲۳۲ج ۳ ط پاکستان) وهل هذا خاص بالحدود یحرّر (طحطاوی علی الدرالمختار صـ۴۳۳ج ۲).

نو څرنګه چه موضوع ډیره اهمّه موضوع ده حکم کول په جواز د قصاص او عدم جواز دواړه ډیر خطرناک دي فلهذا مونږ دامناسبه وبلله چه موضوع ستري محکمې ته وړاندي سی چه هغوئ د علماء په شوری کی په دې هکله حکم صادر کړی پس له اطرافو او جوانبو څیړل او مصلحت په نظر کی نیولو څخه . یا ددې وي چه ډیر جزئیات مقتضی د جواز د قصاص دی لکه دا قول د صاحب د فتاوی کاملیة.

(ولایشترط انیکون المتداعیان من بلدالقاضی فی غیرالعقار وکذافی العقار وانلم یکن فی ولایته علی الصحیح) (الفتاوی الکاملیة صـ۱۰۶ج) هکذافی (الفتاوی الانقرویة صـ۳۳۷ج ۱) و (دررالحکام صـ۴۱۴ج ۴) (الاتاسی صـ۷۷ج ۶) (واقعات المفتین صـ۲۲۱) (الفتاوی الهندیة صـ۳۶۸ج ۳).

او ډیر جزئیات مقتضی د عدم جواز د قصاص دی لکه دا چه په وقت کی د صدور د قتل او په محل کی د صدور د قتل ولایت د سلطان او قاضی نسته چه همدغه وجه ده په عدم قطع دید کی چه سرقة په بل ولایت کی سوی وي او همدارنګه نوری جزئیاتی چه پر دی دلالة کوي چه سعی دي په سقوط کی د قصاص وسی.

سرق فی ولایة سلطان لیس لسلطان اخر قطعه اذ لاویة له علی منّ لیس تحت یده فلیحفظ هذاالاصل (الدرالمختاربهامش الطحطاوی صـ۴۳۳ج ۲) قوله هذاالاصل وهو ان کل حاکم لایجری حکمه الافیما کان تحت ولایته وهل

هـذا خـاصّ بـالحـدود يحـرر ( طحطـاوى على الـدرالمختار صـ۴۳۳ج ۲ ) ولايقبل كتاب القاضى الى القاضى فى الحـدود و القـصاصّ لان فيه شبهة البدلية فـصار كالـشهادة علـى الـشهادة ولان مبنـاهـمـا علـى الاسقـاط وفـى قبولـه سـعى فـى اثباتهما ( الهداية صـ۱۴۰ج ۳ ) .

نو هر کله چه دواړه جانبه ډیر قوي او قابل اعتماد دی فلهذا د سترې محکمې یا د شورای و حکم صادرولو ته ضرورت سته.

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دوه طلاقه ورکړي اوطلاق نامه ئې نه وي ورکړي طلاق واقع کيږي کنه؟

**سوال** : و حضور ته دعلماؤ کرام ریاست دارالافتاء مقام عالی تمیز السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

**بعد** : څرنگه چه می پورته عرض و کړی مونږ خپلی لونی تبدیل (مُخی ) کړیدي چه د دوی لور زما زوی ته ناسته ده ولی دوی زما لورطلاقه کړی ده او طلاق نامه ئی نه ده ورکړي مونږ ته معلومات نه کیږی چه په دغه الفاظو طلاق واقع کیږی چه پرما طلاق پرما طلاق بجای خواهرم باشد شاهترین د مهربانی له مخی د شرعی لار ښوونه را وکړی چه زمونږ غاړی بندی نسی او دغه ستاسی د فتوی له مخې مونږ په ایران کی رفتار وکړو ولي چه هلته په شریعت چندانی څوک نه پوهیږی او دا څلور ورځې کیږی چه زه د همدې کار لپاره د ایران څخه راغلی یم ؟

**جواب** : په شریعت مقدّس کی د طلاق نامي لیکل او ورکول شرط نه دی بلکه په ژبه د طلاق ویل هم کفایت کوي او طلاق په واقع کیږی نو ستا لور چه واده سوی نه ده یعنی غیر مدخول بها ده او دوه ۲ واره لفظ د طلاق ورته ویل سوی دی او بیا ئی هغه دریم لفظ ورته ویلی دی نو دغه ستا لور په یوه بائن طلاق طلاقه ده او درې ۳ طلاقه نه واقع کیږی او عدة هم نه غواړی نو که چیری دواړه طرفه یعنی زوم او ستا لور دواړه په نکاح راضی وه نو نوې نکاح دې وکړی او خپله ښځه دې واده کی خو دغه ستا لور که بالغه وه د هغې رضاء په دغه نکاح کې شرط ده که د هغې رضاء نه وه نو نکاح به نه ورنوی کوي بیا ئی بل چا ته په نکاح ورکړئ.

قال لزوجته غیرالمدخول بها انت طالق ثلاثا وقعن وان فرق بانت بالاولی ( لاالی عدة ـ الدرالمختار) ولم تقع الثانية ( متن الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۹۲ج۲ ) هکذافی ( فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۳۷۳ج۹ ) و ( مجمع الانهر صـ۳۹۹ج۱ () الفتاوی الهندیة صـ۳۷۳ج۱ ) ورکنه ای الطلاق لفظ مخصوص خال عن الاستثناء ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۵۳ج۲ ) باب لاینكح الاب وغیره البکر والثیب الابرضاها حدثنا معاذبن فضالة .....

ان النبی ﷺ قال لاتنکح الایم حتی تستأمر و لاتنکح البکر حتی تستأذن الحدیث( بخاری شریف صـ۷۷۱ج۲) .

(**نوټ**) او که چیری دغه ښځه واده سوی وه یعنی مدخول بهاوه او دغه الفاظ ورته ویل سوی وه نو بیا دغه ښځه په درې ۳ طلاقه طلاقه ده او په دغه دریم لفظ هم طلاق واقع کیږی قضاءً ولی دغه لفظ د کنایاتو څخه دی او حالت د مذاکرې د طلاق دی او که چیری دی ووایی چه په دغه لفظ کی زما نیت د طلاق نه وو هم به قاضی دده دغه خبره نه منی البته که خبره په قاضی پوری اړه نه درلوده او دعوی نه وه نو دیانةً به دده او دخدای تعالی ﷻ تر مابین معامله وی که ئی واقعًا نیت د طلاق نه وو نو خبره ئی صحیح ده یوازی دی نکاح نوې کړی.نو په دغه صورت کی چه ښځه واده سوی او مدخول بهاده او په دریم لفظ کی ئی هم نیت د طلاق وو تر هغه وخته اول میړه ته نه رواکیږی تر څو چه بل میړه کوی او هغه دخول کوی د ټولو شرائطو مطابق.

فالکنایات لاتطلق بها قضاء الابنیة اودلالة الحال وهی حالة مذاکرة الطلاق او الغضب ( الدرالمختار) قوله قضاء قید به لانه لایقع دیانة بدون النیة ولووجدت دلالة الحال فوقوعه بواحد من النیة اودلالة الحال انما هو فی القضاء فقط کما هو صریح البحر و غیره قوله او دلالة الحال المراد بها الحالة الظاهرة المفیدة لمقصوده و منها تقدم ذکر الطلاق (ردالمحتار صـ۵۰۲ج۲) هکذافی (فتاوی قاضیخان بهامش الهندیة صـ۴۶۷ج۱) و (مجمع الانهر صـ۴۰۲ج۱) و انکان الطلاق ثلاثا فی الحرة و ثنتین فی الامة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا و یدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذافی الهدایة (الفتاوی الهندیة صـ۴۷۳ج۱)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه پلار زامنوته خپل ټول جايداد تقسيم كړي

## هغوی ئې قبض كړي بيا يوزوی ديوه مخصوص كوردعوه كولای سي؟

**سوال:** وحضور ته د دارالافتاء د لوړ مقام السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ.

**محترما:** كله چه په كال (۱۳۵۳) مونږ شپږو وړونو هر يو حاجی محمد موسیٰ حاجی عبدالاحد حاجی عبدالصمد حاجی عبدالواحد حاجی عبدالقادر او محمد يونس د حاجی عبدالحبيب خان زامنو غوښتل خپل مشترک جايداد او مال سره تقسيم كړو او په دې هكله مو د پلار څخه موافقه وغوښتله نو زمونږ پلار علاوه پر دغه چه زمونږ د ويش سره ئی موافقه وكړه بلكه ده خپلې دوې كوټې چه د هغو كوټيو شرعی قبالې د ده په نامه دي هغه ئی هم زمونږ تر ويش د مخه مونږ شپږو وړونو ته راكړې او دائی هم مونږ ته وويل چه په خپلو منځو كښې مطابق د شرعی اصولو مساويانه او عادلانه تقسيم وكړئ مونږ هم خپل تقسيم خط په عرفی دول سره د وخت د تقاضا مطابق ترتيب كړ، ولی زمونږ مشر وړور حاجی محمد موسیٰ زمونږ د پلار هغه كور چه هغه و خپلو شپږو زامنو ته وركړی وو د هغه په مورد داسی يو خط ترتيب كړ چه دغه كوټې زمونږ پلار تنها ده ته وركړې ده او پسله څه وخته زمونږ دغه ذكر شوی مشر وړور د خپلو وړونو په پټه يو بل خط د خپلې كوروالا آمينه بنته محمد رسول په نامه داسی ترتيب كړ چه گواكی دغه مشتركه كوټې زمونږ پدر د هغوی په شرعی مهر كی وركړې ده او حقيقت دا دی چه په دغه وخت كی د هغې د واده څخه اضافه تر (۳۰) كاله تيرسوي وه او تر دي وروسته زمونږ مشر وړور زمونږ پلار چه عمرئی په حدود (۱۱۵) كالو دی د پاكستان څخه د كندهار و محكمې ته راوست د خپل زوی هدايت الله نامی لپاره ئی د هغه ذكرشوي مشتركی كوټې لپاره د هغه اقرار خط واخيست نو څرنگه چه زمونږ د دغه ذكر شوی وړور د عمل او سلوک څخه چه زمونږ د سپين ږيری پلار په واسطه د خپل غيری اصولی گټو لپاره تر سره كړی دی زمونږ ټوله كورنئ ناراضی او د لوی جنجال سبب گرځيدلی او په آينده كی هم د دې امكان شته چه زمونږ د اولادو لپاره هم د شر سبب وگرځی، نو مونږ د دارالافتاء د محترم مقام څخه هيله لرو چه مونږ ته په دی هكله شرعی فتوی راكړی چه ايا

زمونږ د پلار هغه اوله هبه وخپلو شپږو زامنو ته صحت لری د وهمه هبه د خپل مشر زوی لپاره یا دریمه هبه د خپلې مړور لپاره او یا څلورمه د خپل لمسی لپاره او دغه رنگه هبه د یوه جنس د متعددو کسانو لپاره په دغه ترتیب صحت لري او که چیری زمونږ پلار ته د شرعی معلوماتو د نه درلودلو په اساس یا زمونږ د مشر وروردد غه رنگه غوښتنو د فشار په خاطر او یا د ده د عمر د ډیروالی په وجه و ده ته کوم شرعی مسئولیت راجع شوی وي د هغه مسئولیت دفع به څرنگه کیږی ؟ (المستفتی محمد یونس)

**جواب** : که چیری واقعه دغسی پیښه وي لکه مستفتی چه لیکلی ده نو د دغه بیان مطابق شرعی حکم دادی چه دغه کوتې چه پلار و دغو شپږو ورونو ته ورکړی وه او هغوی تقسیم کړه او تصرف یی پکښی وکړی نو هغه تقسیم صحیح دی نه بل تقسیم کیدلای سی نه پلار بیرته رجوع کولای سی نه ئی یو ازی یو ورور دعوه کولای سی او که دغه ۶ ورونو تصرف نه وی پکښی کړی یعنی قبض ئی نه وی کړی نو بیا که مشر ورور دعوی د هبې کوی هغه دې شرعی اثبات وکړی په محکمه کی که چیری اثبات ونکړی نو کوتې د پلار بلله کیږی او زامن حق نه پکښی لري او که چیری په زامنو کی صغیران موجود وه نو په هغه صورت کی د صغیرانو لپاره قبض ضروری نه دی بلکه په اول تقسیم کی چه هر څونه حصه و صغیر ته رسیدلی وي هغه حصه د صغیر ده قبض او تصرف ته د صغیر په باره کی ضرورت نسته.

اذا وهب شیئا لابنه الکبیر البالغ العاقل یلزم التسلیم ـ له وبدون قبضه لا تتم الهبة (سلیم باز صـ۴۶۷) یملک الصغیر المال الذی وهبه ایاه وصیه او مربیه . .... بمجرد الایجاب او بمجرد قول الواهب وهبت ولایحتاج الی القبض (المجلة المـ۸۵۱) یملک الموهوب له الموهوب بالقبض (المجلة المـ۸۶۱) (الفتاوی الهندیة صـ۳۷۴ج ۴) ولا یرجع فی الهبة من المحارم بالقرابة کالاباء والامهات وان علوا والاولاد وان سفلوا (الفتاوی الهندیة صـ۳۸۷ج ۴) لکن ان قسم الواهب الجزء الموهوب المشاع بنفسه او بواسطة نائبه وسلمه الی الموهوب له صح العقد لزوال المانع وکذالوامر الموهوب له ان یقسم مع شریکه ردالمحتار ـ (سلیم باز صـ۴۷۳) والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## لوټمار قمندانان چې په زور مالونه چور کړي اسلامي حکومت دامعاوضه ورکوي کنه؟

**سوال**: وحضور ته د جناب محترم عاليقد رئيس صاحب ته السلام عليكم.

**بعد**: لس کاله پخوا ما د مرتضی د منډی څخه غنم او وړه په پور رانیولی وه او په کابل کښی د دوو ۲ قومندانانو له خوا څخه له نصرالله او جانو نامانو په واسطه په زور او جبر یووړل سول او حتی دا وړه او غنم یی په شمالی کی د خلکو د شناخت په اساس خرخ کړل، او زه یې د عصمت په شخصی بندیخانه کی اچولی وم او ډیر یې تهدید کړلم او وژلم ئې بیا د یوه نفر مستووالا فارسی ژبی په واسطه او عذر سره را خلاص سوم، او دا کسان ما خو واری د ولسوال او والی په امر نیولی دی مگر بیا ځانونه خلاص کړی ما یو اویا دوه گښته عرض کړیدی او بندیان سول او د امرثانی په امر ځان خلاص کړی او که زما عرض نه اوریدل کیږی علت څه وي غریب یم مسکین یم در بدره یم، قرض داره یم، اولادداره یم، د دي خاوری یم، او که زما د مال څوک شرعی اختیار لری نو زه تر تیریم قاضی صاحب دې زما ټوله دارایي ورته ورکړی، د ولسوالی او ولایت د محترمو مقاماتو اسناد او نوشتی موجود دی مگر قاضی صاحب ده ته د امرثانی امر ورکوي نو د تمیز د عالیقدر او محترم مقام څخه داسی غوښتنه لرم چه زما مدعی او اوراق ټول و خپل حضورته راوغواړی اوز ما حق ور څخه راکړی.

**جواب**: که چیری داثابته سی چه واقعًا دغه غنم او وړه قوماندانانو د دغه عارض څخه په زور او جبر اخیستی دي نو عارض دا حق لري چه خپل حق د دغه قومندانانو څخه واخلی هغه وړه او غنم که موجود وه یا نور مال د هغو په طریقه د ضمان که نه وه موجود حکومت اسلامی به د دغه عارض سره معونت کوي په اخستلو کی د خپل حق.

لا يجوز لاحد ان يأخذ مال احد بلا سبب شرعي ـ اى لايحل في كل الاحوال عمدا او خطأ او نسيانا جدا او لعبًا ان يأخذ احد مال احد بوجه لم يشرعه الله تعالى ولم يبحه لان حقوق العباد محترمة لاتسقط بعذر الخطاء والنسيان والهزل وغيره وذلك كالغصب والسرقة والقمار والربا والرشوة و

الدعاوی الباطلة و شهادة الزورالخ . . . . . فمن تناول مال احد باحدی هذه الطرق فهو ظالم غاصب یجب علیه رده قائما او مثله او قیمته هالگا (شرح المجلة للاتاسی صـ۲۶۴ج۱) لیس لذی الحق ان یأخذ غیر جنس حقه و جوزه الشافعی رحمة الله تعالی ـ قدمنا فی کتاب الحجر ان عدم الجواز کان فی زمانهم اما الیوم فالفتوی علی الجواز وهو الاوسع لتعینه طریقا لاستیفاء حقه فینتقل حقه من الصورة الی المالیة کما فی الغصب و الاتلاف (ردالمحتار صـ۳۰۰ج۵) والفتوی الیوم علی جواز الاخذ عند القدرة من ایّ مال کان لاسیما فی دیارنا لمداومتهم العقوق (ردالمحتار صـ۱۰۵ج۵).

البتة که چیری امیر المؤمنین قاضی منع کړی د سمع څخه د دغسې دعوی د وجې څخه دخوف د فتنې او فساد نو بیا قاضی یا ولسوال حق نه لري د معونت د دغه عارض سره او همدارنګه امیرالمؤمنین کولای سی چه دغسی مسائل د یوڅه وخت لپاره معطل کړی که چیری په معطلی کی مصلحت وو څکه چه وایی.

التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة (المجلة المـ۵۸) یتحمل الضررالخاصّ لدفع الضررالعام (المجلة المـ۲۶) الضررالاشدیزال بالاخف (المجلة صـ۲۷) او کان الحاکم ما ذونا باستماع بعض الدعاوی المعینة دون غیرها فله ان یسمع الدعاوی المأذون بها فقط و ان یحکم بها و لیس له سماع ما عداها و الحکم به (المجلة المـ۱۸۰۱).

**نوټ**: که چیری امام (امیرالمؤمنین) منع د سمع څخه د دغسې دعوی ونکړی نو ولسوال یا بل حاکم ته دا جواز نه لری چه ناحق یی معطله وي او یا نور تکلیف ورکوي.

یجب علی الامام ان یتقی الله تعالی و یصرف الی کل مستحق قدر حاجته من غیر زیادة فان قصر فی ذلک کان الله علیه حسیبا آه (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۴۳ج۱) والله تعالیٰ اعلم.

## بسم الله الرحمن الرحيم
## هغه مالونه چې شرعاً يې خريد وفروش مباح يامكروه وي خودولت دمصلحت په خاطرمنع كړي وي ددهغسي دعوو فيصله كول په كومه محكمه كي بايد وسي څارنوالي كه مرافعه؟

**سوال** : بمقام محترم رياست دارالافتاء مركزي ولايت قندهار السلام عليكم .

وبعد : درين اواخردوسيه هاى زياد مربوط به منازعات وجنجالهاى ناشي از معاملات وخريد وفروش مواد مخدر، ترياک، هيروئين وغيره بمحكمه مرافعه مواصلت مى نمايد كه از يک طرف باعث سنگيني دركارهاي روزمره گرديده واز جانب ديگر فرمان (۴۴۰) ۲/۳/۷۵ ستره محكمه امارت اسلامي افغانستان مكتوب علماء كرام وهدايت (۵۲۱) ۱۲/۱۰/۷۵ ستره محكمه امارت اسلامي افغانستان ومكتوب (۳۱) ۱۲/۲/۷۵ مقام محترم ولايت هرات واصل آمده وكشت نمودن وخريد وفروش حمل ونقل واستعمال ترياک، چرس، بنگ، هيروئين وغيره اشياء مخدر ونشه آور راكه بحال افراد جامعه وسلامت آنان مضراست بكلى ممنوع ومرتكبين آنها را قابل مجازات شرعي دانسته اند وعلاوه ازينكه رسيدگي حقوق همچو منازعات باعث اختلال نظم جلسات محاكم ومانع كارهاى روزه مره مى گردد رسيدگى حقوق آن در محاكم تحت امارت اسلامي افغانستان عكس العمل منفى رانيز بار مى آورد وبهانه براى تبليغات مخالفين تحريک اسلامي علماء كرام خواهد شد واز محتواى فرمان وهدايات فوق الذكر مفهوم ميگردد كه چنين دوسيه جات جهت تحقيق به څارنوالي مرافعه سپرده شود تا مرتكبين آنها شرعاً مجازات شوند تا بعد ازين جلو چنين معاملات گرفته شده ودر نتيجه منازعات ناشي از آن ازبين برود بناء از آنمقام عالى استفتاء گرديد تا فتواى شرعى خويش را اصدار وهدايت فرمائيد با احترام ؟

( مولوي احمد سعيد آخند رئيس محكمه مرافعه هرات )

**جواب**: درباره مواد مخدره جامده باید گفته شود که معاملات وخرید وفروش این مواد را کتب فقهیه حنفیه جائز دانسته و تقوم اینها را ثابت کرده وهمچنان مالیت اینها را ثابت کرده لکن امیرالمؤمنین وحکومت اسلامیه اگر از همین معاملات منع فرماید ممانعت ایشان صحیح وجائز وواجب التعمیل است وتخلف کننده باید مجازات شود ومجازات ایشان بناء بر رأی وصواب دید قاضی ومحکمه میباشد وطبق هدایات صادر شده از مقامات فوق باید اجراءات وهدایات صادر شود لکن باید از تعزیر مالی اجتناب قطعی ملحوظ شود که آن شدیدا حرام است وهیچگونه جوازی ندارد یعنی باید باموال ایشان هیچ گونه ضرری باید رسانیده نشود لکن این حکم مذکور دربارهٔ خرید وفروش این مواد است نه دربارهٔ استعمال آن زیرا که استعمال آن برای تلهّی ناجائز وبرای تداوی جائز است وخرید وفروش آن اگر چه از کراهت خالی نیست لکن اباحت وجوازش مفتی به است ودلیل عمده برای جواز خرید وفروش ثبوت تقوم آنها ست یعنی تعریف مال متقوم برایشان صادقست زیرا که خلق آنها را ذخیره میکند وشرع شریف انتفاع برایشان را جائز دانسته در غیر حال مخمصه مثلاً برای تداوی که از عبارات آتیه صراحةً مفهوم میشود.

والمتقوم مايمكن ادخاره مع الاباحة فالخمر مال لامتقوم (ردالمحتار صـ۳ج۴) (المجلة المـ۱۲۷) (الفقه الاسلامی صـ۴۴ج۴) (وصح بيع غيرالخمر) ممامر ومفاده صحة بيع الحشيشة والافيون قلت وقدسئل ابن نجيم عن بيع الحشيشة هل يجوز فكتب لايجوز فيحمل على ان مراده بعدم الجواز عدم الحل (الدرالمختار) قوله وصح بيع غيرالخمر اى عنده خلافا فالهما فى البيع والضمان لكن الفتوى على قوله فى البيع وعلى قولهما فى الضمان ان قصد المتلف الحسبة وذلك يعرف بالقرائن والافعلى قوله كمافى التاتارخانية وغيرها ثم ان البيع وان صح لكنه يكره كما فى الغاية الخ قوله ومفاده اى مفاد التقييد بغيرالخمر ولاشك فى ذلك لانهما دون الخمر وليسا فوق الاشربة المحرمة فصحة بيعهما يفيد صحة بيعهما فافهم (ردالمحتار صـ۲۲۳ج۵) واعلم ان الاصل فى الاشياء كلها سوى الفروج الاباحة قال الله تعالى (هوالذى خلق لكم مافى الارض جميعا) وقال تعالى (كلوا ممافى الارض حلالا طيبا) وانما تثبت

الحرمة بعارضٍ نص مطلق او خبر مروی فمالم یوجد شئ من الدلائل المحرمة فهی علی الاباحة آه ﴿ طحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۲۱ج ۴ ﴾ قوله ولایجوز بیعها ای بیع الخمر افادان بیع الباقی یجوز وان اسکرت وسیأتی ﴿ طحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۲۳ج ۴ ﴾ قوله ولایجوزبها التداوی هو داخل فی الانتقاع کما افاده فی حله ﴿ طحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۲۳ج ۴ ﴾ بل الصواب ان مراد صاحب الهدایة وغیره اباحة ای البنج للتداوی ونحوه ومن صرح بحرمة ارادبه القدرالمسکرمنه یدل علیه مافی غایة البیان عن شرح شیخ الاسلام اکل قلیل السقمونیا والبنج مباح للتداوی ومازاد علی ذلک اذا کان یقتل او یذهب العقل حرام آه فهذا صریح فیما قلناه مؤید لما سابقا بحثناه من تخصیص مامر من ان ما أسکر کثیره حرم قلیله بالمائعات وهکذا یقول فی غیره من الاشیاء الجامدة المضرة فی العقل او غیره یحرم تناول القدر المضرمنها دن القلیل النافع لان حرمتها لیست لعینها بل لضررها ﴿ ردالمحتار صـ۳۲۵ج ۵ ﴾ ویحل القلیل النافع من البنج وسائر المخدرات للتداوی ونحوه لان حرمته لیست لعینه وانما لضرره ﴿ الفقه الاسلامی صـ۱۶۶ج ۶ ﴾.

عبارات مذکورہ بالا سے ثابت ہوا کہ شراب کی علاوہ دوسری مسکرات منجمدہ مثل بھنگ افیوں کوکیں وغیرہ کے اُن کا حکم شرعی یہ ہے کہ ان کا استعمال بقدر مسکر باتفاق علماء حرام ہے اور فروخت کرنا ان اشیاء کا مکروہ ہے لیکن جب فروخت کردی تو صحیح ہوگئی یعنی زرثمن پر قبضہ کرلینی سے بائع اس زرثمن کا ملک ہوگیا گو اس کا یہ فعل مکروہ ہو ﴿امدادالمفتین ص۔۸۰۵﴾ حکم کوکیں اگر نشہ نہ ہو تو فی نفسہ مباح ہے لیکن بوجہ عوارض مضرت جسمی ومضار مذکورہ سوال کی ممنوع ہے اورجہاں یہ عوارض پیش نہ آئیں مباح رہے گا ﴿ امدادالفتاوی ص۔۹۲ج ۴ ﴾ سوال افیوں مال متقوم ہے یا نہیں اور اس میں عشرواجب ہے یا نہیں الجواب اقول وباللہ التوفیق اس صورت میں صحیح یہی معلوم ہوتا ہے کہ افیون مال متقوم ہے اور اس میں عشرواجب ہے فقط ﴿ فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۔۱۷۸ج ۶

)افیوں کی کاشت وبیع جائز ہے (احسن الفتاوی ص۴۹۴ ج۶) افیون چرس بھنگ کوکیں یہ تمام چیزیں پاک ہیں اوران کادوامیں خارجی استعمال جائز ہے نشہ کی غرض سے ان کو استعمال کرنا ناجائز ہے مگران سب کی تجارت بوجہ فی الجملہ مباح الاستعمال ہونی کی مباح ہے تجارت توشراب اور خنزیرکی حرام ہے کہ ان کا استعمال خراجی بھی ناجائز ہے (کفایت المفتی ص۱۱۵ ج۹).

صاحب البحر ذكرنا قلا عن اء متنا ان طاعة الامام فی غير معصية واجبة فلو امر بصوم يوم وجب آه (ردالمحتار صـ۳۸۳ج ۴) مطلب ـ مخالفة الامير حرام (ردالمحتار صـ۲۵۶ج ۳) وحينئذ تصبح القوانين و التكاليف التی تصدر عن الحاكم واجبة التنفيذ (الفقه الاسلامی صـ۷۰۴ج ۶) قال الزيلعی وليس فی التعزير شئ مقدر وانما هو مفوضٌ الی رءی الامام علی ما تقتضی جنايتهم فان العقوبة فيه تختلف باختلاف الجناية فينبغی ان يبلغ غاية التعزير فی الكبيره كما اذا اصاب من الاجنبية كل محرم سوی الجماع الخ (ردالمحتار صـ۱۹۶ج ۳) (تبيين الحقائق صـ۲۰۸ج ۳) وليس للامام ان يخرج شيئا من يدأحد الابحق ثابت معروف (ردالمحتار صـ۲۸۱ج ۳) والحاصل ان المذهب عدم التعزير باخذالمال (ردالمحتار صـ۱۹۵ج ۳) لايجوزالتعزير باخذالمال فی الراجح عند الائمة لما فيه من تسليط الظلمة علی اخذ مال الناس فيأكلونه (الفقه الاسلامی صـ۲۰۱ج ۶)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که ښاروالي په خلګو دکانونه جوړکړي وخت پر تیرسي داملکیت ئې دچاګرزي دښاروالي که دخلګو؟

**سوال** : محترم رئیس صاحب شورای مرکزی علماء وریاست دارالافتاء مرکز السلام علیکم.

اما بعد: مونږ ۱۱۲ دکانداران دارګ د کباړي خپل تشریحات مفصل درته لیکو امید کوو چه شرعی حکم راته معلوم کړی په ابتداء کی زمونږ خلق تقریبًا ۴۰ کاله مخکې د ښکار پور باراز څخه راوستل داغه ارګ ته محمد افضل خان شیردل ښاروال وویل تاسي پر داغه مځکه خپل دکانونه جوړ کړئ هلته مه کښینئ زمونږ دا کومک دی چه کرایه نه درڅخه غواړو مونږ هم په خپل شخصی مصرف دکانونه جوړ کړه خپل کار مو کاوه ډیر وخت بعد هغه ښاروال بدل سو محمد اکبر خان ښاروال سو څو موده بعد ئی مونږ ته وویل کرایه راکړئ مونږ ورته وویل چه مونږ خو په خپل مصرف جوړ کړه ښاروال صاحب کرایه نه را څخه غوښته ده وویل حکومت ډیر مفلس دی هغه وخت د ښاروال کومک وو اوس تاسی کومک وکړی کرائې خو ډیری دی تاسی مونږ ته داعانی پر ډول ۱۲۰ افغانۍ راکوئ تر آخره پوری زمونږ کرایه تر ټوله ښار کمه وه دا اول حال وو بیا نو یو تر بله مونږ خپل دکانونه په سر قلفی خرڅول چه د سابقه مالک څخه په ښاروالی کی نوی مالک ته پر نام کړی دی تر دې وخته پوری چه پنځه میاشتې مخکې ښاروال صاحب راته وویل چه مونږ د اپلان لرو چه ستاسی سرای ۷ منزله جوړ کړو زمونږ به هم فائده سی ستاسی دوکانونه به پاخه سی تاسی ته بیرته خپل دوکانونه درکوم که خط غواړی خط درکوم او ډیر ژر ئی در جوړوم مونږ وویل چه زمونږ دوکانونه مونږ سم جوړ کړیدي مونږ مه بیځایه کوه خو ښاروال صاحب په ډیره خوږه لهجه وعدی راکړی چه یوه ئی هم نه کړه پر ځای اوس وایی چه پیسی راکړی حال دا چه زمونږ دوکانونه هر یو په څلور یا پنځه لکه کالداری قیمت خرڅیدی مقصد دا چه مونږ د پیسو حق لرو کنیا ؟

**جواب** : په دې مسئله کې دوه ۲ صورته دی:

(**اول صورت**) دغه مارکیټونه او دوکانونه چه اوس حکومت نړولی دی او ښاروالی یی خپل مربوط بولی حکومت پخوا اول واری جوړ او روغ دوکانونه خلقو ته په کرایه ورکړی وي او سوی له دغې کرایی څخه ئی نور أجرة او پیسی یا بل شی د خلقو څه نه وی اخیستی او

نه ئی نور قرار داد ورسره کړی وي ، نو په دې صورت کی ښاروالی کولای سی چه د پخوانیو خلقو څخه دوکانونه واخلی او نورو ته یی ورکړی که دغه شرطونه موجود وه (اول) دا چه د حکومت او خلقو په مابین کی به د سرقلفی یا بل عقد قرارداد نه وی سوی (دوهم) دا چه خلقو به په دغو دوکانو کی هیڅ نوعه تعمیراتی مصرف نه وی کړی او نه به دوکان د کرایه دار په پیسو جوړ سوی وي (دریم) دا چه په آینده کی که هر چا ته دغه دوکانونه ورکول کیږی د دوکانو د جوړیدو مصرف به نه څنی اخیستل کیږی او که څنی اخستل کیږی نو په سر قلفی به ورکول کیږی.

ان المستأجر بعد فراغ مدة اجارة یلزمه تسلیم الارض و لیس له استبقاء بنائه او غرسه بلا رضی المتکلم علی الارض (مجموعة رسائل ابن عابدین ص۱۵۵ ج ۲) و قد یقال ان الدراهم التی دفعها صاحب الخلو للواقف و استعان بها علی بناء الوقف شبیهة بکبس الارض بالتراب فیصیرله حق القرار فلا یخرج من یده اذا کان یدفع اجرالمثل و مثله مالوکان یرمّ دکان الوقف و یقوم بلوازمها من ماله باذن الناظر اما مجرد وضع الید علی الدکان و نحوها و کونه یستأجرها عدة سنین بدون شئ مماذکر فهو غیر معتبر فللمؤجر اخراجها من یده (ردالمحتار ص۱۸ ج ۴) و ممن افتی بلزوم الخلو الذی یکون بمقابلة دراهم یدفعها للمتولی او المالک العلامة المحقق عبدالرحمٰن افندی العمادی صاحب هدیة ابن العماد و قال فلا یملک صاحب الحانوت اخراجه و لا اجارته لغیره (ردالمحتار ص۱۸ ج ۴).

(**دوهم صورت**) او که چیری دغه مذکور دکانونه اول واری خلقو خپله او پخپلو پیسو جوړ کړی وي او حکومت یوازی دوی ته خالصه مځکه ورکړی وي او بیا دغه خلقو په خپل مابین کی د دغو دکانو بیع او شراء کړی وي او بیا همدغه ښاروالی په خپلو کتابو کی د بائع او مشتری نومونه ثبت کړی وي نو د دغو دکانونو ملکیت د ښاروالی بلل کیږی لکن سرقلفی ئی د خلقو ده په هیڅ وخت کی ښاروالی نسي کولای چه د دوی څخه دغه دکانونه واخلی یا ئی بل [illegible] دکانونه او ښاروالی نړولی دي لکن د خلقو سرقلفی په صورت

قطعي د مابين ځخه نه ځي او آينده چه دغه دکانونه جوړ سي هم به د دغو پخوانيو خلقو وي بل چاته په کرايه نسي ورکول کيداي. اوس نو که ښاروالی دغه دوکانونه د خلقو بې اجازې او بې رضا نړولي وي نو ښاروالی به دغه دکانونه بيرته پخپلو پيسو جوړوي نه د خلقو په پيسو او هغو خلقو ته به يې ورکوي او که يې د هغو په اجازه او رضا نړولي وه نو ښاروالی به دغه دکانونه د خلقو په پيسو جوړوي او د خلقو ځخه به يوازي د ديوالونو او بام د جوړيدلو مصرف اخلي نه د سر بيره منزلونو ځکه چه هغه سر بيره منزلونه د ښاروالی دي هغوی به يې په خپلو مصارفو جوړوي. او که خلقو د دغه خپلو دکانو د نوی جوړيدو د پيسو ورکولو طاقت نه درلودی نو دا پيسی به د حکومت له طرفه قرض وي پر دوی او حکومت به انتظار ورته کوي چه په قسطونو يا په بله طريقه ئی خلق ورکړی او هيځکله ښاروالی ته داجواز نلری چه که ځوک دستی او عاجل پيسی ورنکړی نو دی ئی دوکان واخلی بل چاته يی ورکړی او دا ټوله احکام ځکه ثابت دی چه سرقلفی حکم د شخصی ملکيت لري لکه په شخصی ملک کی چه خپل مالک مکمل تصرفات کولای سی بل ځوک يی د ده بی اجازی نه نړولای سی او نه يی ځنی اخستلای سی همدغه حکم د سرقلفی دی.

قال فی جامع الفصولين و غيره بنی المستأجر او غرس فی ارض الوقف صارله فيها حق القرار و هو المسمی بالکردار له الاستبقاء باجر المثل و فی الخيرية و قد صرح علماء نابان لصاحب الکردار حق القرار و هو ان يحدث المزارع و المستأجر فی الارض بناء او غرسا او کبسا بالتراب باذن الواقف او الناظر فتبقی فی يده ﴿ردالمحتار صـ۱۸ ج ۴﴾ ﴿مجموعه رسائل ابن عابدين صـ۱۴۹ ج ۲﴾ ﴿غمز عيون البصائر صـ۳۲۱ ج ۱﴾ ﴿شرح المجلة للاتاسی صـ۵۱۴ ج ۲﴾ هکذافی ﴿منحة الخالق علی بحرالرائق صـ۳۰۵ ج ۷﴾ و ﴿الفقه الاسلامی صـ۲۲۳ ج ۸﴾ ﴿مجموعه رسائل ابن عابدين صـ۱۵۴ ج ۲﴾ و انت علی علم ان الشرع يابی الضرر خصوصا و الناس علی هذا و فی القلع ضرر عليهم (ای المستأجرين) و فی الحديث الشريف عن النبی المختار لاضرر ولاضرار آه ﴿منحة الخالق صـ۳۰۵ ج ۷﴾ الاراضی السلطانية اراضی بيت المال لاتورث ..... و

اما مافیها من البناء و الفراس فهو ملک لاربابه یقسم بین الورثة علی فریضة الله تعالی ( تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۰۶ج۲ ) سئل فیما اذا کان لزید حانوت قائم فی ارضٌ وقف جاریة فی احتکاره من ناظر الوقف مدة معلومة باجرة معلومة بناء بماله لنفسه بعد الاذن من الناظر بذلک و تصرف فیه عدة سنین و فی کل سنة یدفع لجهة الوقف الحکر المرتب علی الارضٌ و هو اجر المثل و الان تولی الوقف متول جدید یرید رفع الحانوت بدون وجه شرعی فهل یمنع من ذلک ( الجواب ) نعم ( الفتاوی المهدیة صـ۴۹۱ج۲ ) ( و تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۷۸ج۱ ) و استفید من کلام التجنیس و جامع الفصولین ان السکنی عبارة عن عین قائمة من بناء او خشب ترکب فی الحانوت مثلا باذن المتولی تباع و توهب وتورث فهی من نوع الکردار المتقدم ( مجموعه رسائل ابن عابدین صـ۱۵۴ج۲ ) و فائدة الخلو انه کالملک فتجری علیه احکامه من بیع و اجارة و هبة ورهن ووفاء دین وارث و وقف علی الخلاف فی الاخیر و هذه الامور تؤخذ من فتاوی الناصر اللقائی حیث جعله کالملک و منه یعلم انه لا مانع من تعدد الخلوات اذا لملک یتعدد ( غمز عیون البصائر صـ۳۲۲ج۱ ) سئل فی بناء فی ارضٌ موقوفة مستحق للبقاء و القرار تهدّم ذلک البناء و صارت الارضٌ خالیة فهل لربه اعادته ثانیا کما کان اولاً ( اجاب ) للمحتکر حق الابقاء والاعادة حیث کان قائما بدفع اجرة مثل الارضٌ خالیة عن البناء علی ماعلیه العمل ( الفتاوی المهدیة صـ۴۸۷ج۲ صـ۴۹۵ج۲ ) لا یجوز لاحد ان یتصرف فی مال الغیر بلا اذنه ( المجلة المـ۹۶ ) و عدم الجواز شامل لجمیع انواع التصرف من استعمال کرکوب و لبس ..... و بیع ورهن و هدم وبناء ( شرح المجلة للاتاسی صـ۲۶۲ج۱ ) اذا اتلف واحد مال غیره الذی فی یده او فی یدامینه قصدًا او من غیر قصد یضمن ( المجلة المـ۹۱۲ ) و فی الحامدیة عن الخیریة ان راضی بیت المال کاراضی الوقف ( شرح المجلة لسلیم باز صـ۲۴۷ ) و ( للاتاسی صـ۵۱۰ج۲ ) ( و

انکان ذوعسر فنظرة الی میسرة..... آلایة ۲۸۰ سورة البقره ) ای و انکان ذوعسرة لکم علیه حق او غریما او من غرمائکم ( روح المعانی صـ۵۳ج ۳ ) و المراد به الامهال و التأخیر ( روح المعانی صـ۵۴ج ۳ ) ای انظر و ایاایهاالدائنون الی یسار المدیون و لا تعجلوا بطلبه لانه مضطر فی هذالباب و بهذه آلایة تمسک صاحب الهدایة فی کثیر من المواضع ( التفسیرات الاحمدیة صـ۱۷۴ ) .

( **نوټ** ) یوه خبره یادساتل ډیر ضروري دي هغه دا چه په دغه دوهم صورت کی به د آینده لپاره ښاروالی د دغو پخوانیو خلقو څخه چه سرقلفی والا دی کرایه په اندازه د أجرة مثل اخلی نه به تر دې زیاته وي او نه کمه .او أجرة مثل دی ته وایی چه یو څو پوهان کسان د ښار دې راوغوښتل سی او د هغوئ څخه دی پوښتنه وسی چه دغه مارکیټ مځکه چه خالصه مځکه وي او دکانونه نه وی باندی جوړ نو دیوه دکان قدر مځکه به په څو کرایه واخستل سی نو هغونه کرایه به پر دغه جوړو دکانو مقرره کیږی .نه داسی چه نور جوړ دوکانونه په هر څو کرایه ورکول کیدل هغونه کرایه باندی واخلی چه دا سخت ظلم او د شریعت څخه مخالف حکم دی ولی ښاروالی خلقو ته اول واری خالصه مځکه ورکړی ده نه جوړ دکانونه فلهذا کرایه به هم د خالصه مځکی اخلی نه د جوړو دکانو .

و المراد باجرالمثل فیها ( ای فی الدکاکین الموقوفة اذا کان فیها للمستأجر سکنی او کرداراو جدک ) هو ماتستأجربه اذا کانت خالیة عن البناء ( مجموعه رسائل ابن عابدین صـ ۱۵۶ج ۲ ) و مثل ذلک ای کالعبارة المذکورة ینبغی ان یقال فی الجدک فتعتبر اجرة الحانوت خالیة عن جدکه القائم فیها و عما انفقه علیها حتی صارت قابلة لتمام الانتفاع ( مجموعه رسائل ابن عابدین صـ۱۵۷ج ۲ ) هکذافی ( الفتاوی المهدیة صـ۴۸۷ج ۲ )

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک دچامځکه پر بل چاخرڅه کړي وخت تیر سي اصلي مالک دعوی وکړي وئې ګټې اورد سي مشتري خپلي پیسي له اصلي مالک څخه غوښتلای؟اواصلي مالک له ده څخه خوړلي حاصلات غوښتلای سي کنه؟

**سوال**: السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ. اما بعد: زه سردارولی ولد حاجی دین محمد او شیرمحمد ولد حاجی غلام رسول په لاندی ډول اقرار یو.

زه سردارولی په دې شیر محمد د دې دعوه لرم چه زما شپږ جریبه مځکه زما قبله ګاه پرده خرڅه کړیده چه هغه مځکه زما د والدې وه په ۳۰ دیرش لکه افغانۍ باندې چه په مقابل کی ددغه دیرش لکه افغانۍ ئی یو ټکټر نورئی ۱۲ منه تاریاک من په ۰ لکه روپی جمله ۱۳۰۰۰۰۰ کیږي او دری څرواره کیږي اوس زما والده خپل د حق طلب کوي او شیرمحمد هم شریعت ته غاره اینبی ده. نو اوس دغه مځکه وخپل مالک ته ردیږي کنه که چیري ردسی خپل مالک ته بیا د دې شیرمحمد تاریاک او ټکټر حق کیږي که دغه معینی روپی چه قیمت د ټکټر او د تاریاکو دی او که چیري دغه مځکه ردسی خپل مالک ته دغه دولس کاله کیږي چه شیرمحمد ئی حصول خوری د دغه حصولو حق دغه ښځه پر لري کنه او دغه ښځه بیله اولاده چه هم اوس غښ سویدی هیڅ قریب هم نه لري.

زه شیرمحمد هم دغه ډول وایم چه په دغه شکل ئی مځکه راکړیده که چیري ددې ښځې حق وي ورکومه ئی او که ئی حق نه کیږي نو د مځکې خط دي راکړی د شاهدانو په حضور کی، او دغه ښځه هم دا اقرار کوي چه که چیری دغه مځکه زما حق نه وي زه دا خط ورکوم؟

**جواب**: دا چه شیرمحمد هم دا اقرار کوي چه په داغه شکل ئی دغه مځکه راکړی وه نو دغه مځکه د هغې ښځې حق بلل کیږي اوس به یی هغې ښځې ته ورسپاری که څه هم په وخت کی د بیعی هغه ښځه موجوده وي او خبره وي او سکوت یی کړی وي او بله دا خبره هم ضروری ده چه دغه شیرمحمد نسی کولای چه په زور او دعوی باندی هغه ټکټر او تاریاک یا دهغو قیمت د سردارولی یا د هغه د وارثانو څخه واخلی که هغو پخپله رضاء ورکړه خو ډیره ښه ده او که نوی نو حق د دعوی نه د سردارولی سره لري نه د هغه د ښځې او د هغه د وارثانو سره او

دا خبره هم یادساتل پکاردي چه دا واجبه ده چه سردارولی یا د هغه ورثه باید دده تکتیر او تاریاک که موجود وه یا دهغو مثل یا قیمت دده د مال څخه په خپله خوښه او رضاء شیرمحمد ته ورکړی ځکه چه دغه شیان یی ناحقه او بغیر له شرعی عقده څنی اخیستی دی او بلکه دا خبره هم ده چه هغه منافع او حصول چه څوکاله شیرمحمد د مځکی څه اخیستی دی د هغو ضمان نسته او هغه ښځه چه مالکه د مځکی ده حق نلري چه هغه حصول څنی واخلی.

فاذا كان ذلك الشخص من اقارب البائع او زوجها او زوجته فلاتسمع دعواه مطلقا فيما اذا لم يقر المدعى عليه ..... اما اذا أقر المدعى عليه بان المال المذكورهو مال المدعي و ادعى ان مجرد وجود المدعى وقت البيع و سكوته قد اسقط حقه في المال المذكور فلا يسمع دفع المدعي عليه هذا بل يلزم باقراره (دررالحكام صـ۲۹۰ج۴) وانما يثبت للمشترى حق الرجوع بالثمن اى في الاستحقاق على بائعه بشرطين الاول ..... الثاني انيكون الاستحقاق بالبينة لانها حجة متعدية اما اذا كن الاستحقاق باقرار المشترى او بنكوله او باقرارو كيلــه بالخـــصومة فلارجـــوع (تنـــوير) لان الاقرارحجـــة قاصـــرة (سليم باز صـ۲۲۹) هكذافي (شرح المجلة للاتاسى صـ۲۲۳ج۱) (دررالحكام صـ۷۸ج۱) لايجوزلاحد ان يأخذ مال احد بلاسبب شرعي (المجلة المـ۹۷) اى لايحل في كل الاحوال عمدا او خطأ اونسيانا ..... وذلك كالغصب والسرقة و القمارو الربا الخ ..... فمن تناول مال احدباحدى هذه الطريق فهو ظالم غاصب يجب عليه رده او مثله او قيمته هالكا (اتاسى صـ۲۶۴ج۱) (سليم باز صـ۶۲) لايلزم ضمان المنفعة في مال استعمل بتأويل ملك ولوكان معدالـلاستغلال (المجلة المـ۵۹۷) فلو اشترى حانوتا او خانا او طاحونة او ماشاكل ذلك من الاموال المعدة للاستغلال و تصرف فيه مدة ثم استحقه رجل منه لايلزم المشترى اجرالمدة المرقومة (سليم باز صـ۳۲۰).

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که زوی مسکین وي زکات واخلي بياله غني پلارسره مرسته کولای سي کنه؟

**سوال**: محترمو علماءُ يو سړی چه مسکيـن وي پلار ئی غنی وي او دواړه سره جلا سوی وي زکاة ورته روا دی کنه بيا په دغه زکاة د پلار سره کومک کولای سی کنه چه قبض يی کړی ؟

**جواب**: پلار چه غنی وي نو که ئی زوی بالغ او مسکيـن وو دغه زوی ته زکوة ورکول جائز دی هر کله چه ئی قبض کړی دغه زکوة بيا نو دخپل پلار سره کومک کولای سی لکن په طريقه د هبې او دا ځکه چه غني ته صدقه نه ورکول کيږی حتی که صدقة ورته ورکړی هم هبه گرځی نه صدقه نه په طريقه د صدقی او که زوی صغير وو بيا نو زکوة ورکول نه دی جائز.

ولايجوز دفعها الی ولد الغنی الصغير كذافی التبيين ولو كان كبيرا فقيرا جاز (الفتاوی الهندية صـ۱۸۹ج۱) هكذافی (الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۷۲ج۲) (فتاوی دارالعلوم ديوبند صـ۲۵۷ج۶) اذا دفع الزكوة الی الفقير لايتم الدفع مالم يقبضها او يقبضها للفقير من له ولاية عليه (الفتاوی الهندية صـ۱۹۰ج۱) لان الصدقة للغنی هبة (الدرالمختاربهامش ردالمحتارصـ۵۷۴ج۴).

(**نوټ**) پلار چی غني وي و خپل مسکيـن زوی ته زکوة نسي ورکولای او نه يی زوی پلار ته ورکولای سی.

ولا الی من بينهما ولاد (الدرالمختار) وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب (ردالمحتارصـ۶۹ج۲) هكذافی (امدادالاحكام صـ۴۹ج۲)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## د دولتي مځکو څخه د اډې، گنج او ميله ځای استفاده، کرايه او په اجاره ورکول او دنورو ځايو خلگ دې ځای ته په راتگ مجبورل څه حکم لري؟

**سوال**: د افغانستان د اسلامي امارت د دارالافتاء محترم رياست ته السلام عليکم.

محترما: هلمند ته د طالبانو د اسلامي تحريک تر راتگ د مخه د لښکرگاه د ښار د تاجائی په نامه د فلجاتو د مندوی د محصول يا تيکه او د جمعې د روځی گنج د موټرانو اډه د قرارداد په ډول په اجاره ورکول کيده چه د محترمو طالبانو د راتگ سره سم دا محصول معطل کړل سو چه تر اوسه پورې لا دا عايداتی منبع د تعويق په حال کی پاته ده په دي ورځو کی دوو نفرو هر يوه سنگر د حاجي امرالدين زوی او عزت الله د زين الدين زوی په مشترکه توگه د هلمند د ولايت محترم مقام ته عرض وړاندي کړو چه دوی پخپل عرض پاڼه کی د هلمند په ولايت کی د لښکرگاه چاه انجير. نادعلی. مارجي او د فقيرانو پر ځای د مواشيو گنجونه چه په هره هفته کی په نوبت سره ميلی کيږي د قرارداد په ډول په اجاره غوښتی دي چه د هلمند ولايت د مقام د هدايت په اساس د نومړو عريضه د يو پيشنهاد په ډول د همدې ولايت د اداری مجلس ته راجع شوه چه بالاخره د هلمند ولايت د اداری مجلس په خپل (۱۱) تصويب سره داسی فيصله کړې وه ((د ښاروالی د غوښتنی په مورد مجلس داسی فيصله کوي: چه ښاروالی دې په دې مورد کی د امارت د مقام يا دارالافتاء څخه اذن وغواړی مطابق د هغه دې خپله کړنه وکړی ولی بله خبره دا ده چه ښاروالی دې د چاه انجنير. نادعلی. مارجی او نادعلی ميلی دې مرکز ته را وغواړی)).

نو اوس د لښکرگاه ښاروالی د ذکر سوو منطقو د ميلو د مواشيو او نور کاروبار د خرڅولو او رانيولو پر سر چه په تيرو وختو کی ديولايحی له رويه محصول يا تاجائی اخستل کيده او د قراردادي په واسطه د دولت په حساب بانک ته تحويليدل يو ځل بيا پيشنهاد وي هيله ده چه د اسلامی شريعت د حکم سره سم د دې گنجو جواز او يا نه جواز په باره کی يو شرعی فتوی راته لطف کړی؟

《 الحاج مولوی خوشدل د هلمند ولايت مرستيال 》

**جواب**: دلته څو خبرې ډیرې مهمې دي:

(**اوله خبره داده**) دغه تاجائی او محصول اخستل جائز دي لکن لاندې شرطونه به پکښې موجود وي:

(**اول**) دغه ځکه چه ګنج باندې جوړیږي دا به د حکومت مملوکه وي دښتی او یا مرعی ځکې به نه وي

(**دوهم**) دغه تاجائی به په حقیقت کې کرایه اخستل وي د هغه کسانو څخه چه ګنج ته خپل مالونه راولی او دلی یی د روی یا موټران راولی او په اډه کې یی د روی.

(**دریيم**) داسی به نه وی چه د سودا پر سر د بائع او مشتری څخه مقرره اندازه پیسی اخلی که چیری دغه شرطونه نه وه موجود نو بیا دغه محصول اخستل ناروادی.

(**دوهمه خبره داده**) که چیری دغه ځکه چه ګنج یا اډه پر جوړیږي د حکومت مملوکه ځکه وي نو د پورته شرطونو سره سم یی په قرار داد ورکول او ټیکه کول جائز دي ولی دغه محصول په حقیقت کې اجاره ده او که چیری دغه ځکه مرعی وي یعنی هغه ځکه چه خاص د خلقو د استفادی د پاره پاته وي نو بیا ئی نه په اجاره ورکول جائز دي نه یی قرار داد او ټیکه جائزه ده نه په نامه د محصول او تاجائی پیسی ځنی اخستل جائز دي

(**دریيمه خبره داده**) د مارجی او نادعلی او نورو ولسوالیو څخه ګنجونه او میلی راغوښتل مرکز ته د دې لپاره چه تاجائی ځنی واخستل سی او همدارنګه په مرکز کې د نورو ځکو څخه و حکومتی ځکو ته د دغه ګنجو میلو اډو جبری انتقال ډیر سخت حرام دی او هیڅ جواز نه لري دغه قسم أوامر د حکومت هیڅکله صحت او جواز نه لري.

و اذا اتخذ الرجل مشرعة على شاطئ الفرات يسقى منها السقاؤون و يأخذ منه الاجر فان نبى على ملكه ان آجرها منهم للاستقاء لم يجز و ان آجر ماملكه لان الاجارة وقعت على استهلاک العين مقصودا وان آجرها ليقوم فيها السقاؤون و يضعون القرب فيها و يو قفون الدواب فيها جازوا ما اذا بنى المشرعة على ملک العامة ثم آجرها من السقائين لايجوز سواء آجر منهم للاستقاء او آجر منهم ليقوموا فيها و يضعوا القرب كذافى الذخيرة ﴿ الفتاوى الهندية صـ۴۵۳ج ۴ ﴾ استأجر سقفا ليجفف عليه الثياب او يبيت عليه يجوز بزازية ﴿ تنقيح الفتاوى الحامدية مع الخيرية صـ۱۲۱ج ۲ ﴾ و بطل ايضًا بيع المراعى و إجارتها ﴿ سليم باز صـ۱۰۱ ﴾ شروط نفاذ الاجارة وهى انيكون المؤجر مالكًا لما يؤجره او متصرفا به بنيابة عن المالک كالوكيل او بإذن منه كالمستأجر الخ ﴿ سليم باز صـ۲۵۳ ﴾ التصرف على الرعية منوط بالمصلحة ﴿ المجلة صـ۵۸ ﴾ اتى بصيغة المصدر المحذوف فاعله ليفيد التعميم لكل من يلى امرا عامًا يتعلق بالرعية فيشمل السلطان و من قلده السلطان بذاته او بالواسطة و يشمل ايضًا الاوصياء و متولى الاوقاف فان جميعهم تناط تصرفاتهم العائدة لمن هم تحت و لايتهم بالمصلحة اى بما فيه نفع يقود اليهم و الافتصر فهم غير صحيح ولانافذ شرعًا ﴿ شرح المجلة للاتاسى صـ۱۴۲ج ۱ ﴾ و فعل الامام منوط بالمصلحة والظلم ليس بمصحلة ﴿ اتاسى صـ۱۴۳ج ۱ ﴾

و اللہ تعالیٰ ﷻ اعلم۔

بسم الله الرحمن الرحیم

## که څوک دولتي ځمکه قبضه کړي
## او دملکیت سند ئې نه لري دولت ئې ترې اخیستلای سي؟

**سوال**: د افغانستان اسلامی امارت د دارالافتاء عالی ریاست محترم مقام ته السلام علیکم

محترما: د افغانستان اسلامی امارت اړوند اورګانونه په نظر کی لري چه د کندهار ولایت بعضی ولسوالیو په مرکز کښی چارچار پیره او متصله ساحه کی د ګرانو وطن والو د اقتصادي حالت د ښه کیدو او خلګو ته د کار د ښه زمینی د مساعد کولو په منظور یو شمیر مارکیټونه د قانونی نقشو مطابق چه زمونږ سره موجود دي جوړ کړی خو متأسفانه د تیرو (۲۰) کلونو په ګډوډ یو کښی خلګو د ولسوالیو متصلی ځمکی په مختلفو نومونو د دکان کور او للمی ځمکی په نامه سره قبضه کړی او اوس یی د ملکیت دعوه کوي وایی مونږ ابادی کړی باید وویل شی چه د خپل وخت د حکومت کوم اسناد هم په لاس نلري ویلی یی دا دي چه هغه ځمکه یا دښته چه بی هرچاته نسبت کیږي هغه شرعًا د هغه حق ده مونږ له تاسو محترمینو څخه احترامانه هیله لرو چه د لاندي مادو په اړوند د شرعی مسائلو په رڼا کښی مفصل او مدلل معلومات لطف کړی. امارتی ځمکه چه للمی، دکان، او کوریی ورباندي اباد کړی وي امارتي (دولتي) اسناد ونلری ایا دا راز ځمکی شرعًا د هغه ملکیت کیدای شی د یوې دښتې ځمکې یوازی په نسبت سره چه د فلانی دښته ده د هغه ملکیت کیدای شی ایا د خود سره جوړ شویو ځایونو د نړولو په وخت کښی هغوی عوضًا د ځه امتیاز مستحق ګرځیدلی شی یا نه؟

(الحاج ملا محمد حسن رحمانی کندهاروالی او تنظیمه رئیس)

**جواب**: محترم مستفتی صاحب د څو خبرو لحاظ دلته ډیر ضروری دی (اول) که حکومت ته په قطعی او یقینی ډول معلومه وي چه دغه ځمکه د امارت مملوکه ده او د فلانی ریاست یا فلانی اورګان مربوطه ده او دغه خلقو غصب کړی ده او د خلقو سره هم د ملکیت شرعی

ثبوتات نه وی نو حکومت کولای سی چه د خلقو ابادی و نړوی او خپلې نقشې او پلانونه عملي کړي.

( **دوهم** ) که چیري دغه خلق ددغو ځمکو د شخصي ملکیت دعوه کوي او حکومت یې د خپل ملکیت دعوه کوي نو د دوی سره باید په محکمه کې د قاضي صاحب په حضور کې د عوی وچلول سی او شرعي دلائل باید پیش کړل سی چه شاهدان قسم نکول د قسم څه او قباله شرعیه ده دا خبره چه د دي ځمکي یادښتي نسبت فلاني ته کیږي یا دا چه دا ځمکه په کاډسټر کې موجود ده دا خبري د شرعي دلائلو څخه نه دي په هغه صورت کې چه د مقابل لوري سره نور شرعي دلائل موجود وي: پس له دي څه چه قاضي فیصله وکړي بیا به د فیصلي مطابق اجراءات کیږي د دغسې منصفانه محکمې څخه تر مخه حکومت ته جواز نلري چه د خلقو څخه ځمکي واخلي.

( **دریم** ) که دا خلق قناعت ولري چه دغه ځمکي واقعًا د حکومت دي او امارتي دي لکن دوی ته د وخت صحیح حکومت اجازه ورکړې وه چه ځایونه پري جوړ کړي په دې صورت کې بیا هم حکومت نسي کولای چه دغه ځایونه د دوئ دلاس څه اخراج کړي.

( **څلورم** ) که دغه ځمکې پخوا مرعی ګاني وي د دغې ولسوالۍ یعني داسې ځمکې وي چه دعامو خلقو د منفعت اخستلو لپاره پریښوول سوي وي لکه پارک یا د کوچنیانو دلوبو میدان یا داسي نور مصالح عامه په دې صورت کې به د خلقو اباد کړی ځایونه نړول کیږي او اینده دپاره نه حکومت کولای سی نه رعیت چه داقسم ابادي پکښې وکړي.

( **پنځم** ) که دغه دښتې یا دغه ځمکې موات ځمکې وي او خلقو احیاء کړي وي او د هغه وقت د صحیح حکومت څخه یې اجازه اخیستی وي یا اسلامي امارت د همیشه پاته کیدلو اجازه ورکړي وي نو دا ځایونه د دوی شخصي ملکیت ګرځیدلي دي حکومت ئې نسي ځنې اخستلای او که یې د موقت احیاء یا موقت پاته کیدلو اجازه ورکړي وي یا قطعًا اجازه نه وي اخستل سوي نو بیا حکومت کولای سی چه د دوی ځایونه ونړوي او دوئ د دغو ځایو څه نقل کړي ـ یا ده دې وي چه موات ځمکې دولتي یا حکومتي ځمکې نه بلل کیږي فقط تولی او تصرف یې حکومت کولای سی

(شپږم) په ټولو هغو صورتو کی چه حکومت ته د خلقو د بناؤو د نړولو اجازه ورکول سوی ده په هغو صورتو کی خلق پر حکومت دا حق نلري چه په عوض کی ئی پیسي یا ځمکه ځنی واخلی لکن افضل او بهترینه خبره داده چه حکومت د غریبانو سره د پیسو یا د ځمکې کومک وکړي چه په ډیرو احادیثو شریفو کی هم په دغسی معونت او کومک امر سوی او هم یی ډیر زیات فضائل بیان سوي دي او په حکومتی مسئولینو کي چه هر څوک دغسی وکړی البته په اجازه د مشرانو دهغوئ سره په احادیثو شریفو کی د ډیرو زیاتو اجرتونو وعدې سوي دي.

لایجوز لاحد ان یتصرف فی ملک غیره بلا إذنه (المجلة المـ۹۶) لیس لاحد ان یأخذ مال غیره بلاسبب شرعی (المجلة المـ۹۷) یلزم ردالمغصوب عینًا و تسلیمه الی صاحبه الخ (المجلة المـ۸۹۰) ولیس للامام ان یخرج شیئًا من یداحد الابحق ثابت معروف (ردالمحتار صـ۲۸۱ج۳) وضع الید والتصرف حجة قاطعة ولایکلف ذو الیدالی اظهار سند یشهد له بذلک مع وضع یده (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۱۶ج۳ و صـ۱۱ج۲) طرق الاثبات التی یعتمد علیه فی القضاء هی الشهادة والیمین والنکول والاقرار (الفقه الاسلامی صـ۵۱۶ج۶) هکذافی (دررالحکام صـ۴۸۳ج۴) حق القرار۔ بنی المستأجر او غرس فی ارضٍ الوقف صارله فیها حق القرار..... وهو ان یحدث المزارع والمستأجر فی الارضِ بناء او غرسًا او کبسا بالتراب باذن الواقف او الناظر فتبقی فی یده (ردالمحتار صـ۱۸ج۴) (مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۱۴۹ج۲) (غمزعیون البصائر صـ۳۲۱ج۱) ولایجوزاحیاء ماقرب من العامر بل یترک مرعی لاهل قریة و مطرحًا لحصائدهم لتحقق حاجتهم الیه تحقیقا او تقدیرًا (شرح المجلة للإتاسی صـ۲۰۳ج۴) (مجمع الانهر صـ۵۵۸ج۲) ومن احیا ارضا میتة بغیر اذن الامام لایملکها فی قول ابی حنیفة رحمة الله تعالی علیه وقال صاحباه یملکها (الفتاوی الهندیة صـ۳۸۶ج۵) قال فی ردالمحتار وقول الامام هو المختار (اتاسی صـ۲۰۴ج۴) (ردالمحتار صـ۳۰۷ج۵) اذا احیا شخص ارضًا من الاراضی الموات بالاذن السلطانی صارمالکا لها وان اذن السلطان او وکلیه لشخص باحیاء ارضٍ علی ان لایکون متملکا بل لمجرد الانتفاع..... لایکون مالکا لتلک الارضِ (المجلة المـ۱۲۷۲). والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## په ولسوالي كه بله جامع جوړه سي ايا په هغه كي هم دجمعې لمونځ صحت لري؟

**سوال** : محترم رياست د دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ.
امابعد : مونږ د ترينكوټ ولايت د گزاب په ولسوالی كی يو محراب مسجد جامع په امر د اميرالمؤمنين او په مصرف د هغه جوړ كړی ده دغه جامع د مركزی جامع څه تقريبًا ۲۰ دقيقی په پياده مزل ليری ده او په مابين كی ئی كورونه مسلسل جوړ دي او د داغه جامع شاوخوا تقريبًا ۸۰ كورونه پراته دي او څلور نوري منطقی ورته نزدي دي كه هغه خلگ هم ورته راجمع سي نو تقريبًا ۱۰۰۰ نفره كيږي نو ايا په دغه نوې جامع كی د جمعی لمونځ صحت لري كنه ؟

(ملاسعدالله)

**جواب** : په دغه جامع كي د جمعې لمونځ بالكل صحت لري ځكه چه أمر د امام په جوړولو سره د جامع امر دی په جمعې سره او بل داچه دا جامع په ولسوالی كی ده او په ولسوالی كی قاضي او ولسوال او نور مسئولين د حكومت موجود وي نو په حكم كی د ښار گرځی نو كه اميرالمؤمنين صراحةً امر وكړی په اقامة د جمعی نو بلاشكه جمعه جائزه ده.

لو صلوا فی القری لزمهم اداء الظهر و هذا اذالم يتصل به حكم فان فی فتاوی الدينارى اذابنى مسجد فى الرستاق بأمر الامام فهو امر بالجمعة اتفاقا على ما قال السرخسى اه فافهم و الرستاق القرى كما فى القاموس (ردالمحتار صـ۵۹۰ج۱) ان مجرد امر السلطان او القاضى ببناء المسجد و ادائها فيه حكم رافع للخلاف بلا دعوى و حادثة و فى قضاء الاشباه امر القاضى حكم (ردالمحتار صـ۵۹۱ج۱) قال ابو القاسم هذا بلا خلاف اذا أذن الوالى او القاضى ببناء المسجد الجامع و اداء

الجمعـة لان هذامجتهـد فيـه فـاذا اتـصل بـه الحكـم صـار مجمعـا عليـه (طحطاوی علی الدرالمختار صـ۳۳۹ج۱) والمصر عنـد ابـی حنـيفة كل موضع ای بلـد لـه مفتی يرجع اليه فی الحـوادث و امير ..... وقاضـی ..... فی ظاهرالرواية قال قاضـيخان و عليه الاعتمـاد (مراقی الفلاح شرح نورالايضاح) قوله عنـد ابی حنـيفة صرح بـه فی التحفة عنـه ورواه الحسن عنـه فی كتاب الصلاة كذافی غاية البيان وبه اخـذ ابويوسف و هـو ظـاهر المـذهب كما فی الهداية و اختاره الكرخی و القدوری و فی العنـاية هـو ظاهرالرواية و عليه اكثر الفقهـاء (حـاشـية الطحطـاوی علـی مراقـی الفـلاح صـ۳۳۲) هكـذافی (شـرح الميدانی علی القدوری المسمی باللّباب فی شرح الكتاب صـ۱۰۹ج۱) ثم اختلفـوا فی تفسير المـصر اختلافـا كثيرا ..... والحدالصحيح ما اختاره صاحب الهدايـة انـه الـذی لـه اميـر وقـاضٍ ينـفذ الاحكـام و يقـيم الحـدود .....
وعن محمد رحـمة الله تعالی عليه ان كل موضع مصره الامام فهو مصر حتی انه ۱
لوبعث الی قرية نـائبـا لاقامة الحدود والقـصاصٌ تـصير مصرا فـاذا عزله تلحق بالقری (غنـية المستملی شرح منـية المصلی صـ۵۱۱ طبع مجتبائی)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که طرفين دمدعی بها مځکې له تصرفه دامير په امر بند سي دحاصلاتو نقصان به دچاپر ذمه وي؟

**سوال**: محترم رياست ته د دارالافتاء السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

اما بعد: اميرالمؤمنين هدايت کړی چه هغه ځمکه چه تر دعوی لاندی وي د حکومت او رعيت تر منځ په هغه ځمکه دې تصرفات تر هغه وخته بند وی ددواړه طرفو ترڅو چه فيصله قطعيت پيدا کوي .اوس زمونږ او د رعيت تر منځ پر يوه ټوټه مځکه دعوه ده او نهايي فيصلې تر اوسه نه دی صادرې سوي او موضوع تر جريان لاندي ده او په مدعی بها ځمکه کی شنه فصلونه او شپيشتی سته اوس که طرفين د تصرفه بند سی بيا فصلو نه او شپيشتی وچيږی او د منځه ځی اوس خواهش کوو چه د پورته مسئلې په ارتباط شرعي حکم راته راکړئ تر څو مشکل حل سی ؟

﴿مولـــوی عبـــد الولی رئـــيس قـــضايای امـــارت﴾

**جواب**: مدعی عليه چه ذواليد او متصرف وي په مځکه کي او د قاضی لخوا يا حکومت لخوا يی تصرف بند سوی وي نو د تصرف بنديده که په دي معنی وي چه د غه مځکه دې د يو ثالث په لاس کی وي او ددواړو د تصرفه دې و وزی نو دا جائز نه دي بلکه د مدعی عليه په لاس کی به وي تر هغه چه مدعی اثبات ده خپلې مدعی کوي.

سئلت اذا طلب المدعی من القاضی وضع المنقول فی يد عدل حتی تتم المرافعة هل يجيبه الی ذلک فالجواب ما فی البحر عن الفتاوی الصغری لو طلب المدعی من القاضی وضع المنقول علی يدعدل فانکان المدعی عليه عدلا لايجيبه وان فاسقا اجابه وفی العقار لايجيبه الافی الشجر الذی عليه الثمر لان الثمر نقلی آه ﴿الفتاوی الکاملية صـ۱۱۵﴾ ماثبت بزمان يحکم ببقائه مالم يقم الدّليل علی خلافه فاذا ثبت بزمان ملک شئ لواحد يحکم ببقاء الملک له مالم يوجد مايزيله ﴿الملجة المـ۱۰﴾ وليس للامام ان يخرج شيئًا من يد احد الابحق ثابت معروف ﴿الاشباه و النظائر صـ۱۲۴﴾ .

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دوکانداران که دښاروالي ټاکلي نرخونو څخه سرغړاوی کوی څه سزاء باید ورکوله سي؟

**سوال** : د دارالافتاء د رياست محترم مقام ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.
امابعد : څرنګه چه د ښاروالی د پلټنی مؤظفين هره ورځ تخلف کاران د نرخ نيسی خصوصًا قصابان او نانوايان او هغه ته صرف د څو وروځو لپاره د دکانو تړلو جزاء ورکول کيږي او هره ورځ اعلانونه اوری او دوکيلانو لخوا هم ورته روزمره خبر ورکول کيږي هيله ده چه په دي مورد کښی شرعی فتوی موږ ته را وليږي چه مونږ ورباندي شرعی کړنه وکړو ؟

﴿کندهار ښاروال مولوی دين محمد حقبين﴾

**جواب** : محترمه د تسعير يعنی نرخ ورکولو په هکله بايد ووايو چه نرخ ورکول دکاندارانو يا تجارانو ته په شريعت مقدس کی ناجائز او ممنوع دی حضرت سرورکائنات ﷺ د نرخ ورکولو څخه انکار کړيدی او فقهاء کرامو حکومت ته اجازه نه ده ورکړی چه خلقو ته نرخ مقرر کړی بلکه فقهاء کرام وايي هغه سړی چه خپل مال په مقرر سوی نرخ خرڅوي او په هغه نرخ راضی نه وي يوازي يی د حکومت له بيري خرڅوي مشتری ته دغه مبيعه حرامه ګرځی ، په يوه صورت کی تسعير ته اجازه سته هغه دا چه خلک خوراکی يو شی په غبن فاحش خرڅ کړی غبن فاحش دي ته وائی چه د اصل نرخ څخه ئی په دوه چنده قيمت ورکړی نو بيا حکومت ته د تسعير اجازه سته او په دغه صورت کی هم تخلف کونکی ته به په اول وار وعظ دوهم وار تهديد دريم وار تعزير ورکوی نو دغه قصابان او نانوايان چه مستفتی ذکر کړي دي مونږ يی وينو چه دوی غبن فاحش نه کوي نو دوئ ته د نرخ ورکول اجازه نسته او تخلف کونکی ته نو تعزير بالکل حرام ګرځي.

وبنـاء عليه الاصل عـدم التسعير و لايسعر حـاكم على النـاس و هـذا متفق عليه بين الفقهاء ( الفقه الاسلامی صـ۵۸۸ج ۳ ) و لايسعر حاكم لقوله ﷺ لاتسعروا فان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق الخ ( ردالمحتار صـ۲۸۳ج ۵ ) ولاينبغی للسلطان ان يسعر على النـاس الا ان يتعدی ارباب الطعام تعديا فاحشا فـی القيمـة فـلا بـأس بـذلک بمشورة اهـل الخبـرة بـه ( الاختيارلتعليل المختار صـ۱۶۱ج ۴ ) هكذافی ( تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ ) و ( الهداية صـ۴۶۹ج ۴ ) ( بدائع الصنائع صـ۱۲۹ج ۵ ) ( حاشية الطحطاوی على الدرالمختار صـ۲۰۱ج ۴ ) و ( ردالمحتار على الدرالمختار صـ۲۸۳ج ۵ ) ( اللباب صـ۱۶۷ج ۴ ) ( البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ) .

قوله و يتعدون عن القيمة تعديا فاحشا بان يبيعوا قفيزا بمائة و هو يشتری بخمسين ( العناية على الهداية بهامش فتح القدير صـ۴۹۲ج ۷ ) ( الطحطاوی صـ۲۰۱ج ۴ ) وفی المحيط انكان البائع يخاف اذا زاد فی الثمن على ماقدره او نقص فی البيع يضربه الامام او من يقوم مقامه لايحل للمشتری ذلک لانه فی معنی المكره ( البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ) هكذافی ( تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ ) و ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۸۳ج ۵ ) و ينبغی للقاضی و للسلطان ان لايعجل بعقوبة من باع فوق ماسعر بل يعظه و يزجره و ان رفع اليه ثانيًا فعل به كذلک و هدده و ان رفع اليه ثالثا حبسه و عزره حتی يمتنع عنه و يمتنع الضرر عن الناس ( البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ) هكذافی ( تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ )

والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**اميرالمؤمنين دبيت المال مالک دي که متصرف؟اوپه بيت المال کي څومره واک لري ؟**

**سوال**: محترمو علماء کرامو د دارالافتاء السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

قدرمنو علماء ايا اميرالمؤمنيـن د بيت المال په حصه کي خود مختـار دی کنه؟ يعني زما مطلب دا دي که چيری اميرالمؤمنين و غواړی چي يو چا ته موټر ورکړی او هغه سړی په کور کي ناست وي د تحريـک کـار نه کوي او يا د تحريک کار کوي وزير دی يا رئيس دی خو د موټر څخه شخصی کار اخلی مثلاً چه د ده زړه و غواړی هغه کوي خو پـه امر د اميرالمؤمنيـن ايا د اخروی گرفت څخه خلاصيږي که يا ؟

﴿حافظ نوراحمد ﴾

**جواب**: اميرالمؤمنيـن په بيت المال کی تصرفات کولای سی لکن تصرفات يی دوه ۲ قسـمه دی يو دا چه د دغه تصرف په وخت کی مصلحت او يو منفعت په نظر کی نيول سوی وي دا قسم تصرف ئي جائز او صحيح دی او بل دا چه مصلحت او منفعت په هغه تصرف کښی نـه وي يا ئی ضرر تر منفعت ډير وي دا رقم تـصرفات ئی ناجائز او حرام دي ولـی اميرالمؤمنيـن خو مالک د بيت المال نه دی فـقط يو متولی دی نفع بـه ور رسوي امـا ضرر ور رسول ورتـه حرام دي ، او مـوټر چـه هـر څـوک پـه شخـصی کـاروکي مـصرفوی نـو کـه اميرالمؤمنيـن اجـازه د شخصي کارو ورته کړی وه نو پروا نه لري او که د هغه اجازه نـه وی يـا ئـي منع کړی وي نـو بيـا ئی شخصی چلول حرام دی او اميرالمؤمنيـن هغـه وخت بايد اجازه ورتـه وکـړی چـه مـصلحت پکښی وي نـه عـامـه اجـازه: پـه بيت المـال کـی ډير زيـات او انتهـائی احتيـاط پکـار دی هـم اميرالمؤمنيـن ته هم نور خلقو ته ولی په بيت المال کی دعامو خلقو اشتراک او حقوق سته چه د دې حساب ورکول په آخرت کښی ډير گران دي.

وکـل مـارئيـت ( يـا اميرالمؤمنـيـن ) ان الله تعـالی يـصلح بـه امرالرعية فافعله ولاتؤخره فـانی ارجولـک بـذلک اعظم الاجـروا فـضل الثـواب ﴿ الخراج لابی يوسف رحمة الله تعـالی صـ۱۸۷ ﴾ و من الاجتهـادات فـصل بيـت المـال عن مال الحـاکم الخاصْ . . . . . و اعتبار الحـاکم نـائبـا عـن الامة فـی التـصرف

بـالاموال العامة و فـق المصلحة كما يتصرف بمال اليتيم (الفقه الاسلامی صـ١٢ج ۴) و الواجب على الائمة ان يوصلوا الحقوق الى أربابها و لا يحبسونها عنهم و لا يحل للامام و اعوانه من هذه الاموال الاما يكفيهم و عائلتهم و لايجعلونها كنوزا و ما فضل من هذه الاموال قسم بين المسلمين فان قصر الائمة فی ذلک فوباله عليهم (الفتاوى الهندية صـ١٩١ج١) وبعث (عمر ﷺ) عثمان بن حنيف على مساحة الارضين و جعل بينهم شاة كل يوم فی بیت المال ..... و قال انی أنزلت نفسی و ایاکم من هذا المال بمنزلة ولى اليتيم فان الله تبارک و تعالى قال و من كان غنيا فليستعفف و من كان فقيرا فليأكل بالمعروف (الاشباه و النظائر مع حاشية للحموى صـ٣٧٠ج١) فهذا يدل على ان للامام ان يعطى الارضّ من بيت المال على وجه التمليک لرقبتها كما يعطى المال حيث رأى المصلحة (الفتاوى المهدية صـ۶۴۶ج٢) لما تقرر فی کتب الفروع من ان تصرف الامام و كذا نائبه منوط بالمصلحة (الفتاوى المهدية صـ۶۴۷ج٢) ای أن تصرف الراعی فی أمور الرعية يجب انیکون مبنيا على المصلحة و مالم يكن كذلک لايكون صحيحا ..... كذلک القاضی لا تعتبر تصرفاته في الامور العامة و احكامه مالم تكن مبنية على المصلحة مثاله لو امر القاضی شخصابان يستهلک مالا من بيت المال او مالالشخص آخر فاذنه غير صحيح حتى ان القاضی نفسه لواستهلک ذلک المال يكون ضامنا (دررالحكام شرح مجلة الاحكام صـ۵٧ج١) و يجب على الامام ان يتقى الله تعالى و يصرف الى كل مستحق قدر حاجته من غير زيادة فان قصر فی ذلک كان الله عليه حسيبا (شرح المجلة للاتاسي صـ١۴٣ج١) وفعل الامام منوط بالمصلحة (اتاسی صـ١۴٣ج١).

بیت المال میں امیرالمومنین اور عام مسلمانوں کے مساوات ...... بیت المال سے خلیفہ اسلام کی تنخواہ صرف پیٹ بھرائے کھانا اور جاڑی گرمی میں دوجوڑے کپڑی (جواهر الفقه ص١٨١ج٢)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## هغه مالونه چې انتقال ئې بهرته بند وي
## که دولت ئې ونیسی دولت کولای چې په مناسب قیمت ئې وپلوري؟

**سوال**: د دارالافتاء عالی مقام ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.
محترما: تیره ورځ تقریبًا ۴۰۰ څلور سوه پسونه په قاچاقی ډول خارج ته بیول کیدل د طالبانو له خوا نیول شوي او فعلاً د ښاروالی په ورکشاپ کی ولاړ دی دا چه د اختر په ورځو کی ئی قصابان نه اخلی که ستاسو اجازه وي په عامو خلګو او طالبانو باندي په مناسب قیمت و پلورل سی اُمید دی په دي باره کی لازم هدایت راکړی؟

﴿مولوی دین محمد حقبین د کندهار ښاروال﴾

**جواب**: اول خو منعه کول د تجارانو یا عامو خلقو د انتقالولو څخه د خپلو مالو و خارج ته داخپله حرام دی که چیري شدید ضرورت نه وو او که چیری شدید ضرورت وو او دلته په داخل کی خلقو ته عام ضرر رسیدی بیا نو حکومت خلق راګرځولای سی لکن په دې شرط چه نه به هغه مالونه حکومت لیلاموی نه به ئی پخپله خرڅوی نه به خلقو ته وایي چه دلته یی خرخ کړه نه به نرخ تعینوي بلکه خلق او خپل اختیار ته پریږدي چه دلی په داخل کي یی هر ځای چه خرڅوی پر هر چا چه یی خرڅوي په هر څو چه یی خرڅوي نرخ ورکول په شریعت مقدس کی حرام دی هیڅ جواز فقهاؤ نه دی ورکړی یو په هغه صورت کی که په دوه ۲ چنده قیمت خلقو هغه شی خرڅوي یعنی د ۵۰ افغانیو شی ئی په ۱۰۰ افغانی خرڅاوه نو خاص هغه شی ته نرخ تعینول جائز دی او که یی د دوه ۲ چنده څه په لږ ګټه خرڅاوه مثلاً د پنځوسو افغانیو شی ئی په ۹۰ افغانی خرڅاوه نو په دې وخت کی نرخ ورکول حرام دي فقهاءُ رحمهم

الله تعالی هیڅ اجازه نه ده ورکړی او د حضرت نبی کریم ﷺ څخه خلقو مطالبه د نرخ د تعینولو وکړه هغه منعه وکړه او دې ته ئې مظلمة وویل.

عن انس ﷺ قال قال الناس یا رسول الله غلا السعر فسعّر لنا فقال ان الله هو المسعّر القابض الباسط الرازق و انی لارجوان القی الله ولیس احد منکم یطالبنی بمظلَمة فی دم ولامال و اسناده علی شرط مسلم و صححه ابن حبان و الترمذی (ردالمحتار صـ۲۸۳ج۵) و بناء علیه الاصل عدم التسعیر و لایسعر حاکم علی الناس (الاختیار لتعلیل المختار صـ۱۶۱ج۴) هکذافی (تبیین الحقائق صـ۲۸ج۶) و (الهدایة صـ۴۶۹ج۴) و (بدائع الصنائع صـ۱۲۹ج۵) و (ردالمحتار صـ۲۸۳ج۵) و (اللّباب صـ۱۶۷ج۴) و (البحر الرائق صـ۲۰۲ج۸) فانکان ارباب الطعام یتحکمون و یتعدون عن القیمة تعدیافاحشا و عجز القاضی عن صیانة حقوق المسلمین الابالتسعیر فحینئذ لابأس به بمشورة من اهل الرأی و البصیرة (الهدایة صـ۴۷۰ج۴) قوله تعدیا فاحشا بیّنه الزیلعی و غیره بالبیع بضعف القیمة (طحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۰۱ج۴) قوله تعدیافاحشا بان یبیعوا قفیزا بمائة و هو یشتری بخمسین (عنایة بهامش فتح القدیر صـ۴۹۲ ج۸) هکذافی (الکفایة مع فتح القدیر صـ۴۹۲ج۸) الملک اختصاصٌ بالشئ یمنع الغیر منه و یمکن صاحبه من التصرف فیه ابتداء الالمانع شرعی (الفقه الاسلامی صـ۵۷ج۴) لایجوزلاحد ان یتصرف فی مال الغیر بلا اذنه (المجلة المـ۹۶) و عدم الجوازشامل لجمیع انواع التصرف من استعمال کرکوبٍ و لبسٍ ووضع جذعٍ علی حائط و دخول دارٍ و مرورٍ بأرضٍ و من اعارةٍ و ایداعٍ و اجارةٍ و صلحٍ و هبةٍ و بیعٍ و رهنٍ و هدمٍ و بناءٍ و جمیع ما یجریه من العقود الخ (شرح المجلة للاتاسی صـ۲۶۲ج۱).

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه څوک په خپله دروان موټر مخته ورغوځارسي ترموټر لاندي سي مړسي پر موټروان ديت سته كنه؟

**سوال**: د دارالافتاء محترم رئيس صاحب ته السلام عليكم ورحمة الله و بركاتهٗ.
و بعد محترما: تخمين (۲۶) ورځې کېږي د شکاپور دروازی په سړک باندي يو هلک (۱۱) کلن پر بايسکل باندی را روان وو چه بارداره موټر را روان دی چه هلک د موټر څنګ ته په موټر پسی روان دی هلک غواړی چه بايسکل و دروی ځکه چه مخ ته لاره بنده سوه هلک د موټر وخواته غوځار سو چه د موټر اخری ټير ورباندي تير شو هلک و فات سو چه شاهدان محل واقعه موجود دي او شاهدی اداکوی چه ډريور ملامت نه دی هلک خپله غوځار سوی دی هيله کوم معلومات راکړی؟
﴿شاه محمد ولد سيد محمد مسکونه تيموريان ولسوالی ډنډ﴾

**جواب**: که چيری واقعه داسی پيښه وي لکه مستفتی چه ليکلی دی نو ضمان او ديت پر موټروان نه لازميږي ولی په دغه واقعه کی خپله غوځاريدل د هلک سبب د دغه پيښی ګرځيدلی دی تعدی او بی احتياطی د موټروان نسته پکښی او د داسی پيښو څخه ځان ساتل د انسان په قدرت کی نه دی.

أن مجلس مجمع الفقه الاسلامی المنعقد فی دورة مؤتمره الثامن..... بعد اطلاعه على البحوث الواردة الى المجمع بخصوص موضوع حوادث السير و بعد استماعه الى المناقشات التى دارت حوله..... قررمايلى..... الحوادث التى تنتج عن تسيير المركبات تطبق عليها احكام الجنايات المقررة فى الشريعة الاسلامية و انكانت فى الغالب من قبيل الخطأ والسائق مسئول

عمايحدثه بالغير من إضرار سواء في البدن أم في المال اذا تحققت عناصرها من خطأ و ضرر ولا يعفى من هذه المسئولية الا فى الحالات الاتية (أ) اذا كان الحادث نيتجة لقوة قاهرة لايستطيع دفعها و تعذر عليه الاحترازمنها وفى كل أمر عارضٌ خارج عن تدخل الانسان (ب) اذا كان بسبب فعل المتضرر المؤثر تأثيرا قويا فى احداث النتيجة (ج) اذا كان الحادث بسبب خطأ الغير او تعديه فيحمل ذلک الغير المسئولية ﴿الفقه الاسلامی صـ٥٢١٥ج٧ ط جديد﴾ ان الرجل الذی قفز أمام السيارة ان قفز بقرب منها بحيث لايمكن للسيارة فی سيرها المعتاد فی مثل ذلک المكان ان تتوقف بالفرملة و كان قفزه فجأة لايتوقع مسبقالدی سائق متبصر محتاط فان هلاكه او ضرره فی مثل هذه الصورة لا ينسب الى سائق السيارة و لايقال انه باشر الاتلاف فلا يضمن السائق و يصير القافز مسببًا لهلاک نفسه وذلک لوجوه الخ ﴿بحوث فی قضايا فقهيه معاصرة لمولانا محمد تقی عثمانی رح صـ٣١٦﴾ و قد يقال ان النائم الذی ينقلب على الرجل الاخر يضمن ماأصابه من ضرر و بالرغم من ان النائم لاتكليف عليه فانه حكم عليه الفقهاء بالضمان اجماعًا فتبين ان المباشر يضمن ولو صدرمنه الفعل بغير اختياره فينبغی ان يضمن السائق ايضًا ولو صدرمنه الاهلاک بدون اختياره والجواب عن ذلک ان المباشر لوكان هو السبب الوحيد فی هلاک شخص فانه يضمن الهلاک ..... ولكن اذا كان هلاک شخص آخر مختار يراحمه فی نسبة الاهلاک اليه و تأثير فعله اقوى من تأثير المباشر فان الهلاک يضاف الى ذلک الشخص الاخر كما قدمنا فی غير واحد من الامثلة و لاسيمافی مسئلة الناخس ﴿بحوث فی قضايا فقهيه صـ٣١٨﴾

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دهندوانو اونورو ذمیانو بندسوی عبادت ځایونه

## اسلامي دولت بیرته خلاصولای سي؟او دولت دلاوارثه مځکو تصرف کولای سي؟

**سوال** : عزتمندو : د اسلامی أمارت د اسلامی او بشری عـاطفی لـه مخـی د اهـل ذمـه او غائیبنو او باغی اشخاصو د ملکیت د ساتنی لپاره د قضایای امارت په ترکیب کی یو تحت تامین هیئت تاکلی چه هیئت د پورتـه اشخاصو جایداد ساتی او هغو تـه د اجاری د جمع کولو وظیفه لري پـه د غـه جمله کی اوس ځینی هندوان د خپل د مقدساتو اجازه او د هغـه عبادت ځایونو تخلیه غـواړي ـ مونږ تـه پـه دي هکله معلومات راکړئ چه دوی پـه شریعت مقدس کی د خپل عبادت ځایونو د تخلیه کیدو حق لري که څنګه؟ـ بل دا چه د هندوانو یا نورو ذمی اشخاصو ځینی ملکیتونه لکه وچ باغونـه مخروبـه سرایونه او دکانونـه ستـه چه خلگ ناوړه استفاده ځنی کوي امارت اسلامی دا حق لري چه دغه ځایونه پـه طریقـه آباد کړی او عوائد ئی د اصولو پـه چوکاټ کی د اهل ذمی پـه حساب کی جمع کړی ـ د پورتـه دوو مسئلو عملی څیړنه او شرعی معلومات ستاسو د حضور څخه مطلوب لرو ؟

﴿د قضایای أمارت ریاست﴾

**د اول سوال جواب** : د هندوانو عبادت خانی چه یواری د عبادت کولو څخه بندی او معطله سی بیا ئی پـه دارالاسلام کی د عبادت لپاره اجازه نسته او دغه بندی عبادت خانی نسی خلاصیدلای د عبادت کولو لپاره ځکه چه دا معنی د نوی جوړیدلو د عبادت خانی لري ، او حال دا چه د نوی جوړیدو د عبادت خانی اجازه پـه دارالاسلام کی نسته ، او همدا غـه هندوان په یو بل سرای او مکان کی چه پخوا ئی د عبادت خانی معنی نه درلوده عبادت نسی کولای ، ځکه چه دا هم په معنی کی د نوی عبادت خانی جوړول دی او دا خو منع دي په دارالاسلام کی

ویعادالمنهدم ای لا ماهدمه الامام بل ما انهدم اشباه ـ قوله اشباه حیث قال فائدة نقل السبکی الاجماع علی أن الکنیسة اذا هدمت و لو بغیر وجه لا یجوز اعادتها . . . . . قال الخیر الرملی فی حواشی البحر اقول کلام السبکی عام فیما هدمه الامام و غیره و کلام الاشباه یخص الاول و الذی یظهر ترجیحه

العموم لان العلة فيما يظهر ان فی اعادتها بعد هدم المسلمین استخفافًا بهم ... ومنها أن هذه الكنيسة مهجورة انقطع اهلها و تعطلت عن الكفر فيها فلا يجوزالاعانة على تجديد الكفر فيها و هذا اعانة على ذلک بالقدر الممكن حيث تعطلت عن كفر اهلها و قد نقل الشرنبلالی فی رسالته عن الامام القرافی بانه لايعاد ما انهدم من الكنائس و الامن ساعد علی ذلک فهو راضٍ بالكفر آه فنعوذ بالله من سوء المنقلب ( ردالمحتار صـ۲۹۷ـ۲۹۸ج ۳ ).

نقل الامام السبكی الاجماع علی أن الكنيسة اذا هدمت ولو بغير وجه لايجوز اعادتها الخ قلت تستنبط من ذلک اذا قفلت لاتفتح و لو بغير وجه كما وقع ذلک فی عصرنا فی القاهرة فی كنيسة بحارة زويلة قفلها الشيخ ابن الياس قاضٍ القضاة فلم تفتح الی الان ( ملتقی الابحر علی هامش مجمع الانهر صـ۶۷۴ج۱ ) لو ارادوا ان يتخذوا بيتًا لهم معداً للسكنی كنيسة يجتمعون فيه يمنعون منه لان فيه معارضة للمسلمين و ازدرآء بالدين ( ردالمحتار صـ۲۹۸ج ۳ ).

**د دوهم سوال جواب**: چونکه امام او قاضی لره ولایة عامه سته او تصرف په مال کي د يتيم او د بيت المال او د غائب کولای سي په شرط د نفع او د خير لپاره نه دا چه ضرر او تاوان ئی وي نو تاسو چه ئی ذکر کړیدی د هندوانو د سرايو دا تصرف د نفع پر بناء دی او دا يو جائز تصرف دی باید تاسو ئی وکړی خو دا تصرف هغه وخت تاسو کولای سی چه هغه هندوانو خپل مالونه نه خپلو قريبانو ته پريښی وی او نه خپل وکيل يا شريک يا اجاره داريابل داسی شخص ته بلکه محضًا لا وارثه پاته وي يا هغه هندو مطالبه وکړئ چه زما مال دي د دغه شخص څخه واخيستل سی ، او د هغه شخص سره هغه هندو عقد ( يعنی مبادلة د مال په مال سره ) نه وی کړی يا ئی کړی وي لکن وخت ئی تير سوی وی خو د دوی مطالبه شرط ده بايد ووايو چه د هندوانو مالونه د مسلمانانو د مالو څخه هيڅ تفاوت نه لري لکه هغه مسلمان چه غائب وي حکومت ئی د مذکوره صورتو څخه بغير تصرف نسی کولای همدا راز د دوی مالونه داغه حکم لري تر هغه وخته چه محکمی د دوی په ( لحاق په دارالحرب ) حکم نه وی صادر کړی که څه هم فعلاً گذاره په هندوستان کی کوي.

التصرف على الرعية منـوط بـالـمصلحة لماكـان لامـام الـمسلمين ولاية نظـارة على عـموم الرعيـة فـى الامورالعـامة كـان تـصرفه على الرعية منـوط بالمصلحة آه و كـذا تصرف القاضى فيماله فعله فـى اموال اليتامى و التركـات و الاوقـاف فانـه مقيـد بـالـمـصلحة فـان لـم يكـن مبنيـا عليهـا لا يـصح (المجلة سليم بـاز المـ۵۸ - صـ۴۳) ان لعقد الذمة احكامًا منها عـصمة الـنفس . . . . . ومنها عصمة الـمـال لانهـا تابعـة لعـصمة الـنفس و عـن سيدنا على رضى الله تعالى عنـه انـه قـال انمـا قبلوا عقـد الذمة لـتكون اموالهم كـاموا لنـا و دماؤهم كدما ئنـا (بدائع الصنائع صـ۱۱۱ج۷) هكذافى (الفقه الاسلامى صـ۴۵۰ج۶) لايجـوز لاحــد أن يتـصرف فـى مـال الغيـر بـلا اذنـه (الـمجلـة المــ۹۶) وعدم الجواز شامل لجميع انواع التصرف من استعمال كـركـوب و لـبس و وضع جذع على حـائط و دخـول دارو مـروربـارضٍ و من اعـارة وايـداع و اجـارة و صـلح و هبة و بيع و رهـن و هـدم بنـاء و جميـع مـا يجـريه من العقود تمليكـا بعـوضٍ او بغيره يتوقف على اجازته . . . . . فتصرف الغير فى مال الغيـر ممنـوع الا ان تكون و صاية او ولاية او تدعو ضرورة (شرح المجلة لـلاتاسى صـ۲۶۲ج۱) .

ومنهـا انه يعـتبـر كـالمفقـود الغـائـب الـذى منعـتـه ظـروف قـاهـرة من الرجـوع الى مقامه و ادارة شؤونه بنـفسه اوبوكـيل عنـه مـدة اكـثـر من سنـة (الفقـه الاسـلامى صـ۱۴۵ج۴) الاصل بقاء ما كـان على ماكـان (المجلة المـ۵) .

الاستصحاب يكون على هذا نوعين الاول ان الشئ اذا كـان عـلى حـال فى الزمان الماضى فهو على حـاله فى الـمستقبل مـالم يوجـد مـايغيره الـثانى الـخ ومن فـروع النـوع الاول مسـئلة المفقود الذى انـقطع خبره و لم يعلم موته ولاحياتـه وذلـك لانـه حيـن تغيبه كـانـت حيـاتـه محقـقة فمـا لـم يوجـد دليل عـلى موتـه حـقيقـة او يحكم بموتـه بعـد اكـمـال تـسعين سنة من عـمره او طوت اقرانـه لـيس لورثته اقتسـام مالـه ولا تؤخـذ و ديعـتـه من مودعـه (اتاسى صـ۲۰ج۱) هـكـذافى (سـليم بـاز صـ۲۰)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## ښاروالي کولای سي چې کرايه دارانو اومالکانوترمنځ ددکانوکرايه وټاکي؟اوبل داچې کرايه دسرقلفي دعوي کوي؟ اوبل داچې کرايه دارئې بل کرايه دارته په لوړه کرايه ورکولای سي؟

**سـوال**: د افغانستان د دارالافتاء عالی مقام ته السلام علیکم د کندهار ښار د شخصی ملکیتو د مالکینو او کرایه نشیانو تر منځ د کرائی په تعین کی مشکلات موجود دی چه ددوی په عریضه کی درج دی اوس سوال دا دی:

( **اول** ) کرایه نشیان د دغه شخصی دکانو اکثرأ ئی د سرقلفی ادعا کوي او مالک د دوکان موافق نه دی دغه کرایه نشین و اصل مالک ته ډیره ناچیزه کرایه ورکوي او پخپله همدغه دوکان (کرایه نشین) خپله دکان نه کوی و نورو ته ئی په ډیره لوړه کرایه ورکوي شرعًا حق لري کنه؟

( **دوهم** ) د ښاروالی ریاست شرعًا دا حق لري چه کما فی سابق و شخصی دکانو ته چه د مالک او کرایه نشین په کرایه جنجال وی ورته کرایه تعین کړی کنه بیا هم د اصل مالکانو کوم چه شخصی املاک ئی دی ددوی عریضه درته احترامًا وړاندی کوو تر څو ئی شرعًا حق اثبات شی؟

﴿الحاج مولوی صدرعظم﴾

**د اول سوال جواب**: دلته دوه صورته دي (اول صورت دا دی) چه دغه کرایه داران خپله سرقلفی په اثبات ورسوی په دي صورت کی دغه کرایه دار کولای سی چه دغه دوکان دریم سړی ته په کرایه ورکړی په هر څو کرایه چه یی خوښه وي لکن اصلی مالک ته به اجرة مثل

ورکوي نو که د غه سرقلفي والا په دوکان کی یو څه بناء او تعمیر کړی وو نو اجرة مثل به یی د هغه دوکانو څه اندازه کیږي چه د غسی بناء او تعمیر نوی پکښی مثلاً د یو دکان اجرة مثل بی له دغه بناء او تعمیر څه یو لک افغانی وي او پس له دغه بناء او تعمیر څه پنځه لکه افغانی وي نو اجرة مثل به یو لک افغانی مقرریږي.

وفائدة الخلو انه كالملك فتجرى عليه احكامه من بيع و اجارة و هبة الـخ (غمـز عيـون البـصائر صـ٣٢٢ج١) والمـراد باجر المثـل فيهـا (اى فـى الدكاكين الموقوفة اذا كان فيها للمستأجر سكنى او كرداراو جدک) هـو ماتستأجر بـه اذا كانـت خالية عـن البنـاء (مجمـوع رسـائل ابـن عابديـن صـ١٥٦ج٢) هـكذافى (الفتاوى المهدية صـ٤٨٧ج٢).

(**دوهم صورت دا دی**): چه د غه کرایه داران خپله سرقلفي په اثبات نه ورسوی نو هغه مدة او وقت د کرایی که پوره سوی وو مالک دی خپل دکان واخلی او هر چا ته چه یی خوښه وی د خپلی خوښی د پیسو مطابق دی په کرایه ورکړی او که وقت پوره نوی نو دی انتظار وکی تر څو چه وقت پوره کیږي لکن که مالک یتیم وو یا دکان د وقف وو بیا به د اوسنی نرخونو مطابق کرایه مالک ته ورکوی او کرایه دار هر وقت کولای سی چه دکان دریم سړی ته په کرایه ورکړی لکن که کرایه دار د خپل ځان څه یو څه تصرف پکښی وکی مثلاً برق یی ورته راوستوی یا ئی رنګ کړی یا ئی یو فرش پکښی اوار کړی یا ئی د خپل مال څه یو شی ور سره ملګری کړی یا د اسی نور نو بیا ئی په هر څونه زائد قیمت په کرایه ورکولای سی او که ئی عیناً هغه دکان بغیر له څه تصرف څه په کرایه ورکاوه نو بیا به ئی په دونه قیمت ورکوي چه د اصلی مالک څه ده اخیستی دی زائدی پیسی ئی حلالی او پاکی ندي.

للمستأجر ایجارالمأجور من آخر ﴿المجلة المـ۵۸۶﴾ الاجارة بعدما انعقدت صحیحة لایجوزللاجر فسخها بمجرد زیادة الخارج فی الاجرة لکن لو آجر الوصی او المتولی عقار الیتیم او الوقف باقل من اجر المثل فسدت الاجارة و لزم المستأجر اجر المثل ﴿المجلة صـ۴۴۱﴾ سئلت عن المستأجرا ذا آجر لغیره ما استأجره هل یجوزله ذلک فالجواب ..... نعم یجوزبالمثل و بالاقل و بالاکثر و لاتطیب الزیادة بل یجب التصدق بمازاد الا اذا کان بخلاف الجنس او عمل به عملاً کبناء فتطیب صّرح به فی الاشباه نقلا عن البزازی آه ﴿الفتاوی الکاملیة صـ۱۹۵﴾ هکذافی ﴿الاتاسی صـ۶۸۶ج۲﴾ ﴿کفایة المفتی صـ۳۶۶ج۷﴾.

**د دوهم سوال جواب**: په داسی مسائلو کی شریعت مقدس د اهل رءی او باخبره خلقو مشوری ته اعتبار ورکوي نه یوازی حاکم یا ښاروالی ته. یعنی د ښار د مشهوره او باخبره خلقو څه دی معلومات و سی د هغوی څه دی د اجرة مثل د اندازی معلومات وسی او د هغوی سره دی مشورة وسی او بیا چه پر کمه اندازه اتفاق وسو د دوی د جنجال د رفع کولو لپاره دی هغه اندازه تعین سی لکه څنګه چه فقهاء د تسعیر په بحث کی لیکلی دي.

فانکان ارباب الطعام یتحکمون و یتعدون عن القیمة تعدیا فاحشا ( بان یبیعوا قفیزا بمائة و هو یشتری بخمسین فیمنعون منع دفعًا للضرر عن المسلمین - عنایة علی الهدایة ) و عجز القاضی عن صیانة حقوق المسلمین الا بالتسعیر فحینئذ لا بأس به بمشورة من اهل الرءی و البصیرة ﴿الهدایة مع فتح القدیر صـ۴۹۲ج۸﴾ بمشورة اهل الخبره ای اهل الرءی و البصارة ﴿مجمع الانهر صـ۵۴۸ج۲﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که باري اوسواري موټر ټکرسي دمړيو ديت پر کوم موټروان ده؟

**سوال**: د کندهار د مرکزی دارالافتاء رئيس صاحب حضور ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

وبعد: محترمه زمونږ يو مونی موټر د بولدک له طرفه د کندهار پر طرف پر عام سړک پر خپل لاس را روان ؤ د کندهار له طرفه د مذکور منی پر لاس بل غټ موټر ور روان ؤ خو کله چه سره مخ سول د غټ موټر موټروان خپل لاس ته موټر اړاوه د مخ حصه يي واړوله د شاحصه چه ئی اړه وله مونی د مذکور غټ موټر پر بغل و لګيدی دوه کسان په مونی کی مړه سول، عرض دا دی چه دغه دوه نفره چه په منی کی مړه سول ديت لري کيا او که ئی ديت وي نو د مونی پر موټروان به وی او که د غټ موټر پر موټروان به وي که د شريعت مقدس په رڼا کی جواب راکی عين لطف به مو وي؟

(المستفتی قاری فيض محمد صاحب)

**جواب**: په اوسني وخت کي خو د بولدک او قندهار تر مابين لاره ډيره خرابه ده ډير داسی ځايونه سته چه غټ موټر نسی کولای چه پر خپل لاس ولاړ سی او داسی ځايونه هم ډير سته چه موټر پر کوم لاس روان وي دستی بل لاس ته نسی اوښتلای خصوصًا غټ موټر، نو هر کله چه مونږ دا حالت په نظر کی وساتو نو بايد ووايو چه په دغسی لار کی بايد مونی موټر داسی را روان وي چه د سرعت په وجه د موټروان د اختياره و نه وزی او هر کله چه غټ موټر د ده پر لاس را روان وي نو يا بايد لار ور ايله کړی يا هغه ته دونه موقع ورکړی چه په يو مناسب ځای کی خپل لاس ته واوړی نو که دغه مونی موټر د سرعت په وجه د توقف وخت نه وی پيدا کړی، نو مونی والا مباشر بلل کيږي او غټ موټر والا مسبب بلل کيږي او مباشر ضامن وي او که مونی والا خپله بندګی سعيه پوره کړی وي او هيڅ نوعه بی احتياطی ځنی نه وی سوی بيا نو

غنټ موټر والا ته د مباشرت نسبت کيږي او ضمان به هم پر هغه لازميږي او پر هر يوه چه ضمان لازم سو هغه به ديت ورکوي.

المباشـر ضـامن و ان لـم يتعمـد (المجلـة المـ۹۲) المتـسبب لايـضمن الابالتعمـد (المجلـة المـ۹۳) اذا اجتمـع المباشـر و المتـسبب يـضاف الحكـم الى المباشر (الفقه الاسلامى صـ۵۷۸۱ج۷ ط جديـد) المتـسبب هو من يفعـل فعـلا يـؤدى الى ضـرر مـا و لكن بواسطة اخـرى و يـضمن المتـسبب اثـر فعلـه بـشر طين (۱) اذا كان متعديا و التعدى هو فعـل الـسبب بغيـر حـق سواء أكـان متعمداً للضرر أم لايقصد الضرر (۲) و اذا كان هو العامل الاهم فى احـداث الـضرر بـأن يغلـب الـسبب المباشرة (الفقه الاسلامى صـ۵۷۸۵ج۷ ط جديـد) المباشر هـو الـذى حـصل الـضرر بفعلـه بـلا واسطة اى دون تـدخل فعـل شخص آخـر مختـار و يكون هـو الـضامن اذا كـان الـسبب لاينـفـرد بالاتـلاف اذا تـرک وحـده دون مباشرة اى انـه كـان هـو المـؤثر الاقوى فى احـداث الضرر (الفقه الاسـلامى صـ۵۷۸۶ج۷ ط جديـد) حـد المباشـر ان يحصل التلف بفعله من غير ان يتخلـل بيـن فعلـه و التلف فعـل مختـار كـذافى الولوالجية من كـتاب القـسمة و يفهـم منـه ان حـد المتـسبب الـذى حـصل التلـف بفعلـه و تخلـل بيـن فعلـه و التلـف فعـل مختـار (غـمز عيـون البـصائر للحموى صـ۴۶۶ج۱) اذا كـان تـأثير المـسبب اقوى من تـأثير المباشـرا ضـيف الحكـم الى المـسبب (بحوث فى قضايا فـقهية معاصرة لمولانـا محمد تـقى عثمـانى صـ۳۰۴) ان مجلس مجمع الفقه الاسلامى المنـعقـد ..... بعدا طلاعه على البحوث الـواردة الى المجمـع ..... قرر مايلى ..... الـسائق مـسئول عمايحدثه بـالغير من أضـرار سواء فى البـدن أم فـى المـال اذا تحقـقت عنـاصـرهـا من خطـأ و ضـرر و لايعفـى من هـذه المـسئولية الافـى الحـالات الاتيـة (أ) اذا كـان الحـادث نـتيجـة لقـوة قـاهرة لا يـستطيع دفعهـا و تعـذر عليه الاحتـراز منـهـا و هـى كـل أمـر عـارض خـارج عن

تدخل الانسان (ب) اذا كان بسبب فعل المتضرر المؤثر تاثيرا قويا فى احداث النتيجة (ج) اذا كان الحادث بسبب خطاء الغير أو تعديه فيتحمل ذلك الغير المسئولية الخ (الفقه الاسلامى صـ٥٢١٥ج٧ ط جديد) اذا اتخذ الشخص الاحتياطات و مع ذلك وقع الضرر فلا يضمنه (الفقه الاسلامى صـ٢٨٧٢ج٤ ط جديد) الاصل ان سائق السيارة مسئول عن كل مايحدث بسيارته خلال تسييره اياها و ذلك لان السيارة آلة فى يده و هو يقدر على ضبطها فكل ماينشأ عن السيارة فانه مسئول عنه و الذى يظهرلى ان هناك فرقا كبيرا بين الدابة و السيارة من حيث ان الدابة متحركة بنفسها بخلاف السيارة فانها لاتتحرك الابفعل من السائق و من هذه الجهة أرى ان ماذكره الفقهاء من الفرق بين ما أصابته الدابة بفمها أويدها و بين مانفحتها برجلها او بذنبها لايتأتى فى السيارة (بحوث فى قضايا فقهية معاصرة صـ٣١٠).

سوال، بس وغیرہ گاڑیوں کی مصادمہ سے کوئی شخص ماراجائے تو یہ قتل خطاء شمار ہوگا یا قتل کے کوئی اور قسم ہوگی ڈرائیور پر کفارہ اور اس کی عاقلہ پر دیت واجب ہوگی یا اس کا حکم کچھ اور ہوگا عاقلہ کی تفصیل آج کل کیا ہوگی بینواتوجروا، الجواب، باسم ملہم الصواب یہ قتل خطأہے ڈرائیور پر کفارہ اور عاقلہ پردیت واجب ہوگی الخ (احسن الفتاوی ص۵۴۷ ج۸)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که له حکومت څخه دابادئ په شرط مځکه واخلي بیاعذر پیښ سي اباده نسي بل حکومت ئې بل چاته ورکړي هغه مالک ئې خرڅه کړي دکوم مالک حق کیږي؟

**سوال** : د قندهار ولایت د دارالافتاء محترم رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ .وبعد: محترمه اسامي محمد رحیم ولد عبدالغفار د نادعلي د ولسوالي اوسیدونکی د ولایت مقام ته عریضه ئی کړی او ویلی دي، چه ۲۱۵ نمبر مځکه رهایشی مځکه د کارته لګن په ساحه کښي په کال ۱۳۵۶ شد دولت لخوا راکړه شوه، د ملحد تره کی د حکومت په وخت کی زما پلار ئی د سیاسی بندیانو په قطار کی ونیوی او تر اوسه پوری لادرکه دي مونږ یتیمان پاته سولو، وروسته د وخت د حکومت د ظلم په اساس پاکستان ته مو هجرت وکړ او نمره د غسی پاته شوه، وروسته په کال ۱۳۵۹ د تره کی د حکومت په وخت کی زما نمره ئی مسترده او عبدالخالق نامی ته توزیع کړیده لکه د ریاست حقوق د موضوع په ارتباط د ریاست عمومی څخه معلومات کړیدی او ریاست عمومی ویلی دي چه ۲۱۵ نمره مځکه د کور چه د کارته لګان په ساحه کی موقعیت لري نظر په مکتوب ۱۰۵ـ۱۴ / ۱ / ۱۳۵۶ د عبدالغفار د عباس د زوی په نامه توزیع شوی او د نمري قیمت ۱۳۷۸۱ افغانی کیږي تحویل کړی نو عبدالغفار نامی د خپل تعهد مطابق چه د دولت سره کړئ وو نمره ئی جوړه نه کړه نو غیر نافذ التصرف دولت په کال ۱۳۵۹ د عبدالغفار نامي څخه وضع او ریاست عمومی په ۹۴ـ۸ / ۶ / ۱۳۵۹ مکتوب په اساس و عبدالخالق د صفدر زوی ته توزیع کړه چه عبدالخالق بیله دی چه نمره آباده کړی پر بل شخص باندي خرڅه کړی ده ریاست قضایاء امارت جریان مکمل ستاسو مقام ته ولیکل تر څو مونږ ته د موضوع په ارتباط قاطع نظر ولیکی ځکه زمونږ په عقیده چه د عبدالغفار نامی شخص کمونستانو وړی او د دوی عذر معقول دی هیله کوو چه مونږ ته فتوا راکړئ، تر څو موضوع خاتمه ورکړه شی او زمونږ په نظر شرعی عذر دی همدارنګه عالیقدر محترم امیرالمؤمنین هم ویلی دي چه شرعی عذر ولري نه دي مسترده کیږي ۴ ماده په رسمي جریده کی؟

(مولوی عبدالرازق (حنفی) د هلمند د امارتي قضایاوو رئیس)

**جواب** : دغه مځکه چه پخوا حکومت پر محمدرحیم خرڅه کړیده او دغه شرط د أبادیدو ئی پر اینبی دی نو دغه بیعه صحیح ده او هغه شرط معتبر دی ځکه چه عرف خاص د حکومت پکښې موجود دی نو دغه مځکه د محمدرحیم شخصی مملوکه ده او هغه شرط چه پاته سوی دي هغه د شرعی عذر پر بناء پاته سوی دی چه هغه د محمدرحیم بندی کیدل دی په سیاسی بندیانو کی نو اوس نه د ترکی د حکومت استرداد صحت لري او نه اوس حکومت ته جواز لري چه مځکه مسترده کړی بلکه مځکه به د محمدرحیم یتیمانو ته پاته کیږي.

فالبیع الصحیح یفید الملکیة حتی قبل القبض ﴿دررالاحکام صـ۱۰۷ج۱﴾ البیع بشرط متعارف یعنی المرعی فی عرف البلد صحیح و الشرط معتبر ﴿الملجة المـ۱۸۸﴾ و افادت هذه الجملة انه یعتبر العرف الخاصّ الحادث ﴿اتاسی صـ۶۴﴾ المذهب عدم اعتبار العرف الخاصّ لکن افتی کثیر باعتباره (الدرالمختار) فأ فادان عدم اعتباره بمعنی انه اذاوجد النص بخلافه لایصلح ناسخاللنص ولامقید اله والافقد اعتبروه فی مواضع کثیرة..... وتمام الکلام علی هذه المسئلة مبسوط فی رسالتنا المسماة بنشر العرف فی بناء بعض الاحکام علی العرف ﴿ردالمحتارصـ۱۶ج۴﴾ وحاصل ما حققة فی تلک الرسالة ان العرف الخاصّ معتبروان خالف المنصوصّ علیه فی کتب المذهب مالم یخالف المنصوصّ الشرعی یعنی الکتاب والسنة والاجماع ﴿اتاسی صـ۶۴ج۲﴾ یلزم مراعاةالشرط بقدرالامکان﴿ المجلة المـ۸۳﴾ فعلم من هذا ان لزوم مراعاة الشرط مقید بقدرالامکان ولامؤاخذة فیما فوق الجهدوالامکان ﴿اتاسی صـ۲۳۶ج۱﴾ ویرد علی هذه المادة ان النبی ﷺ نهی عن البیع و الشرط فتجویز البیع بالشرط هو ترجیح للعرف علی النص..... والجواب ان علة النهی عن البیع بالشرط الوارد فی الحدیث الشریف مایثیره البیع بالشرط من النزاع بین المتبایعین الخ والشروط التی یجری بها العرف و العادة لیست ممایسبب نزاعا ویثیر خصاما فلا تکون مقصودة بالنهی الوارد فی الحدیث الشریف (ردالمحتار)﴿دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۱۵۹ج۱﴾ والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## پرجامو خامک جائزدي کنه؟اودهديرې بوټي څوک کښلای سي جوازلري کنه؟

**سوال** : ( اول ) د غاړو او پټوانو په خامک سره جوړيدل جائز دي کيا ؟
( دوهم ) په هديرو کی چه شين غزيان ولاړوی د هغو کښل حکومت يا رعيت ته جائز دي کيا ؟

**( حافظ مولوی عبدالستار )**

**د اول سوال جواب** : دلته دوې خبرې دي.

**( اوله خبره دا ده )** چه د جامو ښايسته کول او ښايسته جامې اغوستل او زينت کول چه د شريعت مقدسه د احکامو او جزئياتو سره مخالفت و نه لري جائز دی که يی نيت د تکبر نه وو او علامـة د تکبـر دا ده چـه د خلقـو سره پخـوا ده کومـه وضـعه او اخـلاق کـول د دغـو جـامو اغوستلو سره په هغه کی تغير راولی.

**( دوهمه خبره دا ده )** چه بعضی خلق دا اشتباه کوي چه په غاړه او پټو کی سوڼ کاريږي او هغه وريښم دی اصلی خبره دا ده چه که دغه سوڼ اصلی او حقيقی وريښم وي نو دا واضحه ده چه دغه غاړه او پټو مکروه تحريمی گرځی ولی وريښم چه تر څلورو گوتو اندازه بالاسی نو اغوستل يی مکروه تحريمی دی او که دغه سوڼ يا وريښم نه وی يا مصنوعی وريښم وي نو په هره اندازه چه وي اغوستل يی جائز دی او هغه سوڼ چه اوس په بازارو کی مروج دي غالبًا اصلی او حقيقی وريښم نه دی.

(قـل مـن حـرم زينـة الله التـی اخـرج لعبـاده و الطيبـات مـن الـرزق ) ( القرآن الكريم الاعراف آية ۳۲ ) قال عليه الصلوة والسلام ان الله يحب ان يری اثر نعمته علی عبده ( ردالمحتار صـ۲۴۷ج ۵ ) و مباح و هو الثوب الجميل للتزين فی

الاعياد و الجمع و مجامع الناس (ردالمحتار صـ٢٤٧ج ٥) الاصل فى اللباس و الزينة الحل و الاباحة سواء فى الثوب و البدن و المكان (الفقه الاسلامى صـ٢٦٣٢ج ٤) لبس الثياب الجميلة مباح اذا لم يكن للتكبر و تفسيره انيكون معها كما كان قبلها (الفتاوى السراجية صـ٧٥ ردالمحتار صـ٢٤٧ج ٥) يحرم لبس الحرير ..... الاقدر اربع اصابع (الدرالمختار صـ٢٤٧ج ٥) لما صح عن ابن عباس ﷺ انما نهى النبى ﷺ عن الثوب المصمت من الحرير فاما العلم و سدى الثوب فلا و المصمت الخالص و لخبر مسلم نهى رسول الله ﷺ عن لبس الحرير الاموضع أصبع او اصبعين او ثلاث او اربع (ردالمحتار صـ٢٤٧ج ٥).

سلک جو سن سی یانباتاتی اجزا سے بنا ہو اس کا پہننا بلاشبہ جائز ہے البتہ جو سلک کپڑی کابنایا ہوا ہو وہ ریشم ہے اور مردوں کی لئے بشرائط معتبرہ فی الحریر جائز یا ناجائز ہوگا (کفایت المفتی ص۔۱۵۰ج۹) آج کل سلک کی مختلف ایسی کپڑے ایجاد ہوگے ہے میں خاصے چمک پائی جاتے ہے لیکن غالباً ریشم کی بجائے کوئی دوسری طرح اس میں چمک پیدا کی جاتی ہو تو پہننی میں حرام نہیں (جدید فقہی مسائل ص۔۱۸۵ج۱) آج کل عموماً مصنوعی ریشم استعمال ہوتاہے اس کا استعمال جائز ہے اگر چہ عرف میں اس کو ریشم کہتی ھیں ہاں اگر کسی کپڑی کا اصلی ریشمی ہونا تحقیق سے ثابت ہو جائی تو اس کا استعمال مردوں کی لئے جائز نہ ہوگا (احسن الفتاوی ص۲۲ج ٨).

**د دوهم سوال جواب**: دلته څو صورته دي (١) که دغه درختی (شین غزیان) ددغې مځکې تر هد یره کیدو تر مخه شنه سوي وه او په هغه وخت کی مځکه د یو چا مملوکه وه نو درختې د مالک دی او که تر هدیره کیدو وروسته یو چاشنه کړی وه نو بیا هم د دغه سړی بلل کیږي او که یی اینبوونکی د دغه درختو معلوم نه وو نو بیا اختیار قاضی لره دی هغه کولای سی چه دغه درختې خرڅي کړی او پیسی ئی په دغه مقبره خرڅي کړی.

مقبرة عليها اشجار عظيمة فهذا على وجهين اما انكانت الاشجار ثابتة قبل اتخاذالارضٓ مقبرة او نبتت بعد اتخاذالارضٓ مقبرة ففى الوجه الاول المسألة

على قسمين اما انكانت الارضٌ مملوكة لها مالک او کانت مواتا لا مالک لها و اتخذها اهل القرية مقبرة ففى القسم الاول الاشجار باصلها على ملک رب الارضٌ يصنع بالاشجار و اصلها ماشاء و فى القسم الثانى الاشجار باصلها على حالها القديم و فى الوجه الثانى المسألة على قسمين اما ان علم لها غارس او لم يعلم ففى القسم الاول كانت للغارس و فى القسم الثانى الحكم فى ذلک الى القاضى ان رأى بيعها وصرف ثمنها الى عمارة المقبرة فله ذلک كذا فى الواقعات الحسامية ( الفتاوى الهندية صـ۴۷۳ج ۲ ) هكذا فى ( التتارخانية صـ۸۷۳ج ۵ ) رجل جعل ارضه مقبرة و فيها اشجار ارادورثته ان يقطعوا الاشجار فلهم ذلک ( تاتارخانية صـ۸۷۳ج ۵ ).

( **نوټ** ) : د مقبرې درختې كه يو چا وقف كړى وي د يوشى د پاره نو ضرور بايد هغه شى ته مصرف سي او كه يى جهة د وقف معلوم نه وو نو د مسجد په عمارة كي هم مصرفيدلاى سى او كه داغه مقبرې متولى نه درلو دى نو بغير له قاضى څه بل چا ته د تصرف اجازه نسته.

وفى مجموع النوازل سئل نجم الدين عن اشجار فى مقبرة هل يجوز صرفها الى عمارة المسجد قال انلم تكن وقفا على وجه آخر فقيل له فان تداعت حوائط المقبرة الى الخراب أيصرف اليها او الى المسجد قال الى ماهى وقف عليه ان عرف و ان لم يكن للمسجد متول و لا للمقبرة فليس للعامة التصرف فيها بدون اذن القاضى ( تاتارخانية صـ۸۷۵ج ۵ ) ( هندية صـ۴۷۶ج ۲ ).

او كوچنى درختى او وبنو پريكول مكروه تنزيهى دى كه شنه وه او مباح دى كه وچ سوى وه.

خورد گھاس اگر سبز ہو تو اس کا کاٹنا مکروہ تنزیہی ہے۔ يكره ايضًا قطع النبات الرطب والحشيش من المقبرة دون اليابس ( شامى ) ( كفايت المفتى ص۱۱۶ج ۷ )

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## عشر او نصف عشر په کومو مځکو کي وي؟

**سوال**: مځکه چه د کاریز یا باوړی په اوبو اوبه سی عشر واجبیږي او که نصف عشر؟

**جواب**: مځکه چه په داسی اوبو اوبه سی په اکثره مدة کی چه هغه اوبه یا په قیمت رانیول کیږي یا په ډیر تکلیف مځکی ته برابریږي نو نصف عشر لازمیږي چه د دي جملی څه د باوړی او کاریز اوبه هم دی ولی د باوړی اوبه یقینًا په تکلیف راخیژي او مصرف غواړی او د کاریز اوبه هم په تکلیف وي ځکه وخت په وخت یی اصلاح کولو ته ضرورت وي. حاصل دا چه مدار د عشر او نصف عشر پر محنت او قیمت دی که محنت یا قیمت موجود وو نصف عشر دی او کنه نو عشر دی.

اتفق الفقهاء علی ان العشر یجب فیما سقی بغیر مؤنة (مشقة) کالذی یشرب من السماء (الامطار) ومایشرب بعروقه وهو الذی یشرب من ماء قریب منه ویجب نصف العشر فیما سقی بالمؤن کالدوالی (النواعیر) النواضح والدلیل لهم قول النبی ﷺ المتقدم (فیما سقت السماء والعیون او کان عثریا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر) وانعقد الاجماع علی ذلک کما قال البیهقی وغیره..... وسبب التفرقة واضح وهو کثرة المؤنة فی ارض السقی وخفتها فی ارض البعل (الفقه الاسلامی ص۱۸۹۲ج۳ ط جدید) لان العلة فی العدول عن العشر الی نصفه فی مسقی غرب ودالیة هی زیادة الکلفة کما علمت وهو موجودة فی شراء الماء (ردالمحتار ص۵۵ج۲).

چه میفرمایند علماء دین ومفتیان شرع متین که در دیار مایان کاریز وقناتها هستند که از مزرعه تا منبع آب مثلاً دوازده هزار بغل فاصله دارد وهر سال کار وزحمت میخواهد که اگر کار کرده نشود آبش خشک میشود وخرج ومصرف کارش باندازه ای میباشد که نصف بلکه دو حصه محصول پیدا وارش بکارکنان صرف میشود درین صورت عشر واجب شود یا نصف عشر.....

الجوب باسم ملهم الصواب درین صورت نصف عشر واجب است. قیاسا علی الغرب والدالیة قال فی الشامیة تحت قوله وقواعدنا لاتاباه لان العلة فی العدول الخ (احسن الفتاوی ص۳۳۶ج۴).

عشری زمیں اگر بارش یا دریا کی سیل یا قدرتی چشمہ کی پانی سے سیراب کی جاتے ہو تو اس کی پیداوار میں عشر (۱/۱۰) واجب ہے اور اگر پانی محنت یا قیمت سے حاصل ہوتا ہو جیسی کنواں ٹیوب ویل اور نہری پانی تو اس میں نصف عشر (۱/۲۰) واجب ہے نہری پانی کا آبیانہ ادا کر کے اسے حکومت سے خرید ا جاتا ہے (احسن الفتاوی ص۳۵۵ج۴) ٹیوب ویل نل کنوان جس سی زمیں کی اندر سے پانی نکالتے میں (فیروز اللغات ص۴۳۶) واللہ تعالی ﷻ اعلم.

این حکم درمورد باوری صحیح است امادربارۂ کاریز منظور نشد

بسم اللہ الرحمن الرحیم

**که مځکه په بیع وفاورکړي، پیسي قبض کړي، بیرته بیع فسخ کړي، څه پیسي مشتري ته وصول کړي، مځکه بیرته له مشتري په اجاره واخلي داجاره صحیح ده کنه اوددې وخت حاصل دچادي؟**

**سوال**: محترما ما یونفر ته خپله مځکه په مقابل کی د څلورنیم لکه کالدارو په بیع وفاء ورکړه وروسته له څه مدې څخه د هغو مذکورو کلدارو څخه یو لک پنځه دیرش زره کلداری ما بیرته ورکړی چه عقد سره فسخه کړو او متباقی کلداری ئی پاته دي پوښتنه داده چه مځکه اوس هم وفاءً دده په لاس کی ده مابعد د دې یوه اندازه کلدارو په ورکولو سره مځکه او د مځکی حصول د چاکیږي . او دغه مذکوره مځکه مشتری بیرته ماته په اجاره راکړی ده ایا دغه اجاره صحیح ده کنه ؟

**(حاجی محمد ابراهیم)**

**جواب**: هغه عقد چه په لفظ د بیع الوفاء وسی حکم یی د بیعی فاسدي دي په لزوم کی د فسخه کولو او په نه جواز کی د أجاری نو ستاسی د سوال په جواب کی باید ووایو چه تر څو پوری چه د مشتری څلورنیم لکه کلداری په کامل ډول ورونه رسوی ته حق نلری چه خپله مځکه څنی وغواړی تر هغه وقته پوری مځکه او د هغی حصول د مشتری دی او دا چه مشتری بیرته د غه مځکه تا ته په اجاره درکوي نو راجح قول د فقهاؤ دا دی چه دا اجاره صحیح نده.

وللمدين او الراهن الذى هو البائع تأدية الدين قبل حلول اجله و استرداد المبيع ليس للمشترى ان يمتنع عن اعادة المبيع متى اخذ ماله كله لان الاجل حق للمدين فله ابطاله ( دررالحكام صـ۴۳۳ج ۱ ) ولو استأجره بائعه لايلزمه اجر لانه رهن حكما ( الدرالمختار ) قوله لايلزمه الاجر افتى به فى الحامدية تبعًا للخيرية فانه قال فى الخيرية ولاتصح الاجارة المذكورة ولاتجب فيها الاجرة على المفتى به سواء كانت بعد قبض المشترى الدارام قبله ...... وفى البزازية فان آجر المبيع وفاء من البائع فمن جعله فاسدا قال لاتصح الاجارة ولايجب شئ و من جعله رهنا كذلك و من اجازه جوزالاجارة من البائع و غيره الخ قوله فهى صحيحة اى بناء على القول بجوازالبيع كما علمت فانه يملك الانتقاع به و قد علمت ترجيح القول بانه رهن و انه لاتصح اجارته من البائع ( ردالمحتار صـ۲۷۶ج ۴ ) هكذافى ( شرح المجلة للاتاسى صـ۱۲ج ۲ ) الثانى القول الجامع لبعض المحققين انه فاسد فى حق بعض الاحكام الخ قال فى البحر و ينبغى ان لايعدل فى الافتاء عن القول الجامع ( ردالمحتار صـ۲۷۴ج ۴ ) والصحيح ان العقد الدى جرى بينهما انكان بلفظ البيع لايكون رهنا ثم ينظر ان ذكرا شرط الفسخ فى البيع فسد البيع و ان لم يذكرا ذلك فى البيع و تلفظا بلفظ البيع بشرط الوفاء او تلفظا بالبيع الجائز و عندهما هذا البيع عبارة عن بيع غير لازم فكذلك الخ ( الفتاوى الهندية صـ۲۰۹ج ۳ ) هكذافى ( الفتاوى الخانية بهامش الهندية صـ۱۶۵ج ۲ () شرح المجلة للاتاسى صـ۴۱۵ج ۲ ) على قول من جعل بيع الوفاء فاسدا لو قبضه و آجره من غيره فله الاجرة لانه لوغصب و آجر فله الاجرة فهذا أولى ولو آجر من مالكها لم يجز اذالردعلى مالكه يجب عليه و قد ردعليه ( جامع الفصولين صـ۱۷۳ج ۱ ) و قد ذكر هذالمسئلة ( اى مسئلة اختلاف المتبايعان فى ان البيع الذى وقع بينهما بات ام وفاء ) فى جواهر الفتاوى فى الباب الرابع والسادس من البيوع و الثالث من الدعوى و ذكر فيها

اختلافا کثیرا و اختلاف فتوی و تصحیح و لکن علیک بما فی الخانیة فان قاضیخان من اهل التصحیح و الترجیح (حواشی المحقق الفاضل خیر الدین الرملی علی جامع الفصولین صـ۱۷۸ج۱) اذا شرط فی بیع الوفاء انیکون قدرمن منافع المبیع للمشتری صح ذلک الخ (المجلة المـ۳۹۸) ولو لم یشترط ذلک لکان للمشتری جمیع منافع المبیع (شرح المجلة للاتاسی صـ۴۲۱ج۲) لوکان الثمن الاول حالا فاجله المشتری عند الاقالة فان التاجیل یبطل و تصح الاقالة و ان تقایلا ثم اجله ینبغی ان لایصح الاجل عند ابی حنیفة فان الشرط اللاحق بعدالعقد ملتحق باصل العقد عنده کذافی القنیة (انقرویة صـ۲۹۷ج۱) والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**دنورمحمد ترکي د وخت دمځکو تقسیمات څه حکم لري چې دچاشخصي مځکې ئې بغیر عوض نوروته ملکاً ورکړي؟اوکه په هغو کي دولتي مځکي ورکړي وي هغه دچاکیږي؟**

**سوال** : د کندهار د مرکزی دارالافتاء ریاست ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

محترما د ترکی حکومت په شپږ جریبی یو شخص ته ۶ جریبه ځمکه ورکړه چه په دغه مذکوره ځمکی کی ۳ جریبه شخصی وه او هغه نوره د دولت وه بیا کله چه د ترکی حکومت رنگ سو نو حکومت د حفیظ الله امین راغلی نو د امین حکومت داسی امر وکړچه شخصی مځکې د هرچا په لاس کی وي هغه دی ایله کړی نو دغه شخص ۶ جریبی ټوله ځمکه ترک کړه او بیا نوموړی مځکه د دغه شپږ جریبی اخښی تصرف کړه د هغه وخته تر دغه وخت پوری نو اوس هغه شپږ جریبی دعوه کړیده چه دغه ځمکه زما ده نو ستاسی د محترم مقام څخه هیله کیږي په دي هکله مونږ ته شرعًا مسئلې ولیکی چه آیا هغه ذوالیدی چه د ترکی د حکومت په وخت راغلی وه اعتبار لري کیا او په دغه ترک سره هغه پخوانی ذوالیدی باطله کیږی کیا او شخص شپږ جریبی وایی چه ما بالکل ترک نه دی کړی زما مدعی ناحقه وایی نو که چیری ترک سوی وي که نه وی مونږ ته معلومات راکړی ؟

**جواب**: دا چه تاسو ویلی دي چه په دغه ۶ جریبه کی دری ۳ جریبه شخصی وه او دری ۳ جریبه دولتی وه نو باید ووایو چه شخصی مځکه حتمًا باید هغه شخص ته یا د هغه ورثه ته ورکول سی چه اصل مالک دی نه فاسد حکومت او نه امیرالمؤمنین کولای سی چه بی له شرعی طریقی ئی بل چاته ورکړی او د دولتی مځکی څخه که مطلب دا وي چه د دولت شخصی مملوکه اباده مځکه یی ورکړیده نو دا اوس په اسلامی امارت پوری اړه لري که یی مصلحت وبولي کولای سی چه یا ئی اوسنی ذوالید یا هغه تارک یا بل اجنبی سړی ته ورکړی ولی د هغه فاسدو حکومتو تصرفات اعتبار نلري او که د دولتی مځکی څخه مطلب موات مځکه وي نو ذ مواتی مځکی لپاره اجازه د صحیح حکومت او أبادول د مځکی دواړه غواړی که دغه دواړه شرطه هغه پخوانی ذوالید ته موجود سوه د هغه ده که اوسنی ذوالید ته موجود سوه ده او که اجنبی سړی ته میسّر سوه د هغه اجنبی ده پرته له دغو شیانو څخه ذوالیدی یا ترک د هغو اعتبار نلري.

حکم الارضٓ المملوکة العامرة لایجوز لاحد التصرف فیها الانتقاع بها الابرضاء صاحبها (تحفة الفقهاء صـ۳۲۱ج ۳) هکذافی (الفقه الاسلامی صـ۵۴۲ج ۵) فهذا یدل علی ان للامام ان یعطی الارضٓ من بیت المال علی وجه التملیک لرقبتها کما یعطی المال حیث رأی المصلحة اذلافرق بین الارضٓ و المال فی الدفع للمستحق (الفتاوی المهدیة صـ۶۴۶ج ۲) هکذافی (ردالمحتار صـ۲۹۰ج ۳) و من احیا ارضا میتة بغیر اذن الامام لایملکها فی قول ابی حنیفة رحمة الله تعالی علیه و قال صاحباه یملکها (الفتاوی الهندیة صـ۳۸۶ج ۵) قال فی ردالمحتار و قول الامام هو المختار و لذا قدمه فی الخانیة و الملتقی کعادتهما و به اخذ الطحاوی و علیه المتون (اتاسی صـ۲۰۴ج ۴) (ردالمحتار صـ۳۰۷ج ۵) (الدرالمنتقی شرح الملتقی صـ۵۵۸ج ۲) والاحیاء ان یبنی ثمه بناء او یحفر نهرًا او یجعل الارضٓ مسناة و نحو ذلک اما اذا وضع احجارا حولها و جعل ذلک حدا فانه لاتصیر ملکًا له (تحفة الفقهاء صـ۳۲۲ج ۳)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دهندو له ځمکې به دولت څه شئ اخلي که خراج؟نو څومره؟

**سوال**: ددارالافتاء محترمینو استاذانو تـه السلام علیکم و علی مـن لـدیکم و رحمةالله وبرکاتهٗ.وبعد: د هندوانو څخه چه دلته جایدادونه لري خراج اخستی شی کنه او کـه اخستی سی څومره اندازه چه په هغه اندازه شئ زمونږ عاشرين ځنی واخلی ؟ والسلام

**(د مستوفیت مسئول)**

**جواب**: خراج دوه قسمه دی یو خراج مؤظف دی یو خراج مقاسمة دی (خراج مقاسمة) دي تـه وایی چه د ځمکی د حاصلاتو یو څه حصه لکه ثلورمه یا پنځمـه اخستل کیږي دغـه خراج د ځمکی د حاصلاتو تر نیمایی حصی زائد اخستل جائز نه دی نور نـو د ځمکي او د هغې د حاصلاتو په تناسب باندي کـه ثلورمه وي کـه پنځمـه وي کـه یـی تر پنځمی هم کمـه وي هغه باید حکومت واخلی په داسی طریقه چه ډیر ضرر په مالک پوری ملحق نسی بلکه یو مناسب مقدار وضعه سی او کـه مالـک هغـه ځمکه و نـه کرلـه یا دغفلت یا د عـذر پـه وجـه نو خراج مقاسمه بیا نـه اخستل کیږي او ځمکـه چـه هر څو واره کرل کیږي پـه هر واري کـی بـه خراج مقاسمة تأدية کوی او (خراج مؤظف) دي ته وایـی چه د ځمکـي د حاصـلاتو څه بغیر مـثلاً د نقدو د قسمه څه یوشی وضع سوی وي چه احکام یـی دا دی د انګورو یا خرماؤو هغـه باغ چه درختی یـی متصلی وي پر هغو باندي د حضرت عمر ﷺ په زمانه کی پر هر جريب ۱۰ درهمـه وضعه سوی وي (چه ۳۵ ماشی سپیـن زرځنی جوړیږي) او پالیزونه لکـه ختکی بانجڼ او داسی نور پر هغو ۵ درهمه وضعه سوی وي چه (۱/۲ - ۱۷) او ولس نیمی ماشی سپیـن زرکیږي او پر عامو ځمکو لکه غنم اوربشی جواری او داسی نورو یو درهم او یو صاع وضعه سوی وي چه تقریبًا (۱/۲ - ۳) درې نیمې ماشی سپیـن زر او درې نیم کیلو غنم یا اوربشی کیږي او د هغه وخت د جریبو اندازه کـه څه هم فقهاؤو بیـان کړیده لکن د هر وخت او زمانی خپل اصطلاحی جریبو نه معتبر دی او هغه ځمکی چه نور شیان په کرل سوی وي غیر لـه تیرو سوو شیانو څه لکه زعفران او غیره پر هغو باندي پـه تناسب د ځمکی باید یـو مقدار وضعه سی او کـه ځمکه قابل د کشت وه خو د مالـک د غفلت او سستی په وجه نه وه کرل سوي هم بـه

خراج مؤظف تادیه کوی او که مځکه په کال کی څو واره کرل کیدله هم به خراج مؤظف په کال کی یو واری نأدیة کوي او په هغه اجناسو کی چه د حضرت عمر ﷺ په وخت کی هم مقدرا متعین سوی دی تر هغه مقدرا زیات اخستل جواز نه لري او تر هغه کم اخستل جائز دی او پر هغه مځکه چه پخوا خراج مقاسمه حواله سوی وی د هغه بدلول په خراج مؤظف سره جواز نلري او بعضی علماء وایی که د زمیندار پوره خوښه او رضاء موجوده وه نو د هغه په مشوره بیا اجازه د بدلیدو سته نو په افغانستان کی که پخوا خراج مقاسمة اخستل کیدی که مؤظف اوس هم باید هغه واخستل سی او هغه مقدار خراج چه اخستل کیږي امیرالمؤمنین کولای سی چه تر هغه کم واخلی که مځکې د هغه مقدار تحمّل نسوای کولای او خراج یوازی د کفارو په مځکو کی نه وی بلکه هغه کفار چه مسلمانان سی یا مسلمانان د دوی مځکې رانیسی نو هم هغه مځکه خراجی بلل کیږي او هغه خراج به تأدیه کوي.

خراج الارضْ نوعان خراج مقاسمة وهو انیکون الواجب شیئا من الخارج نحوالخمس والسدس وما اشبه ذلک وخراج وظیفة وهو انیکون الواجب شیئا فی الذمة یتعلق بالتمکن من الانتفاع بالارضْ کذافی فتاوی قاضیخان ﴿الفتاوی الهندیة صـ۲۳۷ج ۲﴾ ﴿ردالمحتار صـ۲۸۴ج ۳﴾ قال الخیر الرملی خراج المقاسمة کالموظف مصرفا وکالعشر مأخذ الافرق فیه بین الرطاب والزرع والکرم و النخل المتصل وغیره فیقسم الجمیع علی حسب ماتطیق الارضْ من النصف او الثلث اوالربع او الخمس وقد تقرران خراج المقاسمة کالعشر لتعلقه بالخارج و لذایتکرربتکرر الخارج فی السنة ﴿ردالمحتار صـ۲۸۴ج ۳﴾ فان عطلها صحبها و کان خراجها مؤظفا او اسلم صاحبها او اشتری مسلم من ذمی ارضْ خراج یجب الخراج ولو منعه انسان من الزراعة اوکان الخارج خراج مقاسمة لایجب شئ ﴿ السدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۸۸ج ۳﴾ هکذافی ﴿الفتاوی الهندیة صـ۲۳۷-۲۳۸ج ۲﴾ قال محمد فی ارضْ الخراج علی کل جریب یصلح للزراعة قفیز و درهم وعلی کل جریب الرطبة خمسة دراهم وعلی کل جریب الکرم وفی الهدایة المتصل-م-و النخیل المتصل عشرة دراهم وعلی کل جریب الزعفران وفی الکا

فـی و البستان و القطـن ـم ـبقـدرمـایطیق (تاتارخانیـة صـ۴۱۹ج ۵) (ردالمحتـار صـ۲۸۵ج ۳) (الفتـاوی الهنـدیـة صـ۲۳۸ج ۲) واراد بالـقفیز الـصاع (تاتارخانیـة صـ۴۲۱ج ۵) (الفتاوی الهنـدیة صـ۲۳۸ج ۲) قال محمد رحمة الله تعـالی علیه الجریب اسم لستین ذراعا فی ستین ذراعا حـکایة عـن جـریبهم ولـیس بتـقدیر لازم فـی الاراضـی کلها بل جریب الاراضـی یختلف بـاختلاف البلـدان فیعتبر فـی کـل بلـدة متعـارف اهلها (الفتاوی الهنـدیة صـ۲۳۸ج ۲).

ایک درہم ساڑھی تین ماشہ چاندی کاہوتاہے اس حساب سے دس درھم پینتیس ماشے کی ہوئی جو ایک ماشہ کم تین تولی چاندی ہوتی ہے (جواہرالفقہ ص۲۸۶ج ۲) ایک صاع یعنی ساڑھی تین سیر گندم یا جو (جواہرالفقہ ص۲۸۵ج ۲) اسی ۸۰ تولہ کی انگریزی سیر کی حساب سی تین سیر چھ چٹانک کا پورا صاع اور ڈیڑھ سیر تین چھٹانک کا نصف صاع ہوا۔

(جواهرالفقه صـ۲۲۴ج ۱) فـلا یزاد علیه فی خراج المقاسـمة ولافـی الموظـف علی مقـدار ماوظفه عمرؓ وان اطاقت علی الـصحیح الـدرالمختار وهـذا نـص صـریح فـی حـرمة مـا احـدثـه الظلـمة علی الارضٌ من الزیـادة علی المؤظـف (ردالمحتـار صـ۲۸۶ج ۳) هـکـذافی (احـسن الفتـاوی صـ۳۵۶ج ۴) فکانـه قـال و یـنقص و جوبامـا وظـف ان لـم تطـق و جـوازا ان اطاقـت و هـذا کـلام لاغبـار علیـه (ردالمحتار صـ۲۸۶ج ۳).

خراج موظف کو خراج مقاسمہ سے بدلنا اور اس کا عکس جائز نہیں البتہ اس کی تعلیل لان فیہ نقض العہد ہو حرام سے معلوم ہوتاہے کہ زمینداروں کی رضا سے تبدیل کرنا جائز ہے (احسن الفتاوی ص۳۵۷ج ۴) و (جواہرالفقہ ص۲۸۵ج ۲).

(**نوټ**) خراج او جزئیه باید د سرحدونو حفاظت دلارو حفاظت د پلانو جوړول د لویو ویالو کارول د مساجدو جوړول د قاضیانو مفتیانو والیانو او نورو مسئولینو تنخواگانی او په نورو عامه مصالحو کی مصرف سی هکذافی (الفتاوی الهندیةصـ۱۹۰ج ۱)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که قرارداد دیوه شریک په نامه وسي نوراستفاده تري کولای سي، که قرارداد دولت کړي وي پرهغه مال گمرک اخیستای سي، همداسي دموټردترازوپیسي پرچادي؟

**سوال** : د دارالافتاء محترم رئيس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبركاتهٗ.
لطفًا د لاندي موضوعاتو په هکله شرعی فتوی راکړی.

( **اول** ) که چیری دوه یا څوکسان د امارت سره یا د یو چا سره معامله وکړی خو قرارداد د یوه نفرلخوا امضاء شی یعنی طرف د معاملي یو نفر وگرځی دغه متباقی شریکان کولای سی چه په دغه قرارداد سره په داسی حال کښی چه په تعهد کښی ئی هیڅ نوم نه وی ذکر شوي استفاده وکړی یا خیر ؟

( **دوهم** ) ځینی معاملی یا قرار دادونه د امارتی ادارو لخوا د تجارانو سره کیږي چه د جنس قیمت معلوم او ځینی اخستل کیږي خو کله چه همدغه جنس و گمرک ته رسیږي هغوی بیا پر دغه جنس د محصول په نامه نوری پیسی اخلی مثلاً مونږ یوټن فلورایت دبره په ۹۰۰ - کلداری و قرار دادی ته ورکوو خو گمرک بیا په دغه دبره ٪۱۳ نور محصول تری اخلی دغه د محصول پیسی څه حکم لري لطفًا د ذکر شویو موضوعاتو په هکله شرعی فتوی راکړی ؟

( **نوټ** ) او هم کوم جنس چه په گمرک کښی تر ترازو ( وزن ) تیریږي دغه د ترازو پیسی د چالخوا باید ورکړل سی په شریعت کښی دغه د ترازو پیسی جواز لري که څه معلومات راکړی پداسی حال کښی چه په قرار داد کښی ذکر شوي چه ټول مالیات. صکوک. امارتی تکسونه. او گمرک محصول په قرار دادی اړه لري.

﴿ دکانو او صنائعو رئیس ملا اکبر جمالی ﴾

**د اول سوال جواب** : د اول سوال په جواب کی باید ووایو چه دغه یو نفر شریک چه قرارداد امضاء کړیدی کڅه هم یوازی د ده امضاء موجود ده لکن هغه نور شریکان هم په داغه قرارداد شریک بلل کیږي او هغه ټوله په دي معامله کی دخیل بلل کیږي ځکه چه په شرکة کی یو شریک د هغه بل وکیل هم وي لکن دغه قرارداد که داسی سوی وي چه دغه شریک مشتری وي او أمارت بایع وي نو رءس المال د شرکة به د همدغه شریک سره وي چا چه عقد او امضاء کړیده او که رءس المال د ده سره نوو نو دا د ده شخصی معامله بلل کیږي نه د ټولو شریکانو او بله دا خبره ده هر سړی چه عقد کړی دی حقوق د عقد به هم هغه سړی پوره کوي یعنی قبض د مال اداء د ثمن وقت اینبوول و اداء کولو ته د ثمن او داسی نور او نور شریکان چه عقد یی نوی تر سره کړی هغه مطلب دا دی چه د هغوی څه دا مطالبه نسی کیدلای چه دا أمور سر ته ورسوی دا أمور سر ته نسی رسولای او که په وقت کی د قرارداد یعنی چه الفاظ د ایجاب او قبول ذکر کیده دواړه شریکان یا ټوله ناست وه او ایجاب او قبول ټولو و کړی لکن خط بیا یوه شریک امضاء کړی نو پدي صورت کی عاقد یو شریک نسو بللای بلکه ټولو ته نسبت د قرارداد کیږي ولی شرعًا الفاظ د ایجاب او قبول معتبر دی نه قرارداد خط.

کل قسم من شرکة العقد یتضمن الوکالة فکل واحد من الشریکین فی تصرفه یعنی فی الاخذو البیع و تقبل العمل من الناس بالاجرة و کیل عن الاخر ﴿ المجلة المـ۱۳۳۳ ﴾ لایجوز لاحد الشریکین اذا لم یکن فی یده رءس مال الشرکة ان یشتری مالاً للشرکة فاذا اشتری یکون ذلک المال له ﴿ المجلة المـ۱۳۷۵ ﴾ حقوق العقد انما تعود الی العاقد فاذا اشتری احد الشریکین مالافقبضه مع تأدیةٍ منه یکون لازما علیه وحده ولهذا یطلب ثمن المال الذی اشتراه منه فقط ولایطالب شریکه به و کذا قبض ثمن المال الخ ﴿ المجلة المـ۱۳۷۷ ﴾ حقوق العقد هی (۱) قبض المال المشتری (۲) اداء ثمنه (۳) قبض ثمن المال المباع الخ ﴿ دررالحکام صـ۳۹۸ج ۳ ﴾ و اذا وجدا ( ای الایجاب والقبول ) لزم البیع بلا خیار الاعیب ورؤیة ﴿ الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۲ج ۴ ﴾ .

**د دوهم سوال جواب**: محصول اخستل د گمرک له طرفه هغه وقت روادی که چیری عام طور شرائط د محصول اخستلو موجود وه او که هغه شرائط موجود نوه نو بیا محصول اخستل پر هیڅ شی جواز نلري او دا پروانلري چه بائع هم امارتی دائره ده او گمرک والا هم امارتی اداره ده ولی دغه ډېره چه خلقو ته تسلیم سوه او دوی قبض کړه نو د خلقو شخصی مال و گرځیدی هر کله چه دوی دغه خپل مال خارج ته انتقالوی یا بل ولایت ته نو گمرک هغه معامله ورسره کوي لکه د نورو شخصی مالو سره او که یی د دوی د قبض څخه ترمخه محصول غوښتلای نو بیا یی حکم جلا کیدی او د محصول اخستلو د جواز بعضی شرائط داسی دی په بیت المال کی به شی نوی یا ته ضرورة شدیدة به و دغه مالو ته موجود وي لکه د پاره د تجهیز د لښکر یا د مسلمانانو بندیان چه مخالفینو سره وي او بی پیسو یی نه ایله کوي یا د حکومت هغه مسئولین او مامورین چه ضرورة شدیدة ورته موجود وي او تنخواه نلري او دا پیسی به په داسی تعمیراتو کی یا داسی شیانو کی نه مصرفیږي چه شدید ضرورة ورته نوی او که ضرورة شدیدة موجود وي نو په داسی اندازه مصرف به په کوی چه فقط ضرورة دفعه سی او سوال له محصول اخستو څه به بله هیڅ جائز طریقه نوی یا ته او د اغنیاؤ څه به اخستل کیږي نه د فقراؤ څه دا شرائط ټوله په دي وجه دی چه محصول اخستل اصلاً غیر شرعی طریقه ده بغیر له یو سخت ضرورت څه جواز نلري.

و اما النوائب فقدیرادبها مایکون بحق و قدیراد بها مالیس بحق والاول ککری الانهار المشترکة و اجرالحارس للمصلحة وما وظف الامام لتجهیز الجیش و فداء الاساری بان احتیج الی تجهیز الجیش لقتال المشرکین او الی فداء اسری المسلمین و لم یکن فی بیت المال مال..... والثانی کالجبایات فی زماننا و هی التی یاخذها الظلمة فی زماننا ظلما (العنایة بهامش فتح القدیر صـ۳۳۲ج ۶) (الکفایة صـ۳۳۳ج ۶) (ردالمحتار صـ۲۸۲ج ۴ بیروت) (الهندیة صـ۲۹۱ج ۳) (مجمع الانهر صـ۱۴۲ج ۱) (البحرالرائق صـ۲۴۰ج ۷) (تنقیح الحامدیة صـ۲۸۵ج۱) قال الحافظ المنذری اما الان فانهم یأخذونه

مكسـا باسم العـشر و مكسـا آخـر لـيس لـه اسم بـل شئ يأخذونـه حـرامـا و سحتا ويأكلونه في بطونهم نارا حجتهم فيه دا حضة عنـدربهم و علـيهم و لهـم عـذاب شـديد (ردالمحتـار صــ۳۹ج۲ بيــروت) (الترغيــب و الترهيــب صــ۵۶۷ج۱) (احكام سلطانية ابى يعلى صـ۲۳۰)

مکس باج حق گمرکی (فرھنگ عمید ص۔۱۸۴۲ج۲) انکم ٹیکس ویلتھ ٹیکس ..... محصول چونگی اور اس طرح کی دیگر ٹیکسوں کی شرعی حیثیت کیاہے الخ الجواب باسم ملہم الصواب یہ سب ٹیکس ناجائز ہیں اور ان محکمون میں ملازمت بھی ناجائز ہے حکومت کو اگر ضرورت ہو تو ٹیکس عائد کرنی کی مندرجہ ذیل شرائط ہیں الخ (احســن الفتاوی صـ۹۹ج۸).

**د دریم سوال جواب**: که دغه بیعه په وزن سوی وي مثلاً یو تن ډبره په دومره قیمت او د وزن کولو کار یی د گمرک و ترازو ته پرینبول سوي وي نو د ترازو پیسی په بائع پوری اړه لري نه په مشتری پوری

المـصارف المتعلقـة بتـسليم المبيـع تلـزم البـائع وحـده مـثلا اجـرة الكيـال للمكيلات و الوزان للموزونـات المبيعة تلـزم البائع وحـده (المجلة المـ۲۸۹) هـكذافي (مجمع الانهر صـ۲۰ج۲)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## اسلامي دولت کولای سي چې دصلیب شکل له موټرانو وغیره څخه خراب کړي؟

**سوال**: السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

وبعد: محترمه د خارجي مؤسیساتو پر موټرانو باندي د جمع علامه ده چه نن صبا په صلیب سره مشهوره ده او عبادت ئی نه کیږی اوس پر مسلمانانو خرابول د دغې علامی لازم دی کیا (**نوټ**): او د مذکورو موټرانو چلونکی مسلمانان دي. (المستفتی کاکا ملا صاحب)

**جواب**: مستأمن او ذمي چه صلیب ورسره وي دغه صلیب د دوی دپاره متقوم مال دی نه یی ماتول جائز دي نه یی ځنی اخستل جائز دي نو شکل او عکس د صلیب په طریق اولی نسی خرابولای که څه هم دغه شکل پر هغه موټرانو لیکلي وي چه چلوونکی یی مسلمانان دی ځکه چه موټر خو د دوئ په ملکیت کي دی او موټروان فقط أجیر او مزدور دی د دوئ سره نو د هغه صلیب نسبة هغه مالک ته کیږي نه چلوونکی ته او هغه چه په حدیث شریف کی راغلی دي چه حضرت نبی کریم ﷺ په خپل کور تصالیب نه پریښول نو د هغه تصالیبو څخه مراد تصاویر د ذی روحه شیانو دی نه شکل صلیب او که شکل صلیب ته شمول و کړی نو هم دا حدیث شریف د اهل ذمه او مستامنینو کورو ته نه دی شامل.

ولوا تلف صلیبًا علی نصرانی یضمن قیمتة صلیبا لانه مصر علی ذلک کما فی الهداية (مجمع الضمانات صـ۱۳۲) هکذافی (العنایة بهامش فتح القدیر صـ۲۸۷ج۸) و کذلک یضمن المسلم قیمة صلیب غصبه من نصرانی فهلک فی یده لانه مقر علی ذلک (الفقه الاسلامی صـ۷۱۵ج ۵) الجواز الشرعی ینافی الضمان (المجلة المـ۹۱) باب کسر الصلیب وقتل الخنزیر..... ولیس المراد من هذه الترجمة الاشارة الی جواز کسر صلیب النصاری وقتل خنازیر اهل الذمة فانا امرنا بترکهم ومایدینون واما کسر صلیب اهل الحرب وقتل خنازیر هم فهو جائز ولاشئ علی فاعله (عمدة القاری شرح صحیح البخاری صـ۲۷ج ۱۳) وحاصله ان المستأ من فی دارنا قبل ان یصیر ذمیا حکمه حکم الذمی الافی وجوب القصاص بقتله الخ (ردالمحتار صـ۲۷۳ج ۳) وعن عایشة ان النبی ﷺ لم یکن یترک فی بیتة شیئا فیه تصالیب که دروی تصاویر بود (اشعة اللمعات صـ۶۳۲ج ۳) والمراد هنا

بالتصاليب الصور (المرقاة شرح المشكوة صـ۲۶۸ج۸) لیکن یہاں حدیث میں تصالیب سے مطلق جاندار کی تصاویر مراد ہیں (مظاهر حق جديد صـ۲۴۵ج۴) والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## چې دجنازي لمونځ وسي دمړي په پټولوکي څنډ خنګه دي؟

**سوال**: چه لمونځ د جنازي وسي او قبر وغيره هر څه خلاص وي او بيا هنوز هم دا ميت د دعا و سورة د ويلو دپاره معطل وي دا څه حکم لري ايا جنازه پورته سي او که معطله سي؟

**جواب**: هر كله چه مړی و دفن ته اماده سي او قبر جوړ وي او نور ټوله كار خلاص وی یوازی د قرآن کريم د تلاوة او د دعا د پاره مړی څنډول د سنت طريقې څه مخالف دی بلکه مړی دې دفن کړی بیا دی د قرآن کريم تلاوة و کړی هم به د تلاوة ثواب وررسيږي هم به سنت طريقه عملي سی.

و عن عبدالله بن عمر قال سمعت رسول اللهﷺ يقول اذا مات احدكم فلا تحبسوه و اسرعوابه الى قبره و ليقرء عندرأسه فاتحة البقرة و عند رجليه بخاتمة البقره رواه البيهقى فى شعب الايمان و قال و الصحيح انه موقوف عليه (مشكوة شريف صـ۱۴۹) قوله (فاتحة البقرة) و بايد كه خوانده شود نزد سروى يعنى بعد ازدفن اول سوره بقرة الخ (اشعة اللمعات صـ۷۴۳ج۱) قوله فلا تحبسوه اى لاتؤخروا دفنه من غير عذر قال ابن الهمام. يستحب الاسراع بتجهيزه كله من حين يموت و اسرعوا به الى قبره و هو تاكيدو اشارة الى سنة الاسراع فى الجنازة (المرقاة شرح المشكوة صـ۱۹۷ج۴) هكذافى (مظاهر حق صـ۱۳۸ج۲) ان طلحة بن البراء مرض فاتاه النبىﷺ يعوده فقال انى لا ارى طلحة الاوقد حدث به الموت فآذنونى به و عجلوا فانه لا ينبغى لجيفة مسلم ان تحبس بين ظهرانى اهله رواه ابوداود (عمدة القارى شرح صحيح البخارى صـ۱۱۳ج۱) و كره تاخير صلاته ودفنه ليصلى عليه جمع عظيم بعد صلاة الجمعة (الدرالمختار بهامش الطحطاوى صـ۳۸۰ج۱) قوله وكره تاخير صلاته الخ فالافضل ان يعجل بتجهيزه بتمامه من حين يموت بحر و ظاهره ان الكراهة تنزيهية قوله و دفنه. ولو بعدالصلاة (حاشية الطحطاوى على الدرالمختار صـ۳۸۰ج۱)

بسم الله الرحمن الرحيم

## يوه ولسوالي چې كافي اوسيدونكي ولري دجمعې لمونځ صحت لري كنه؟

**سوال**: د دارالافتاء محترمو علماء كرامو ته السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهٗ.

محترما: زه د لاندې مسئلې په هكله استفتاء كوم زمونږ ځاى چه گردي باغران دى په داسي شكل موقعيت دى چه د ولسوالى د مركز څه تقريبًا ۳ ساعته ليرى دى او خپل بازار لري او په بازار كى ټول ضروريات لكه خياطى آهنگرى او داسى نور ټوله موجود دي او يو جامع هلته موجود ده چه مشرق او مغرب ته تقريبًا د ۱۵ دقيقو په اندازه او شمال او جنوب ته ۲۵ دقيقى په دى داخل كى تقريبًا ۷۰۰۰ نفوس موجود دى او په شمار او حساب سره ۴۰ مسجده موجود دي نو ايا په دغه جامع كى د جمعى لمونځ صحت لري او كه څنگه؟

**جواب**: محترم مستفتى صاحب تاسو چه د گردي باغران په هكله استفتاء كړى ده او ويلى مودي چه ۴۰ مسجدونه بازار او تقريبًا ۷۰۰۰ نفوس لري نو داغتې كلى بلل كيږي نو كه تاسو ته حكومت اجازه وكړي د جمعې د لمانځه نو اتفاقًا بغير له اختلافه د جمعى لمونځ صحيح كيږي او فرض كيږي.

وفى القهستانى اذن الحاكم ببناء الجامع فى الرستاق اذن بالجمعة اتفاقا على ماقاله السرخسى و اذا اتصل به الحكم صار مجمعا عليه فليحفظ الدرالمختار و عبارة القهستانى تقع فرضا فى القصبات و القرى الكبيرة التى فيها اسواق قال ابو القاسم هذا بلا خلاف اذا أذن الوالى او القاضى ببناء المسجد الجامع و اداء الجمعة لان هذا مجتهد فيه فاذا اتصل به الحكم صار مجمعا عليه و فيما ذكرنا اشارة الى انه لاتجوز فى الصغيرة التى ليس فيها قاضٍ و منبر و خطيب كما فى المضمرات ..... فان فى فتاوى الدينارى اذا بنى مسجد فى الرستاق بامر الامام فهو أمر بالجمعة اتفاقا على ماقال السرخسى فافهم و الرستاق القرى كما فى القاموس الخ قوله و اذا اتصل به الحكم الخ قد علمت ان عبارة القهستانى صريحة فى ان مجرد الامر رافع للخلاف بناء على ان مجرد امره

حکم (ردالمحتار صـ۵۹۰ج۱) قوله اذن الحاکم ای الوالی او القاضی کذافی القهستانی ..... و اذا لم یأذن بذلک لاتصح اقامتها فیها و علیه یحمل ما فی البحر لا تصح فی قریة و لامفازة لقول علیؓ لاجمعة و لا تشریق و لاصلوة فطر و لا اضحی الافی مصر جامع او مدینة عظیمة ثم قال فلا تجب علی غیر اهل المصر (حاشیة الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۳۳۹ج۱) و الخلاصة لابدلاقامة الجمعة عندالجمهور من کونها فی مدینة او قریة و لا بدانتکون القریة کبیرة عند الحنفیة فلا تجب علی سکان القری الصغیرة ای لابد من المصر عندهم اما عند غیرهم فلا یشترط المصر و القریة و البلد سواء (الفقه الاسلامی صـ۲۷۵ج۲) و لاشک فی جواز الجمعة فی البلاد و القصبات (کبیری صـ۵۵۲) و اذا اذن الامام لاهل القری بذلک بعد تأمیر الامر علیهم صحت الجمعة بها عندنا کمامر الخ فانقیل کیف قالت الحنفیة بحوازاقامة الجمعة فی القری اذا کان علیها امیر من الامام مأذون باقامة الجمعة بها فهل تصیر القریة بذلک مصرا ..... قلنا تصیرالقریة بذلک فی حکم المصر ..... او نقول ان امر الامام وإذنه قاطع النزاع فی المسائل المجتهد فیها عندنا و اشتراط المصر للجمعة مجتهد فیه الصحابة و الائمة (اعلاء السنن صـ۱۵ج۸).

ایک قریہ عظیمہ برا جس میں تین ہزار دو سو آدمی آباد ہیں اور چند دوکانیں بھی وہاں موجود ہیں پس موافق مذہب حنفیہ کی اور فقہ کی کتابون کی وہاں جمعہ ہوتا ہے یا نہیں الجواب۔ ایسی قریہ میں جمعہ عند الحنفیہ صحیح ہے اور واجب واداء ہوتا ہے کیونکہ وہ قریہ کبیرہ ہے اور قریہ کبیری میں موافق تصریح شامی کی جمعہ صحیح ہوتا ہے کذافی الدرالمختار وتقع فرضافی القصبات والقری الکبیرة التی فیها اسواق الخ (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۷۷ج۵ و ص۸۳ج۵) و (احسن الفتاوی صـ۱۲۵ج۴)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمجاهد عسکرپه هکله (۵)مهیمي پوښتنې اوځوابونه

**سوال**: محترم د دارالافتاء رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

(**اول سوال**) په حکومت کښې یعنې په اسلامي امارت کې یو نفر خدمت کوي یعنې جهاد کوي طالب عسکر دی نو ایا د دغه مجاهد یعنې طالب عسکر د کور نفقه په چا پورې اړه لري په اسلامي امارت پورې اړه لري، او که ئې په قریبانو اړه لري او که شخصًا په ده پورې اړه لري نو که په ده پورې اړه و لري نو دی به جهاد کوي او که د خپل کور نفقه برابروي که په دې هکله معلومات راکړئ ډیر لوه مهرباني به وي؟

(**دوهم سوال**) که یو نفر په تحریک کې وي یعنې طالب وي مجاهد وي نو هغه نفر ته که چیرې خپل د کلي مشر یا والي صاحب یا قومندان یا وزیر بیله دعالیقدر أمیرالمؤمنین بې اجازې پیسې د کور د خرخ لپاره ورکوي و هغه مجاهد یا و عسکر ته د هغه پیسې څنګه دی او مشرته څومره مسئولیت دی که په دې هلکه معلومات راکړې ډیره همکاري به وي؟

(**دریم سوال**) که یو ډلګی مشر یا قومندان په چم دلوړو مقاماتو لخوا څخه پیسې را باسي د مثال په ډول چه ډلګی مشر لس نفره انډیوالان لري او دی د پنځوسو نفرو اعایشه را باسي او یا ئې په موټر شل لکه خرخي کړي وي او دی وائي چه ما دوه سوه لکه افغاني په خرځي کړیدي او د هغه پیسې دی کورته وړي او یا ئې و انډیوالانو ته ورکوي نو د هغه پیسې د شریعت د نګاه څخه څنګه دی؟

(**څلورم سوال**) که د اسلامي أمارت یو مسئول که غټ وي که کوچنی یعنې مشر وي که افراد که داسې یو نفر د بنده څخه په رشوت ایله کې چه پر هغه باندې د کوم مسلمان حق نه وي صرف د حکومت له قانونه څخه ئې سره غړونه کړي وي او یائې چرس څکولی وي یا ئې قمار کړی او وینښتان ئې غټ وي او یا ئې ډیره خرولې وي یا نور داسې کارونه ایا د هغه نفر په هکله شریعت کومه سزا ایښې ده او د غه پیسې ده ته څنګه دي؟

(**پنځم سوال**) که د اسلامي إمارت لخوا پر خپل رعیت باندې جلب حواله کړه سي اوس که د غه رعیت ...

څخه جلب پر حواله سویدي دی د خپل ځان په عوض کی بل څوک په پیسو و دروی او د غه نفر چه په پیسو په جلب کی ځی د دغه نفر مرگ څنگه دی او د غه جلبی چه په پیسو ځی که مسکین وي او که خان وي څنگه حکم ئی دی ؟

﴿ملا قدرت الله د قندهار ولایت د امنیی قومندانی﴾

**د اول سوال جواب** : د مجاهدینو او نورو هغه کسانو نفقه چه حکومت د یو کار او یو مصلحت دپاره یو ځای مقرر کړی وي پر بیت المال ده دونه اندازه نفقه به ورکوی چه د هغوی د کور کفایت په کیږي نه به د دي څه زیاده وي ډیره نه به کمه وي.

ويعطى قضاة المسلمين وعمالهم وعلماؤهم منه ما يكفيهم ويدفع منه أرزاق المقاتلة وذراريهم) لانه مال بيت المال فانه وصل الى المسلمين من غير قتال و هو معدّ لمصالح المسلمين وهؤلاء عملتهم ونفقة الذرارى على على الاباء فلولم يعطوا كفايتهم لاحتاجوا الى الاكتساب فلايتفرغون للقتال ﴿الهداية فتح القدير صـ۳۰۷ج ۵﴾ هكذافى ﴿ردالمحتار والدرالمختار صـ۲۸۱ج ۳ بيروت﴾ ويصرف الى كل مستحق قدرحاجته من غير زيادة ﴿ردالمحتار صـ۲۸۲ج ۳ بيروت﴾ والواجب على الائمة ان يوصلوا الحقوق الى أربابها ولايحبسونها عنهم ولايحل للامام واعو انه من هذه الاموال الاما يكفيهم وعائلتهم ولايجعلونها كنوزا..... فان قصر الائمة فى ذلك فوباله عليهم﴿الفتاوى الهندية صـ۱۹۱ج۱﴾.

**د دوهم سوال جواب** : که چیری امیرالمؤمنین منعه کړی وي چه د غه شخص ته پیسی مه ورکوی او بیائی والی صاحب یا قومندان یا بل څوک ورته ورکی او په دغه منعه هم خبر وي نو دا د ورکوونکی دپاره حرام کار دی او خیانة باله کیږي څو مره جزاء چه د حکومت په نزد مصلحت وو هغه جزاء دی ورکی او هغه اخیستونکی کچیری په واقعی توگه مستحق وو په بیت المال کی نو د هغه دپاره پروانلری او که واقعی مستحق نوو د هغه دپاره بیا دغه پیسی حرامی دي او که امیرالمؤمنین یا د دغه ورکوونکی څه ما فوق امیر منعه نوه کړی او دغه قومندان یا والی یا غیره دا اختیار درلودی چه خپل ماتحت افرادو ته تنخواه ورکړی نو بیا ورته جائزه ده دغه ورکړه لکن په قدر د ضرورت نه کم نه ډیر زیات.

ومن له حظ فی بیت المال ظفر بما هو وجه لبیت المال فله ان یأخذه دیانة وللامام الخیار فی المنع والاعطاء فی الحکم کذافی القنیة ﴿الفتاوی الهندیة ص۱۹۱ج۱﴾ مخالفة الامیر حرام ﴿ردالمحتار ص۲۳۴ج۳ بیروت﴾ وعزر کل مرتکب منکر ﴿الدرالمختار بهامش ردالمحتار ص۱۸۲ج۳ بیروت﴾ لیس فی التعزیر شئ مقدر بل مفوّض الی رأی الامام ﴿ردالمحتار ص۱۷۹ج۳ بیروت﴾.

**د دریم سوال جواب** : دا واضحه ده چه دا یو خیانة دی او دا پیسی ورته حرامی دی او که یی په ملگرو کی څوک په خبر وی د هغه دپاره هم د دغه پیسو څه استفاده کول حرامه ده.

وهکذا حرّم الاسلام کل اوجه الکسب غیرالمشروع مثل ماذکر ونحوه من الرشوة والاختلاس وابتزازا موال الغیر بالباطل واستغلال الحاکم او الموظف لمنصبه لیقتنص اموال الناس ظلما وعدوانا ﴿الفقه الاسلامی ص۴۹۸۳ج۳ ط جدید﴾.

**د څلورم سوال جواب** : دغه کسان چه واقعًا گناهکاران وي لکه قمارباز ډیره خریلی او داسی نور چه په حرامو کارونو اخته وي او حکومت د ستگیره کړی وي د دغه کسانو ایله کول بغیر له دي چه د دوی پر توبه یقین حاصل سوي وي جائز ندی ولی د دي کسانو تعزیرول واجب دي او په ایله کولو سره بغیر له توبی هغه مطلب د تعزیر نه حاصلیږي بلکه نور هم هغوی جرءت پیدا کوي پر دغه خپل فعل او هغه کسان چه پر یو گناه او یو جرام کارنوي بندیان لکه دا چه د سر د وینتانو پر غټولو بندیان وي یا ناحقه بندیان وي او د دوی بی گناهي قطعی سړی ته ثابته سی نو د دي کسانو ایله کول یو ډیر ښه عمل او اسلامی وظیفه ده پر هر چا واجبه ده چه وس یی رسیږي خو په دواړو صورتو کی رشوت اخستل یو حرام او ناجائز کار دی او دغه د رشوت پیسی ورته حرامی دي.

قال رسول الله ﷺ قال الله تعالی ﷻ وعزتی وجلالی لانتقمنّ من الظالم فی عاجله وآجله ولانتقمن ممن رأیٰ مظلوما فقدران ینصره فلم یفعل..... قال رسول الله ﷺ انصر اخاک ظالما او مظلوما الحدیث ﴿الترغیب والترهیب

كما فی البحر (ردالمحتار صـ۱۸۲ج ۲ بیروت) ثم الرشوة اربعة اقسام....
الثالث اخذ المال لیسوّی امره عند السلطان دفعا للضرراو جلبا للنفع وهو
حرام علی الآخذ (ردالمحتار صـ۳۰۲ج ۴ بیروت) تجوز الشفاعة لارباب الحوائج
المباحة كدفع الظلم و تخلیص من خطأ او العفو عن ذنب لیس فیه حد اذالم
یكن المذنب مصرا فانكان مصرا فلا یجوز حتی یرتدع عن الذنب والاصرار(
التعلیق علی الفقه السلامی صـ۲۶۴ج ۶).

**د پنځم سوال جواب**: پر هغه کسانو چه د حکومت لخوا جلب حواله سی پر هغو دالازمه ده چه خپله به یی اطاعة کوي که شرعی عذر یی نه درلودی او که یی عذر درلودی او بل نفر یی په پیسو دراوه او نیت یی دا وو چه زه که معذوریم نو ښه دا ده چه د یو بل مجاهد اکمال و کم زه به یی په ثواب شریک سم چه دی ته تجهیز د غازی وایی دا کار بالکل صحیح او موجب د ثواب دی بلکه دغه پیسی ورکوونکی د غونده مأجور دی لکه هغه په سنګر کی چه وي او که یی دا نیت نوو بلکه یوازی او یوازی ئی د ځان خلاصول مطلب وه نو دا کارنه پیسی ورکوونکی ته جائز دی نه پیسی اخستونکی ته نه أصل لري په شریعت مقدّس کی حاصل دا چه که نیت صحیح وو نو هغه عمل یی هم صحیح او مرګ یی شهادة دی او که نیت د هر یوه صحیح نوو نو د هغه دپاره دا کار خطر لري.

وحینئذ تصبح القوانین والتكالیف التی تصدر عن الحاكم واجبة التنفید كالالزام بالتجنید الاجباری وفرض الضرائب علی الاغنیاء الخ (الفقه الاسلامی صـ۷۰۴ج ۶) وعن زید بن خالد ان رسول الله ﷺ قال من جهز غازیا فی سبیل الله فقد غزا ومن خلف غاریا فی اهله فقد غزا متفق علیه (مشكوة شریف صـ۳۲۹) من قاتل لتكون كلمة الله هی العلیا فهو فی سبیل الله متفق علیه مشكوة شریف صـ۳۳۱)

(**نوټ**): څرنګه چه د جلب مجاهدین اکثر عوام وي نو دوی ته او همداراز ټول مجاهدینو ته د نیت د اصلاح او احتیاط باندي ډیر تاکید و سی چه نباید شهادة ته یی خطر پیښ نسی او همداراز باید دغه مجلو بینو ته په سپک نظرونه کتل سی ولی که یی نیت سم وي نو دوی هم دغسی پاک مجاهدین دی لکه دا نور.

بسم الله الرحمن الرحيم

**كه په قسطونو ځمكه خرڅه سي څه قسطونه وصول او څه باقي وي وخت تيرسي بيابيع فسخ كيداى سي؟كه نه فسخ كيږي دكوم قيمت قسطونه به وركوي؟**

د دارالافتاء رياست عالي مقام ته السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ.

(**اول سوال** ) سيد مكرم په كال ۱۳۵۴ كې پر مونږ خپله ځمكه خرڅه كړيده او ذواليد ئي مونږ ته تسليم كړيدې روپې ئې په قسط وي څه اندازه قسطونه ئې د كمونيستي كودتاه په وجه پاته سول خپله بائع مهاجر وو مونږ ئې معلومات نه درلودل اوس چه د هغه ورثه پاته ده يو وار د نجيب په حكومت كې او يو وار هم د اسماعيل خان په حكومت كې مونږ هغه باقي پاتې روپې يا قسطونه وورثې ته وروړل هغو قبولې نه كړې او د روپو د كم ارزښت په وجه د زياتو روپو او يا د هغه د معادل ادعاء و كړل ايا دغه ورثه دغه حق لري شرعًا كيا ؟زياتې روپې وركړو او كه خپل باقي پاتې حق ؟

(**دوهم سوال** ) ورثه بائع سيد مكرم همدغه اقرار كړيدى چه زمونږ پلار خپله ځمكه خرڅه كړيده خو مشتريانو ټولې روپې پر مدة مقرره نه دي ورته رسولې نو اوس د فسخ ادعاء لرو ايا د سيد مكرم ورثه د پلار خرڅه سوې ځمكه فسخه كولاى سى كيا؟او پر نوموړې ځمكې باندې مونږ ۲۶ كاله ذواليد هم لرو

(**نوټ** ) په حقيقت كې نوموړې ځمكه په شپږ ۶ قسط سره وه چه هر قسط ۶ لكه افغاني كيږي خو په لومړي ورځ بائع زمونږ څخه د نوموړې ځمكې د روپو د قرض حسنه سندونه اخستي دي او په قبالو كې يې ټوله بيعه رسيدلې ده ؟

( محمد يونس حقمل )

**جواب**: ستاسو په مابين كې چه دغه بيعه سوې ده او قيمت يې پر تاسو په قسطونو وضع كړې دي او تاسو ټوله قسطونه پر خپل وقت نه دي رسولي او تاسو هم بيعه په قطعي ډول تر سره كړيده او خيار نقد مونه دي وضعه كړې نو حكم دا دي چه تر څو تاسو دواړه جانبه د بيعې په فسخه كيدو راضي سوي نياست هغه بيع د مابين څخه نه وزي او هغه قسطونه چه يو پاته دي هغه به تاسو دوئ ته وركوي او دوئ به يې قبلوي لكن د هغه وخت حساب به ورته

ورکوئ په کالدارو یا ډالر یا بله سکه سره او هغه به ورتسلیموئ ځکه چه افغانی اوس ډیره کم قیمته سوي ده مثلاً په کومه ورځ چه تاسو سودا کړیده په هغه ورځ دغه باقی پاته قسطونه د افغانیو څو کلداری کیدی اوس به هغونه کلداری ورکوئ.

و اذا وجدا (ای الایجاب و القبول) لزم البیع بلا خیار الالعیب ورؤیة (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۲ ج ۴) اذا کان البیع صحیحا لازما خالیا من الخیار و اتفق المتعاقدان علی رفعه و انهائه فیتم فسخه عن طریق الاقالة (الفقه الاسلامی صـ۷۱۳ ج ۴) یشترط لصحة الاقالة شروط ـ اولاً ـ رضا المتقایلین (الفقه الاسلامی صـ۷۱۷ ج ۴).

وفی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس اورخصت فعند الامام الاول و الثانی او لا لیس علیه غیرها و قال الثانی ثانیا علیه قیمتها من الدراهم یوم البیع و القبض و علیه الفتوی و هکذافی الذخیرة و الخلاصة عن المنتقی و نقله فی البحر و اقره فحیث صرح بان الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات فیجب ان یعول علیه افتاء و قضاء و لم أرمن جعل الفتوی علی قول الامام (ردالمحتار صـ۲۶ ج ۴) هکذافی (تنبیه الرقود ـ مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۶۰ ج ۲) و هذا اذاحصل الرخص او الغلاء لجمیع انواع العملة فلو بقی منها نوع علی حاله او کان فی البلدة الاخری نوع منها قیمته مساویة لقیمته فی بلدالعقد فالمشتری ملزوم بدفع ذلک الی البائع و علی البائع القبول (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۶۲ ج ۲) خیارالنقد ـ و هو ان یشترط المتبایعان فی عقد البیع ـ نسیئة ان المشتری اذا لم یدفع الثمن فی الاجل المعین و هو ثلاثة ایام فلا بیع بینهما (الفقه الاسلامی صـ۵۲۲ ج ۴)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دسرقلفي په اړه مفصل بيان، احكام ، اقسام اوسرقلفي اړوند ټول جزئيات

**سوال**: د ډيرى مودي را په دى خوا د مختلفو ځايو څخه د افغانستان د اسلامى دولت مركزى دارالافتاء ته د سرقلفى په باره كى استفتاء گانى راغلى دي او هم د تميز د عالى رياست د ديوان تجارت لخوا مكرره استفتاء سوي ده لهذا د مركزى دارالافتاء د علماؤ د ډير محنت او تتبع څخه وروسته دغه يوه فتوى د خلو الحوانيت ( سرقلفى ) په باره كښى ترتيب كړى ده چه په لاندي ډول ده .

اصل د خلو الحوانيت ( سرقلفى ) چه بناء ده پر عرف او عادة باندي د ډيرو معتبرو كتابونو د عباراتو څخه ثابتيږي او د خلو الحوانيت ډير اقسام او ډيري طريقى په كتابونو كښى ذكر سوي خو مونږ به دلته شپږ قسمونه او طريقى بيان كړو .

او دا خلو (سرقلفى ) خرڅيږى او هبه كيږي او په ميراث وړل كيږي او هم گرو ( رهن ) كيږى و غيرذلک څكه چه د ملک حكم لري

او د سرقلفى دكان چه هدم ( ونړيږي ) د سرقلفى والا د پاره حق د ابقاء او د اعادى سته چه دى په وركولو د اجرة مثل د مځكى قائم او ثابت وي ؟

**تفصيل** : مونږ چه دا وويل چه اصل د سرقلفى د ډيرو معتبرو كتابونو د عبارتو څخه ثابتيږي د نمونى په طريقه به وو ايو چه په ( ردالمحتار ص۱۸ج۵ ) كتاب الاجارة كى ليكلى دي:

نعم يفتى به فيما دعت اليه الحاجة و جرت به فى المدة المديدة العادة و تعارفه الاعيان بلانكير كالخلو المتعارف فى الحوانيت الخ ( او بيائى ويلى ) فيفتى بجواز ذلک قياسا على بيع الوفاء الذى تعارفه المتاخرون احتيالا على الربا الخ ( او بيائى ويلى ) و من القواعد الكلية اذا ضاق الامر اتسع حكمه فيندرج تحتها امثال ذلک ممادعت اليه الضرورة و الله اعلم آه ملخصًا .او د دي ردالمحتار څخه دغه عبارت په ( شرح المجلة سليم باز ص۲۴۸ ) كښى هم نقل شوي ده او په (الاشباه والنظائر ) د ابن نجيم كښى ليكلى دى المذهب عدم اعتبار العرف الخاص لكن افتى كثير باعتباره و عليه فيفتى بجواز النزول عن الوظائف بمال و

بلزوم خلو الحوانیت الخ او د دي الاشباه و النظائر ځخه دغه عبارت په ﴿الدرالمختار او ردالمحتار صـ۱۷ج۴﴾ کتاب البیوع کښی هم نـقل کړی ده او پـه ﴿الدرالمختار علی هامش ردالمحتار صـ۲۷۷ح قبیل کتاب الکفالة ۴﴾ کښی هم نـقل شوی ده او پـه ﴿الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۱۰ج۳﴾ کښی لیکلی (قوله و بلزوم خلوالحوانیت الـخ) ممایسـتدل به علی جواز ذلک مافی واقعات الضریری الخ او په ﴿ردالمحتار صـ۱۹ج۴﴾.

کتاب البیوع کښی لیکلی دي و ممن افتی بلـزوم الخلو الـذی یکون بمقابلة دراهم یدفعها للمتولی او المالک العلامة المحقـق عبدالرحیم افنـدی العماری صاحب هدیة ابـن العـماد (او بیائی ویلی) فیفتی بجواز ذلـک للـضرورة قیاسا علی بیع الوفا الخ.

او دا چه مونږ وویل چه د خلوالحوانیت شپږ قسمونه او طریقی به بیان کړو نو وایو چي:

**﴿اوله طریقه دا ده﴾**

چه مالک د دکان یو چا ته دکان ورکړی او یو مقدار پیسی ورځخه واخلی غیر د کرایې بیا کرایه په قدر د مثل د اجرة اداء کړای سی او که قدر د مثل اداء نسی دا عیـن ربا گرځی. او مالک د دکان دغه صاحب د خلونسی ایستلای د دکان ځخه او نه دا دکان بل چا ته ورکولای سی تر څو چی ئی هغه مقدار پیسی بیرتـه نه وی ورکړی او پـه دي قسم کښی فرق نسته پـه مابیـن د شخصي او وقفی او دولتی مځکه کښی په ﴿ردالمحتار صـ۱۹ج۴﴾ کتاب البیوع کښی لیکلی دي.

و ممـن افتی بلـزوم الخلو الـذی یکـون بـمقابلـة دراهـم یـدفعهـا للمتولی او المالک العـلامة المحقق عبدالرحمن افنـدی العمادی صاحـب هـدیة ابـن العماد و قال فلا یملک صاحب الحانوت اخراجه و لا اجارتها لغیره مالم یدفع لـه المبلغ المرقـوم فیفتـی بجـواز ذلـک للـضرورة قیاسـا علـی بیـع الوفـاء الـذی تعارفـه المتأخرون احـتیالاً علی الربا الخ قلت وهـو مقیـد ایضًـا بمـا قلنـا بمـا اذا کـان یدفع اجر المثل و الا کانت سکنـاه بـمقابلة مادفعه من الدراهم عیـن الربـا کمـا قـالوا فـیمن دفـع للمعتـرض داراً لیـسکنـهـا او حـمـارا لیرکبـه الـی ان یـستوفی

قرضه انه يلزمه اجرة الدار او الحمار الخ په (الطحطاوی علی الدر المختار ص۱۰ج۳) کښې ليکلی و اعلم ان الخلو يثبت فی الارض المملوکة لما ذکره المؤلف فی کتاب الوقف ان وقف البناء بدون الارض صحيح و الخلو يتحقق ولو الارض مملوکة علی ماعليه الفتوی انتهی او په (ردالمحتار ص۱۸ج۵) کتاب الاجارة کښې ليکلی نعم يفتی به فيما دعت اليه الحاجة وجرت به فی المدة المديدة العادة و تعارفه الاعيان بلانکير کالخلو المتعارف فی الحوانيت وهو ان يجعل الواقف او المتولی او المالک علی الحانوت قدرا معينا يؤخذ من الساکن ويعطيه به تمسکا شرعيا فلا يملک صاحب الحانوت بعد ذلک اخراج الساکن الذی ثبت له الخلو ولا اجارتها لغيره مالم يدفع المبلغ المرقوم فيفتی بجواز ذلک قياسا علی بيع الوفا الذی تعارفه المتأخرون احتيالا علی الربا حتی قال فی مجموع النوازل اتفق مشايخنا فی هذا الزمان علی صحته بيعا لاظطرار الناس الی ذلک ومن القواعد الکلية اذا ضاق الامر اتسع حکمه فيندرج تحتها امثال ذلک ممادعت اليه الضرورة.

والله اعلم آه ملخصًا او په (شرح المجلة د سليم باز ص۲۴۸) کښې هم نقل سوی.

**(دوهمه طريقه دا ده)**

چه مستأجر په دکان د مؤجر کښې جدک جوړ کړي لکه الماري يا نور الات د صناعة نو په دی سره د مستأجر د پاره حق د قرار ثابتيږي چه دا کار په اذن د مؤجر و کړي او هم آداء د اجرة مثل د دکان کوی غير له جدک څخه په (الفتاوی تنقيح الحامدية ص۱۹۹ج۲) باب مشد المسکة کښې ليکلی دي و هذا الکردار يوجد فی زماننا ايضًا فی الحوانيت ويسمی جدکًا وهو مايبنيه المستاجر فی الحانوت من ماله لنفسه ومايصنعه فيها من الات الصناعة و نحو ذلک من الاعيان القائمة فيها باذن المتولين له بذلک او لمن باعه ذلک و يثبت له بذلک حق القرار مادام يدفع اجرة مثل الحانوت خالية

عــن جدکــه آه او پــه ( الفتــاوی المهدیــة فــی الوقــائع المــصریة صــ۴۳ج۵) کتاب الاجاره کښی لیکلی سئل فی رجل یملک جد کافی حانوت بحجة شرعیة و الحانوت المذکور ملک لاخر و صاحب الجدک ساکن فی الحانوت المذکور و یدفع اجرة الحانوت لمالکها و هی اجرة مثلها فهل اذا اراد المالک للحانوت اخراجه منها لا یکون له و لیس له زیادتها عن اجرة المثل بدون رضاه ( اجاب ) لیس لمالک الحانوت التی خلوها جار فی ملک الغیر و موضوع بحق القرار اخراج صاحبه منها مادام یدفع اجرة المثل اذا ثبت ماذکر بطریق شرعی. والله تعالیٰ اعلم.

او همدارنگه په( الفتاوی المهدیة صـ۴۵۷ج۲ ) کتاب الوقف کښی هم دغه مضمون ذکر ده په عنوان د سوال او د جواب سره.

**( دریيم قسم او طریقه دا ده )**

چه په مځکه مملوکه یا موقوفه او یا سلطانیه کښی مستأجر تعمیر بناء کړی په اذن د مالک یا د ناظر په شرط د قرار نو بانی لره حق شته د قرار پدي شرط چه اجرة مثل د مځکی قطع نظر د بناء څخه ادا کوي . په ( ردالمحتار صـ۱۸ج۴ ) کښی لیکلی دي قال فی جامع الفصولین و غیره بنی المستأجر او غرس فی ارض الوقف صار له حق القرار و هو المسمی بالکردار له الاستبقاء باجر المثل آه او په ( الفتاوی المهدیة صـ۴۹ج۵ ) کښی لیکلی دي سئل فی جماعة یملکون مکانا استأجره منهم رجل بازید من اجر المثل و آذنوه بالبناء فیه لیکون له خلواً بحق البقاء و القرار فبنی وعمر حسب الاذن منهم و جعله معدّا للصباغة و وضع یده علیه مدة نحو اربع سنوات ثم باع ذلک الخلو لرجل آخر و وضع یده علیه مدة تزید علی خمس عشرة سنة و هو یدفع اجرة المثل و زیادة للمالکین ثم بعد تلک المدة قام المالکون الآن یریدون ابطال ذلک الخلو و اجارة المکان لغیره تعنتا و یزیدون علیه الاجرة تعنتا فهل اذا کان ذلک الخلو ثابتا باعترافهم و اطلاعهم و اخذهم الاجرة

تلک المدة لایجابون لما ذکر و لایؤا جرونه لغیره حیث کان یدفع صاحب الخلوا جرة المثل و زیادة( اجاب ) اذا ثبت الخلو المذکور مستوفیا شرائط الصحة و واضع الید قائم بدفع اجر مثل ذلک المکان بقطع النظر عما احدثه فیه لایکون لمالکی المکان المذکور ابطال الخلو بدون وجه شرعی و لااجارة المکان من غیر صاحب الخلو والله تعالی ﷻ اعلم ، او په ﴿ الفقه الاسلامی وادلته صـ۲۲۳ج۸ ﴾ کښې هم دا مضمون لیکل شوي ده او کچیری صاحب د خلو بعض عمارة کړی وي نو دی شریک دی پدی مکان کښې په اندازه د خپل عمارت بیا که عمارت ته په اینده کښې حاجت وو دی به په خپله اندازه مصرف برداشت کوي لکه په ﴿غمزعیون البصائر علی الاشباه و النظائر د امام حموی کښې په صـ۳۲ج۱ ﴾ راغلی دي اما کن آیلة الی الخراب فیکریها ناظر الوقف لمن یعمر ها و یکون ماصرفه خلواً له ویصیر شریکاً للواقف بما زادته عمارته مثلاً لوکانت الاماکن قبل العمارة بنصف کل یوم و صارت بعدها تکتری بثلاثة انصاف فیکون صاحب الخلو شریکا بالثلث و الثلثین فاذا احتاجت تلک المحلات الی عمارة کان علی الواقف فی تلک الصورة مثلا الثلث و علی صاحب الخلو الثلثان آه .

**﴿ خلورم قسم او طریقه دا ده ﴾**

چه یو شخص اراده وکړی چه دکانونه یا سرایونه جوړ کړی مخکښې د جوړولو د خلگو څخه پیسې واخلی د یو یو دکان او یا د سرای کیفیت او اندازه د دکان یا د سرای ورته بیان کړی وروسته تر جوړیدو ئی خلگو ته تسلیم او کرایه پری مقرره کړی په دی صورت کښې هم صاحب د خلو په خپله حصه کښې شریک بللی کیږي د خاوند د دکان سره په ﴿ غمز عیون البصائر صـ۳۲ج۱ ﴾ کښې لیکلی دي:و وجهه ان الواقف لما یرید ان یبنی محلا للوقف فیأتی له اناس یدفعون له دراهم علی انیکون لکل شخص محل من تلک المواضع التی یرید الواقف بناء ها فاذا قبل منهم تلک الدراهم فکأنه باعهم تلک الحصة بما دفعوه له ... لکل ـ وغایته انه وظف

عليهم كل شهر كذا فليس للواقف فيه بعد ذلك تصرف الابقبض الحدد الموظفة فقط و ليس له ان يوجهه لغيره وكأن رب الخلو صار شريكاللواقف في تلك الحصة آه.

**﴿ پنځم قسم او طريقه دا ده ﴾**

چه مالک د دکان وچا ته دکان په خلو ( ) باندی ورکړي او مالک واخلی د خلو والا څخه یو مقدار پیسی چه دا جزء معجّل د هغه اجرة او کرایه وي او هغه پیسی چه میاشت په میاشت ی کال په کال په کرایه کښی ورکوي هغه جزء آخر مؤجل مکمّل د اجرة وي یعنی هغه پیسی چه مالک ئی د مخه آخلی په کرایه کښی حساب شی په ﴿ الفقه الاسلامی وادلته ص۷۵ج۴ ﴾ کښی لیکلی دی. (مقابل الخلو) ان مايؤخذ اليوم مما يسمى (بالفروغ اوخلو الرجل اواليد) لامانع منه شرعا في تقديرنا فللمالک المؤجر ان يأخذ من المستأجر مقدارا مقطوعا من المال مقابل الخلو او الفروغ ويعد المأخوذ جزءًا معجلاً من الاجرة المشروطة في العقد واما مايدفع في المستقبل شهريًا او سنويًا فهو بالاضافة الى ماتم تعجيله يعد جزءً آخر مكمّلاً من الاجرة مؤجل الوفاء الخ او په ﴿ ردالمحتار ص۱۹ج۴ ﴾ کښی هم مثل د دی بیان ذکر شوی ده.

**﴿ شپږم قسم او طريقه دا ده ﴾**

چه یوه مځکه وقفی وي او دپاره د تعمیر په اجاره ورکول سی او د اجاری وقت معین وي مستأجر چه تعمیر او بناء پرې وکړی ورروسته د تیریدو د وخت د اجاری څخه دا مستأجر کولای سی چه په اجرة مثل باندی را وګرځی خو په دی شرط چه وقف ته ضرر ونه رسیږي او دا طریقه په دولتی مځکه کی هم کیدای شی ځکه د وقف او د بیت المال یو حکم دی ، اما په شخصی مملوکه مځکه کی دا طریقه نسی کیدای په ﴿مجموع الرسائل د ابن عابدین ص۱۴۸ج۲﴾ کښی په رسالة مسماة (تحرير العبارة فيمن هواحق بالاجارة ) کښی لیکلی دي و قال فی متن الملتقى و صح استيجار الارض للزرع ان بين مايزرع او قال على ان

بزرع ماشاء و للبناء و الغرس و اذا انقضت المدة لزمه ان يقلعهما و يسلمها فارغة الخ (ثم قال) و هكذا في عامة المتون و الشروح و الفتاوى فلاحاجة الى التطويل و الاطناب الخ (ثم قال) لكن ذكر في البحر عن القنية مانصه استاجر ارضا وقفا و غرس فيها و بنى ثم مضت مدة الاجارة فللمستاجر ان يستبقيها باجر المثل اذا لم يكن في ذلك ضرر و لو ابى الموقوف عليهم الا القلع و الملك لكن كلام القنية حيث اعتضد بماذكره الخصاف صار مخصصا لكلام المتون و الشرح بالملك و يكون الوقف خارجا عن ذلك فللمستأجر الاستبقاء باجر المثل بشرط عدم الضرر على الوقف اصلاً آه. او همدارنګه دغه مضمون په (منحة الخالق على البحر الرائق ص۳۰۵ج۷) کښې هم ذکر شوی دی.

## دا دې يو څو طريقې او اقسام د خلو

او داچې مونږ وويل چه دا خلو ( ) خرڅيږي او هبه کيږي او په ميراث ورل کيږي و غيره څکه چه په (غمزعيون البصائر على الاشباه و النظائر د حموی ص۳۲۲ج۱) کښې ليکلی دی و فائدة الخلو انه كالملك فتجرى عليه احكامه من بيع و أجارة و هبة و رهن و وفاء دين وارث و وقف على الخلاف في الاخير و هذه الامور تؤخذ من فتوى الناصر اللقاني حيث جعله كالملك و منه يعلم انه لا مانع من تعدد الخلوات اذالملك يتعدد آه.

او په (الفقه الاسلامى ص۷۵۲ج۴) کښې ليکلی دي و نقل فتوى الفاسيين بجواز بيع الخلو و قال الشيخ محمد بيرم و ما اشبه الخلو بالمفارسة غير ان الخلو لاتحصل به ملكية الرقبة لتعلقة بالمنفعة الخ

او همدارنګه د نورو ډيرو عباراتو د فقهاء څخه هم معلوميږي.

او دا چه مونږ وويل چه د دکان و نړيږي د والا دپاره حق دابقاء او دا عاده کولو شته چه اجرة مثل د مځکی ادا کوی په ﴿الفتاوی المهدية صـ۴۸۷﴾ کښی ليکلی دي:
سئل فی بناء فی ارضٓ موقوفة مستحق للبقاء و القرار تهدم ذلک البنـاء و صارت الارضٓ خالية فهل لربه اعادته ثانيا كما كان اولا (اجاب) للمحتكر حق الابقاء والاعادة حيث كان قائمًا بدفع اجرة مثل الارضٓ خالية عن البنـاء على ما عليه العمل والله تعالیٰ ﷻ اعلم او په همدی ﴿الفتاوی المهدية صـ۴۹۵ ج۲﴾ کښی ليکلی دي (سئل) فی دكان موقوفة آلت الى السقوط فجاء رجل واخذها من ناظر الوقف و بناها و اصلحها و كتب له الناظر حجة بان البانی صار له فی الدكان خلو و انتفاع و هو البنـاء الذی بناه و بقيت ارضٓ الدكان و حيطانها القديمة و قفا عليها الحكر كل سنة يؤخذ من البانی ثم باع الرجل ذلک الخلو لرجل آخر و صار ناظر الوقف يأخذ الحكر من المشتری ايضًا ثم هدمت تلک الدكان هی و غيرها فی طريق امر الحاكم بتوسعتها و تلف من ارضها مقدار الثلثين فی توسعة الطريق المأمور بها و اخذ ذلک الرجل المشتری للخلو بدل ماكان يملكه من الحاكم الهادم للدكان فيما كان هدمه من الدكان و امر ناظر الوقف بعدم البنـاء فيما بقی من ارضٓ الدكان ثم ان الناظر توجه للحج ورجع فوجده بانيا فی تلک محلا فهل يكون متعديا ببنائه لزوال معظم ما كان يملكه واخذ بدله و هل له قيمة مابناه منقوضًا لتعديه و يرجع المحل و قفًا خالصا لاشائبة ملک فيه. (اجاب) للمحتكر حق الاعادة فيما بقی من الارضٓ التی كانت بيده مادام يدفع اجرة مثل الارضٓ خالية عن بنائه و ليس لناظر الارضٓ معارضته و لا تكليفه القلع و الحال هذه.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه دچاپر زوی پور وي ،پټ سي، پلار ئې پوروړي ته باغ د(۵)كلوپه اجاره وكړي، نوهركال نوې اجاري غواړي كنه؟ اوكه په دې جريان كي زوي پيداسي، بيرته ئې په پوراداكولومجبورولای سي كنه؟

**سوال**: ولوړ مقام ته د دارالافتاء زه محمد ابراهيم ولد محمد عمر دا عرض لرم چه زما پر گلالي پور باندي دی د گلالي كور او عيال تولهٔ د ورونو او پلار سره په كور كی گرده ناست دي زه چه كور ته ورسم څوك ئی نه رابنيي او پلار ورونو ئی ضمانت نه دی كړی او گلالي را څخه ورک دی د گلالي پلار د ده په پور كی و ما ته يو باغ د ۵ كلو لپاره په اجاره راكوی او وايي چه زما په زوی گلالي كار مه لره اوس چه دغه باغ زه څنی واخلم د ۵ كلو په اجاره دغه اجاره صحيح ده كيا ؟او كه هر كال نوې اجاره غواړی او كه د دغی اجارې باوجود گلالي زما په لاس راسی زه حق د خپل پور پر لرم كيا؟ كه تاسی احترامانه و ما ته د شريعت د لاری معلومات راكړی ډير شفقت او مهربانی به مو وي ؟

﴿ملا محمد ابراهيم﴾

**جواب**: ستا چه پور پر گلالي باندي دی نو ته حق نه لري چه يا پخپله يا د حكومت په واسطه د هغه پلار يا ورور يا بل قريب مكلف كړی د گلالي په حاضرولو سره او دا چه پلار يی د گلالي پور په عوض كی باغ په اجاره يعني ميوی ئی درباندی خرڅوی د پنځو كالو دپاره نو دا هر كال نوې عقد ته ضرورت لري په دا سی وقت كی چه ميوی ئی ښكاره سوی وي او كه د اجاری باوجود گلالي په لاس درسی او په هغه اجاره سره ستا حق پوره نه وی ادا سوی نو ته كولای سی چه د گلالي څخه خپل د متباقي پور مطالبه وكړی او كه دغه گلالي مسكين وو ستا پور يی نسوای اداكولای نو بيا تاسو انتظار وكړی او تكليف مه وركوی تر هغه ساعته

چه الله تعالی ﷻ ده ته ستاسو د پور اداکولو طاقت ورکوی او د پلار یا ورور یا بل قریب په باغو او پیسو سړی نه غنی کیږي تر څو چه خپل شخصي پیسی او دنیا و نلري.

لايلزم احدا احضار أحد فلايلزم الزوج احضار زوجته لسماع دعوى عليها الافى اربع كفيل نفس و سجان قاض الخ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۹۱ج ۴) اجمع العلماء على ان بيع الثمار قبل ان تخلق لاينعقد لانه من باب النهى عن بيع ما لم يخلق و من باب بيع السنين و المعاومة و قدروى عنه ﷺ انه نهى عن بيع السنين و عن بيع المعاومة و هو بيع الشجرا عواما لانه بيع المعدم (الفقه الاسلامى صـ۴۸۵ج ۴) قال فى الفتح لاخلاف فى عدم جواز بيع الثمار قبل ان تظهر الخ (ردالمحتار صـ۴۲ج ۴) (الفتاوى الهندية صـ۱۰۶ج ۳) الطالب مخير فى المطالبة ان شاء طلب الاصيل بالدين وان شاء طالب الكفيل و مطالبة احدهما لاتسقط حق مطالبته الاخر و بعد مطالبته احدهما له ان يطالب الاخر و يطالبهما معًا (المجلة المـ۶۴۴).

و المعنى ان وقع غريم من غرمائكم ذوعسرة او انكان المديون ذا عسرة فنظرة الى ميسرة اى فالحكم او الامر انتظار الى يساره اى انظروا ياايها الدائنون الى يسار المديون ولا تعجلوا بطلبه لانه مظطر فى هذاالباب و بهذه الاية تمسك صاحب الهداية فى كثير من المواضع منها ما قال فى كتاب ادب القاضى انه يحبس القاضى المديون بطلب الغريم فان لم يظهر له مال خلى سبيله يعنى بعد مضى المدة لانه استحق النظرة الى الميسرة فيكون حبسه بعد ذلك ظلما (التفسيرات الاحمدية صـ۱۷۴) ولايجوز (اى دفع الزكاة) الى صغير و الده غنى فان كان الابن كبيرا جاز (خانية بهامش الهندية صـ۲۶۶ج ۱)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که شل کاله مخکې سرای په بيع وفا اخيستې وي بيا خرابه سي نو څه حکم لري بيع وفاده که فسخ؟

**سوال**: د مرکزی دارالافتاء رياست ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

محترما: يو سړی مثلاً شل کاله د مخه د يو چا څخه سرای په پنځوس زره ( ۵۰۰۰۰ ) افغانی په بيع وفاء واخلی په وخت د روسانو کی ئی هجرت وکړ ولاړی بيرته راستون سوي دی و خپل وطن ته او سرای هم خرابه سوي دی ( سوال دا دی ) چه آيا دغه سړی د مالک د سرای څخه هغه معين ( ۵۰۰۰۰ ) زره افغانی اخلی او که به د هغه وخت د مذکور مبلغ معادل د بلې سکې سره پيسی اخلی ؟ المستفتی عبدالله»

**جواب**: که څه هم د دي مسئلی حکم په معتمدو کتابونو کی صراحةً پيدا نسو لکن د بيع وفاء د احکامو څه دا ښکاره کيږي چه دغه سړی د هغه خپلو پنځوس زره افغانيو حق لري نه د هغه د معادل قيمت او دا چه اوس سرای خرابه سوی دی نو د هغه پنځوس زره څه به د هغه خرابی په اندازه پيسی کموی مثلاً که د هغه وقت د عقد مطابق لس زره افغانی تاوان ور رسيدلی وو اوس به څلويښت زره افغانی ځنی اخلی . تفصيل يی دا دی چه دغه عقد که په لفظ د بيعی سره سوی وو او پس د تمامه د عقد يی شرط د وفاء ذکر کړی وو نو په دی ځای کی بيع صحيح گرځی او پوره کول د هغه شرط هم لازم دی او که يی په لفظ د بيعی جائزی يا بيع الوفاء عقد کړی وو يا ئی په وقت کی د عقد شرط د وفاء ذکر کړی وو نو دا بيا بيع فاسده گرځی او اوس يی اقاله ضروري ده . حاصل دا چه اوس چه تاسو سرای دوی ته ورکوی او خپلې پيسې غواړی دا اقاله ده او دا اقاله ضروري هم ده پر تاسو او په اقاله کی د هغه قسم پيسو اخستل او ردّول ضروري دی چه بايع اول واری اخيستی وی که څه هم ناچله سوی وي - او که تاسو دغه عقد په لفظ د رهن يا گروی کړی وی او لفظ د بيعی مو قطعًا ذکر کړی نه وو نو ستاسو پيسی د سرای والا يعنی د سرای د مالک سره قرض دی او سرای تاسو ته په گرو پروت دی په دې صورت کی تاسو ته د سرای څخه استفاده کول د سکنی دپاره يا نور قسم استفاده حرامه ده او اوس به د سرای مالک تاسو ته د پنځوسو زرو افغانيو معادل قيمت د

کالدارو څه یا بلې سکې څه درکوي د هغه ورځې په قیمت چه شل کاله پخوا تاسو عقد کړی وو.

والصحیح ان العقد الذی جری بینهما انکان بلفظ البیع لایکون رهنا ثم ینظر ان ذکر اشرط الفسخ فی البیع و ان لم یذکرا ذلک فی البیع و تلفظا بلفظ البیع بشرط الوفاء أو تلفظا بالبیع الجائز و عندهماهذالبیع عبارة عن بیع غیرلازم فکذلک و ان ذکرا البیع من غیر شرط ثم ذکر الشرط علی وجه المواعدة جازالبیع و یلزم الوفاء بالوعد کذافی فتاوی قاضیخان (الفتاوی الهندیة صـ۲۰۹ج۳) هکذافی (الفتاوی الخانیة بهامش الهندیة صـ۱۶۵ج۲) (شرح المجلة للاتاسی صـ۴۱۵ج۲) و قیل ان بلفظ البیع لم یکن رهنا ثم ان ذکرا الفسخ فیه او قبله اوزعماه غیرلازم کان بیعا فاسدا و لو بعده علی وجه المیعاد جازو لزم الوفاء به لان المواعید قد تکون لازمة لحاجة الناس و هوالصحیح کما فی الکافی و الخانیة و اقره خسروهنا و المصنف فی باب الاکراه و ابن الملک فی باب الاقالة بزیادة (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۷۴ج۴) وفی حظر الاشباه لایلزم الوعد الا اذا کان معلقا و فی بیع الوفاء کما فی کفالة البزازیة (شرح المجلة للاتاسی صـ۲۳۹ج۱) فالواجب علی کل من العاقدین فسخ البیع الفاسد لازالة الفساد لان البیع الفاسد معصیة (ردالمحتار) (دررالحکام صـ۳۹۶ج۱) رجل اشتری شیئا و تقابضا ثم کسدت الدراهم ثم تقایلا فانه یردّ تلک الدراهم الکاسدة کذافی الخلاصة (الفتاوی الهندیة صـ۱۵۹ج۳) فعلی هذا اذا تقایل المتبایعان البیع بعد قبض ثمن المبیع فیجب رد مثل الثمن او مقداره الذی اتفق علیه حین العقد ولوکان المقبوضْ أجود او أدنی من ذلک و لا فائدة فی ان یشترط حین الاقالة ان یدفع الثمن من جنس آخر اوینتقص للندامة او لاسباب اخری او ان یزاد الثمن او یرد بدل غیره اویؤجل ..... لان حقیقة الفسخ رفع الاول بحیث یکون کأن لم یکن

فعلی ذلک تثبت الحال الاولی و ثبوت هذه الحال یقتضی رجوع عین الثمن لمالکه الاول و عدم دخوله فی ملک البائع ( ردالمحتار ) ﴿ دررالحکام صـ۱۷۲ج۱ ﴾ ولو عقد بدراهم فکسدت ثم تقایلا ردالکاسد کذافی الفتح ( نهر ) ...... و حقیقة الفسخ لیس الارفع الاول کأن لم یکن فیثبت الحال الاول و ثبوته برجوع عین الثمن الی مالکه کأن لم یدخل فی الوجود غیره و هذا یستلزم تعین الاول و نفی غیره من الزیادة و النقص و خلاف الجنس آه ﴿ ردالمحتار صـ۱۶۵ج۴ ﴾ نقل فی الدر عن التهذیب انه یکره للمرتهن ان ینتفع بالرهن و ان اذن له الراهن قال فی المنح لانه اذن له فی الربا لانه یستو فی دینه کاملا فتبقی له المنفعة فضلاً فیکون ربا و هذا امر عظیم ..... و الغالب من احوال الناس انهم انمایریدو... عند الدفع الانتفاع ولو لاه لما اعطاه الدراهم و هذا بمنزلة المشروط لان المعروف کالمشروط و هو مما یعین المنع ﴿ شرح المجلة للاتاسی صـ۱۹۶ج۳ ﴾ هکذافی ﴿ امدادالفتاوی صـ۱۰۷ج۳ ﴾.

وفی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس او رخصت فعند الامام الاول و الثانی اولا لیس علیه غیرها و قال الثانی ثانیا علیه قیمتها من الدراهم یوم البیع و القبض و علیه الفتوی و هکذافی الذخیرة و الخلاصة عن المنتقی و نقله فی البحر واقره فحیث صرح بان الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات فیجب ان یعول علیه افتاء و قضاء و لم أرمن جعل الفتوی علی قول الامام ﴿ ردالمحتار صـ۲۶ج۴ ﴾ () رساله تنبیه الرقود ۔ مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۶۰ج۲ ﴾ ﴿ والاتاسی صـ۱۶۳ج۲ ﴾ لوکان بعض المبیع قد تلف صحت الاقالة فی الباقی ﴿ المجلة المـ۱۹۵ ﴾ لان هلاک بعضه یمنع الاقالة بقدره اعتبارا للجزء بالکل ﴿ اتاسی صـ۸۰ج۲ ﴾ اذا کانت قیمة المال المبیع بالوفاء مساویة للدین و هلک المال فی یدالمشتری سقط الدین بمقابلته ﴿ المجلة المـ۳۹۹ ﴾

واللہ تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## سيدان اوفاروقيان په بيت المال کي حق لري کنه؟

**سوال**: سادات کرام او حضرات فاروقی په بیت المال کی څه برخه لري او کنه ؟

(بینوا توجروا)

**جواب**: سادات کرام که چیری فقراء وه نو د فقر په وجه په بیت المال کی حق لري او هغه په دې طریقه سره چه غنیمت د کفارو څخه ونیول سی نو د غنیمت پنځمه حصه به ۳ ځایه سی یوه حصه به د یتیمانو وي بله حصه به د مسافرینو وي بله حصه به د عامو مساکینو وي لکن په مساکینو کی د ذوی القربی حق تر مخه دی همدارنګه په یتیمانو او مسافرینو کی د ذوی القربی حق تر مخه دی او اغنیاء د ساداتو حق نلري په بیت المال کی زمونږ په مذهب کی او مراد د ذوی القربی څخه بنو هاشم او بنو طالب دی نه نور.

اما الخمس فيقسم على ثلاثة اسهم سهم لليتامى و سهم للمساكين و سهم لابن السبيل يدخل فقراء ذوى القربى فيهم و يقدمون و لا يدفع الى اغنيائهم فاماذكر الله تعالى فى الخمس فانه لافتتاح الكلام تبركا باسمه (الفتاوى الهندية صـ۲۱۴ج ۲) قال الحنفية تقسم (اى خمس الغنيمة) على ثلاثة اسهم سهم لليتامى و سهم للمساكين و سهم لابناء السبيل ..... و سهم ذوى القربى كانوا يستحقونه فى زمن النبى ﷺ بالنصرة له و بعدو فاته بالفقر لانقطاع النصرة (الفقه الاسلامى صـ۵۹۰۲ج ۸ ط جديد) و قدم فقراء ذوى القربى من بنى هاشم منهم اى من الاصناف الثلاثة عليهم لجواز الصدقات لغير هم لالهم و لا حق لاغنيائهم عندنا (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۵۸ج ۳) و حاصله انه كما سقط سهمه ﷺ بموته عندنا سقط سهم ذوى القربى بموته

ایضًا لفقد علة استحقاقهم حتی قال الطحاوی لایستحق فقیر هم ایضًا لکن الاول وهو قول الکرخی اظهر (ردالمحتار ص۲۵۹ج ۳) المراد بهم (ای بذوی القربی) هنا بنو هاشم و بنو المطلب (ردالمحتار ص۲۵۸ج ۳) هکذافی (الفقه الاسلامی ص۵۹۰۱ج ۸ ط جدید) اعلم ان عبدمناف وهو الاب الرابع للنبی ﷺ اعقب اربعة وهم هاشم و المطلب و نوفل و عبدشمس ثم هاشم اعقب اربعة انقطع نسل الکل الاعبدالمطلب فانه اعقب اثنی عشر تصرف الزکوة الی اولادکل اذا کانو امسلمین فقراء الا اولاد عباس و حارث و اولاد ابی طالب من علی و جعفر و عقیل قهستانی (ردالمحتار ص۷۲ج ۲) (او حضرات نه بنوهاشم دي او نه بنومطلب)

دنابرآن سلسلهٔ حضرت فاروق اعظم ﷺ به پشت هشتم به جناب رسول الله ﷺ می پیوندند (الفاروق ص۲۵ حصه اول)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**كه دكرايي ياسرقلفي دكان نړبري كرايه دارحاضرنه وي مالك كولاى چې دمعتمدشخص په حضوردكان دجوړيدولپاره مات كړي اودهغه مال حساب كړي ؟**

**سوال** : در ملکیت خویش یک باب دکان واقع درکنار پاتاب کوچه ملاولی محمد احد دارم که بیست سال قبل ان رابه کرایه ماه واربوعده یک سال داده بودم که پیش روی آن بالای کنار پاتاب پل داشت وپل متذکره تخریب گردیده بود وحالا پل را دوباره اعمار کردم وهکذا نیز تخریب گردیده است برای اینکه از تخریب کلی ان جلب گیری گردیده باشد میخواهم آنرا ترمیم کنم واز طرف دیگر یک اندازه سامان امکان دارد از کرایه نشین داخل دکان باقی مانده باشد دکان متذکره فعلاً قلف است، اُمید دارم هیئت را مؤظف فرموده ودکان را باز و

اشیاء داخل دکان دریک لیست جداگانه ثبت تا به کرایه نشین ویا اقارب نزدیک آن تسلیم داده شود از زمینه همکاری مقام محترم را خواست دارم ؟　　　(هدایت الله)

پورته شخص دکان پخوا په کرایه ورکړی اوس سر قلفي والا یا کرایه نشین نسته دی غواړی دکان خلاص کړی که شرعی جواز و لری مونږ ته ئی شرعی فتوا' په هکله معلومات راکړی چه څرنگه وکړو.　　(مولوی دین محمد (حقبین) ښاروال کندهار)

**جواب**: د دکان د کرایی په صورت کی باید ووایو چه دغه د یوه کال مدة چه تاسو مقرّ کړی وه هغه پای ته رسیدلی ده نو که ضرورت وي یا نوي تا سو کولای سی چه خپل دکان خپل لاس ته راولی او د دوی سامانونه یو معتمد شخص ته ورکړی بلکه که هغه مدة پای ته نوای رسیدلی او د هغه کال ما بین وای لکن د نړیدلو خطر وای نو هم تاسی کولای سوای چه خپل دکان نوی تعمیر یا ترمیم کړی وای لکن هر څو ورځی چه تاسو کار پکښی کړی وای یا ستاسو په لاس کی وای د هغو ورځو اجرة او کرایه به مو د کرایه دار څخه نه اخستلای.

لایلزم المستأجر ردالمأجور واعادته بل على المؤجر أن يأخذه عند انقضاء الاجارة (المجلة المـ٥٩٤) اذا انعقدت الاجارة الصحيحة على المدة او المسافة يلزم تسليم المأجور للمستأجر على ان يبقى فى يده متصلا و مستمرا الى انقضاء المدة (المجلة المـ٥٨٣) فاذا اخذها صاحبها بلا اذن تسقط أجرتها عن المدة التى تبقى فيها فى يده كما انه لو اخذها باذن المستأجر تسقط اجرة المدة الى تبقى فيها فى يده (دررالحكام صـ٦٦٧ج١).

اعمال الاشياء التى تخل بالمنفعة المقصودة عائد على الآجر فتطهير الرحى على صاحبها كذلك اصلاح الدار و طرق الماء و اصلاح منافذه و انشاء الاشياء التى تخل بالسكنى و سائر الامور التى تتعلق بالبناء كلها لازمة على صاحب الدار (المجلة المـ٥٢٩)　　والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دچاپربل افغانۍ باندي وي هغه دپوروړي له اجاردارڅخه کلداري واخلي په خپل سرئې وته کړي پوروړۍ دخپلو کالدارو حق ورباندي لري کنه؟

**سوال**: زه عبدالاحد داسی وایمه چه ما مځکه رانیوله په ۸ زره لکه افغانی د نوراحمد څخه چه مشهور په گل سره دی وروسته نوراحمد نامی (۶۵۰۰۰۰) شپږ لکه پنځوس زره کلداری زما د اجاره دار څخه په هغه پور کی چه افغانی ئی پرما د مځکی په واسطه باندی وي او ده خپل په خوښه سره و ته کړی ده یعنی هغه کالداری ئی په خپل سر باندی په (۶۲۹) باندی تبادله کړی وي او حساب کړی ئی وي ما په هغه وقت کی ورته وویل چه زه دغه معامله دوتې چه تا پر خپل سر کړیده نه منمه او چه زه په خبر سومه هم می ورته وویل چه دغه نه منمه اوس زما پر دغه سړی باندی چه نوراحمد نومیږي حق د خپلو کالدارو لرمه که یا، باید ذکر کړمه چه وته په هغه وقت دغه رنگه وه چه ده کړیده زما بیله اجازی ده دغه وته کړیده اوس زما پر ده باندی حق سته که یا؟

(المستفتی عبدالاحد)

**جواب**: دا چه تاسو عقد د بیعی په افغانی کړیدی او هغه بایع بیا ستا د اجاره دار څخه کالداری اخیستی او ستا بې اجازې یی تصرف پکښی کړی او په افغانی ئی تبادله کړی دي نو دا تصرف ئی صحیح نه دی بلکه تاسی ته به خپلې کالداری در تسلیموی او اوس چه افغانی ډیره کم قیمته سوی ده نو بایع بیا داحق لري چه ووایی زه د بیعی د ورځی قیمت ده مځکی په کالدارو یا په بله سکه غواړم.

لایجوز لاحد أن یتصرف فی مال الغیر بلا إذنه (المجلة المـ۹۶) فتصرف الغیر فی مال الغیر ممنوع الا انتکون وصایة او ولایة او تدعو ضرورة (اتاسی صـ۲۶۲ج۱) و فی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس او رخصت فعند الامام الاول والثانی او لا لیس علیه غیرها و قال الثانی ثانیا علیه قیمتها من الدراهم یوم البیع و القبض و علیه الفتوی و هکذا فی الذخیرة و الخلاصة عن المنتقی و نقله فی البحر و اقره فحیث صرح بان الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات

فیجب ان یعول علیه افتاء و قضاء ولم أرمن جعل الفتوی علی قول الامام (ردالمحتار صـ۲۶ج۴) (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۶۳ج۲) (مجموعة رسائل ابن عابدین فی رسالة تنبیه الرقود صـ۶۰ج۲) (المجلة للاتاسی صـ۱۶۳ج۲).

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دپير اومريد ، دذكرونو حلقي ، حركات، اقسام، وغيره په اړه (۶)مهيمي لاربنودني

**سوال**: محترم عالی قدر امیرالمؤمنیـن حفظ الله السلام علیکم ورحمـۃالله وبرکاتـهٗ ، و بعد قدرمنه د افغانستان د اسلامی امارت په بعضو سیمو کی په نامه د خلیفه گانو داسی خلگ پیداشويدي چه هغه عوام دي په حلقو کی ئی ډیر منکرات موجود دي لکه د لغړزونو ورتگ او رقاصی کیدل نو اوس مونږ ستاسو د عالی حضور څخه دغه هیله کوو چه تاسو و مونږ ته په دی باب خپل حکم وکړی چه څه اجرأات وکړو ؟

(د امربالمعروف و النهی عن المنکر وزیر (مولوی محمدولی صاحب )

د کندهار دارالافتـاء او شـوری علمـاء کرامـو تـه الـسلام علـیکم ورحمـۃالله وبرکاتـهٗ د امـر بالمعروف وزارت پیشنهاد تاسو ته راجع سوو تاسی په گډه یو داسی شرعی طریقه ورته جوړه کړئ چه په آینده کی ئی دوی خپله لائحه هم وگرځوی ؟

﴿اميرالمؤمنين ملامحمد عمرمجاهد﴾

**جواب**: په دي مسئله کی څو خبرې ډيرې ضروري دي:

**﴿اوله خبره داده﴾** د صحیح او واقعی شیخ د پاره دغه پنځه شرطه ضروری دي

**(اول)** عالم به وي د عالم څخه مطلب دا نه دی چه مدرّس ملا او په ټولو فنونو به خبر وي بلکه مطلب دا دی چه هغه ضروريات د عقائدو او د دینی مسائلو به ورته معلوم وي که یی دکتابه زده کړی وي او که یی د نورو علماؤ په صحبت کی زده کړی وي

**(دوهم)** پرهيزگاره به وي يعنی د خپل طاقت سره سم به کوشش کوی چه کبيره گناه و نکړی او پر صغيره گناه باندی اصرار او دوام ونه کړی

**(دريم)** کوم عبادات او سنن مؤکده چه ثابت دی په شريعت کی پر هغو به مواظبه کوی د خپل طاقت سره سم او تارک الدنيا به وي د تارک االدنيا مطلب دا نه دی چه کار او کسب به نه کوي بلکه د نفقی پيدا کول په خپل کسب لوی عبادت او د ضرورياتو څخه دی د تارک الدنيا مطلب دا دی چه داسی به نه وی چه دنيا جمع کوی د ټولو ضرورياتو څخه زائده يا دا

چه شرعي حقوق د دنیا څخه نه اداکوي لکه زکوة و غیره یا دا چه په غیر جائزه طریقه دنیا جمع کوي.

( **څلورم** ) خپلو مریدانو او متعلقینو ته به د شریعت د إتباع أمر کوي یعنی د واجباتو او سنن مؤکدة د اداکولو امر کوي او د محرّماتو څخه به یې منع کوي.

( **پنځم** ) دغه شیخ به د یو بل واقعي شیخ سره وخت تیر کړی وي د هغه څخه به یې باطني علم زده کړی وي او اجازه د خلافت به یې ورته کړی وي.

( **دوهمه خبره داده** ) دغه څلور سره طریقې لکه ( قادریه ) ( نقشبندیه ) ( چشتیه ) ( سهروردیه ) او همدا راز نوري طریقې لکه ( شاذلیه ) ( کبرویه ) ( غزالیه ) وغیره دا هغه طریقې دي چه په هره یوه کې ډیر لوی مشایخ او مستند علماء او اکابر د دین اسلام تیر سوي دي او هره طریقه ځان ته خپل اصول او أداب لري پر هغه اصولو او أداب باندي اعتراض کول په حقیقت کې پر هغه مشایخو اعتراض کول دي او یو څوک چه شیخ وي هغه به د خپلي طریقي أصول حتماً مراعت کوي مثلاً ده نقشبندیه طریقې په اصولو کې ذکر دی په خفی ډول نو که یو څوک دعوی د نقشبندیه کوي لکن ذکر جهری کوي هغه باید اصلاح سی ځکه د اصولو په مخالفت سره د طریقي بدنامی راځی او په قادریه شریفه کې ذکر جهری ثابت دی نو که څوک پر هغه اصل او پر هغه طریقه جهری ذکر کوي پر هغه باید قطعًا اعتراض و نسی پر هر شیخ باندی د خپلی طریقي د اصولو مراعت کول ضروری دي.

( **دریمه خبره داده** ) لغړزنو ته بیعت ورکول ذکر ورکول او د مشایخو په مجالسو کې کښینستل جائز بلکه ښه کار دی او د مشایخو عظامو څخه ثابت دی بلکه بیعت ورکول ښځو ته هم جائز او ثابت دي په شرط د لحاظولو د هغه خپلو شرائطو لکه عدم خلوة عدم نظر عدم مس د لاس په وخت کې د بیعت او دا په دې سبب چه لغړزنی که بالغ وي یا مراهق وي نو هغه مجبور دی چه دین به زده کوي او خپل اخلاق به اصلاح کوي د مشایخو په مجلس کې او که د داسې ځایو څخه منعه سی نو هغه به بیا د فساقو مجلس ته رجوع و کړی چه نور به هم فاسد سی بلکه سبب د کبائرو گناهونو به و گرځی لکن که یو څوک ناجائز تعلق ورسره ساتی یا لغړزنی هلته ناجائز حرکات کوي نو هغه بالکل ناروا دی او هغه یوازی په پیرانو پوری اړه

نلري بلکه یو ملا چه سبقان وایی یا یو ریاست وي یا داسی نور د دې تولو په مجلسو کی دا کار حرام دی.

**(څلورمه خبره داده)** مستفتی باید دا واضحه کړی چه ده رقاصی څخه یی څه مطلب دی او کوم کیفیت او حرکت یی مراد دی مونږ دونه ویلای سو چه وجد او جذب د مشایخو څخه بالکل ثابت دی چه دی ته سکر وایی د مشایخو په اصطلاح لکن جذب هغه ته وایی چه یو څوک یو فعل یا یو حرکت وکړی لکن دی پکښی بی اختیاره وي او هغه فعل او حرکت په غیر اختیاری ډول څنی صادر سی لکن که په خپل اختیار یی داسی حرکتونه یا داسی افعال کول چه یا د شریعت څخه مخالف وي یا د طریقت د اصولو څخه مخالف وي یا سبب د توهین گرځی د پیرانو او مریدانو نو داسی افعال او داسی خلق باید اصلاح سی او نفس جهری ذکر او حلقه کول د خپلی طریقی د اصولو مطابق هم جائز هم ثابت دی که یی لمونځ کوونکی یا خوب کوونکی د لمانځه او د خوب څخه نه ایستل د دې څخه دا هم معلومه سوه چه د غه حلقې او ذکرونه په گویا کی کول جواز نه لري ولی سبب د آزار گرځی د مسلمانانو او دا هم باید ووایو چه د تولو طریقو د أصولو بیان دلته نسی کیدلای بلکه د موقع او د پیښی په وخت کی باید هغه جزئیه علماء کرامو ته پیش سی او د تصوفو پر کتابو عرض سی او بیا مناسب اقدام وسی.

**(پنځمه خبره داده)** زمونږ په عصر کی واقعًا د پیرانو په نامه خلق سته چه ډیر أتباع هم لري او په هغوی کی هغه شروط نه دي برابر یا نور منکرات پکښی دی او د هغو اصلاح ضرور ده لکن د اصلاح دپاره دا ضروری ده چه پر شرعی طریقه اصلاح سی هغه داسی چه اول شرعی مسائل ورته پیش سی بیا که دفعه نسوه نو په ډیر حسن خلق دی توصیه ورته وکړه سی بیا که نه وسوه یو لږ تهدید د حبس دی ورکول سی لکن بندی دی نسی بیا که نه وسوه بیا نو بندی سی د اول واری څخه بندی کول یا توهینول یا تیزی خبری ورته کول پخپله یو حرام کار دی ولی دی او د ده اتباع تول متنفر کیږی د اسلامی امارت څه بلکه د عامو طالبانو او علماء څخه یی نفرت کیږي او نعوذبالله بد ویل کوي چه دا خبره کفر ته مفضی کیږي او هغه امر بالمعروف چه سبب د ډیری گناه گرځی هغه خپله حرام عمل دی چه دلائل به یی راسی

**( شپږمه خبره داده )** ډیر احتیاط باید وسی چه په دی مسائلو کی نباید بنه خلق یا واقعی خلق أزار نسی او زهیر نسی یا پر لږ معمولی خبرو یا صغائرو گناهو باندي ډیر تهدید و نسی یا دغه اصلاح او امربالمعروف په غیر شرعی طریقه و نسی چه دا د عظیمی بدبختی سبب دی او د دنیا او آخرت خطر لري.

**( د اولی خبری دلائل او حوالی )** مرید شدن از آن کس درست است که در آن پنج شرط متحقق باشد .

**( شرط اول )** علم کتاب وسنت رسول داشته باشد خواه خوانده باشد خواه از عالم یاد داشته باشد.

**( شرط دوم )** آنکه موصوف بعدالت وتقوی باشد واجتناب از کبائر وعدم اصرار بر صغائر نماید.

**( شرط سوم )** آنکه بي رغبت از دنیا وراغب درآخرت باشد وبر طاعت موکده واذکار منقوله که در احادیث صحیحه آمده اند مداومت نماید.

**( شرط چهارم )** انکه امر معروف ونهی از منکر کرده باشد.

**( شرط پنجم )** آنکه از مشائخ این امر گرفته باشد وصحبت معتد بها ایشان نموده باشد. الخ

**( فتاوی عزیزی صـ۱۰۳ج۲ )** هکذا فی **( احکام القرآن للتهانوی صـ۵۵ج۵ )** **( خیرالفتاوی صـ۳۶۱ج۱ )** **( فتاوی محمودیة صـ۱۳۱ج۱ )** **( قطب الارشاد صـ۵۲۷ )**.

اعلم ان شرط من یأخذ البیعة أمور أحدها علم الکتاب والسنة ولا أرید المرتبة القصوی..... ولا یکلف بحفظ القرآن ولا الفحص عن حال الاسانید...... ولا بعلم الاصول والکلام وجزئیات الفقه والفتاوی الخ **( احکام القرآن للتهانوی صـ۵۵ج۵ )** واختلفوا فی حد الاصرار علی الصغیره فالجمهور علی انه غلبة المعاصی علی الطاعات وهو المعتمد **( قطب الارشاد صـ۱۱۷ )** کل ما فیه حظ عاجل ولا ثمرة له فی الاخرة اصلا کالتلذذ بالمعاصی کلها والتنعم بالمباحات الزائدة علی قدر الحاجات..... فحظ العبد من هذا کله هی الدنیا المذمومة **( احیاء علوم الدین صـ۲۱۹ج۳ )**.

(د دوھمی خبری دلائل) تنبیه قال الشیخ العارف باللہ ابو اسحق ابراھیم ان الطرق الی اللہ تعالی کثیرة (کالشاذلیة) و (السھروردیة) و (القادریة) الی غیر ذلک حتی قال بعضھم انھا بعدد انفاس الخلائق..... فالاخذ عن الطرق الکثیرة حسن بلاریب لما فیه من التعلق با ذیال الاخیار و التوسل بجناب الابرار وجمیع الطرق التی حصل لی الاجازة بطرائق المشایخ الصوفیة نفعنا اللہ تعالی ببرکاتھم و افاض علینا من فتوحاتھم ثلثة و ثلثین وللہ الحمد وھا آنا الان اشرع فی ذکر اسانیدی الی المشایخ الصوفیة فی ھذه الطرق (قطب الارشاد صـ۵۴۴).

آری بعضی از خلفائی متأخرین این طریقه علیه درین طریق نیز احداثها نموده اند وروش اصل اکابر را از دست داده جمعی از مریدان ایشان اعتقاد آن دارند که باین محدثات تکمیل این طریقه نموده اند حاشا وکلا (کبرت کلمة تخرج من افواھھم) بلکه در تخریب و تضییع آن کوشیده اند افسوس ھزار افسوس بعضی از بدعتها که درسلاسل دیگر اصلاً موجود نیست درین طریقۂ علیۂ احداث نموده اند (مکتوبات شریف مکتوب نمـ۱۳۱ج۱) مکتوب جهلم..... دربیان اذکار بعضی طریقها مثل (شاذلیه) و (غزالیه) و (خلوتیه) و (سهروردیه) و (طیفوریه) و (نقشبندیه) و (فردوسیه) و (رفاعیه) و (همدانیه) وغیرها و ملاناسب ذلک (مکتوبات حضرت میا فقیراللہ شکارپوری رحمۃاللہ تعالی ص-۱۲۳)

ذکر جہر ہر طور سے جائز ہے کسی کو کسی طور سے منع نہیں کرنا چاہیں (خیر الفتاوی صـ۳۴۹ج۱).

(د دریمی خبری دلائل او حوالی) و ینظر الرجل من الرجل و من غلام بلغ حد الشھرة مجتبی ولو امرد صبیح الوجه الدرالمختار قال فی الھندیة و الغلام اذا بلغ مبلغ الرجال و لم یکن صبیحا فحکمه حکم الرجال و انکان صبیحا فحکمه حکم النساء..... فا ماالخلوة و النظر الیه لاعن شھوة فلا بأس به و لذالم یؤمر بالنقاب کذافی الملتقط (ردالمحتار صـ۲۳۳ج ۵ ط بیروت) اما

بیعة النسـاء فبأن یأخذ الشیخ طرف ثوب و التی تبایع طرفه الاخر والله اعلم ( احکام القرآن التهانوی صـ۵۹ ج ۵ ) .

وبیعت آنحضرت علیه وعلی آله الصلوة والسلام بنساء بمجرد قول بوده است وهرگز دست آنحضرت علیه وعلی آله الصلوة والسلام بدست نساء بایعات نرسیده است وچون ذمائم واخلاق ردیه در نساء نسبت برجال بسیار بوده است بناء بران دروقت بیعت نساء شرائط زایده بربیعت رجال درمیان اورده است ( مکتوبات شریف مکتوب نمبر۴۱ حصه ۸ ) حضرت مولانا قاضی ثناء الله پانی پتی هژده ساله بودند که فراغ از تحصیل علم ظاهر وخلافت طریقه یافته باشاعت علم وفیض باطن پرداختند ( مقدمه ارشاد الطالبین لقاضی ثناء الله پانی پتی رحمة الله تعالی علیه ص ۴ ) و درباره حضرت قطب الاقطاب خواجهٔ قطب الدین بختیارکاکی اوشی قدس سره فرموده اند - در اندک زمانی کار حضرت خواجه بالاگرفت وازنظر تربیت پیر روشن‌ضمیر بکمالیت مردان رسید ودران حین آن حضرت هفتده ۱۷ ساله وجوان بود هنوز محاسن برنیاورده بود که خلافت یافت وخرقه پوشید ( سیرالاقطاب صـ۱۴۴ ) حضرة العالم الفاضل و الشیخ الکامل الشیخ احمد سعید قدس سره تلقن الطریقة العلیة عن و الده فی حضور المرشد المعظم فالتفت الیه و القی اکسیر نظره العالی علیه و جعل یقربه و یجلسه فی حلقة الذکر منذکان سنه عشر ۱۰ سنین الخ ( الحدائق الوردیة فی حقائق اجلاء النقشبندیة صـ۲۱۹ ) حضرة سیدنا امام ربانی صاحب قدس سره - اشتغل بالطرق الثلاث ( القادریة ) و ( والچشتیة ) و ( السهروردیة ) علی والده قدس الله سرهما حتی اذن له بالارشاد و الاستخلاف فی الطرق المنوّه بها و هو ابن سبعة عشر ۱۷ سنة الخ ( الحدائق الوردیة صـ۱۷۹ ) و امثال هذا کثیرة جدّا لایشک فیه من له ادنی مطالعة فی کتب القوم .

**( د خلورمې خبرې دلائل او حوالې )** حقیقت ذکر جهر - وحق آنست که انکار آن سفاهت واضح است . . . . . وبناء طریقهٔ ( چشتیه ) و ( اویسیه ) و ( قادریه ) که همه پیران ما اند برذکر جهر است حکم بآنکه فعل حرام است موجب قرب الهی نمیشود باطلست بلکه ذکر جهر موجب جمعیتی است که بالاتر ازان جمعیتی نیست ( فتاوی عزیزی حضرت شاه عبدالعزیز صاحب قدس سره صـ۱۷۰ ج۱ )

ذکر جہر ہر طور سے جائز ہے کسی کو کسی طور سے منع نہیں کرنا چاہیئے ذکر کسی ہیئت کی ساتھ نہیں بلکہ بوجہ اطلاق ادلہ مطلق ہیں خواہ منفرد ہو یا مجمع حلقہ باندہ کر یا صف باندہ۔ کر یا کسی اور صورت سے کھڑے ہو کر یا بیٹھ۔ کر غرضیکہ کوئی ہیئت ہو جائز ہے۔۔۔۔۔ البتہ اس میں اس بات کا خیال ضرور ہیں کہ یہ جواز اس شرط کی ساتھ ہے کہ کسی نائم یا نمازی کو اذیت نہ ہو (خیر الفتاوی ص۳۴۹ج۱) پس ثابت ہوا کہ ذکر جہر ہر طور سے جائز ہے کسی کو کسی طور سے منع نہ کرے (امداد الفتاوی ص۔۱۵۴ج۵).

هل ندب الاجتماع للذكر و التسبيح و التحميد و التكبير و يستحب الحلقة لها ام لا اقول نعم ندب الاجتماع لها و يستحب الحلقة و يكره المفارقة عنها الخ (مكتوبات ميا فقير الله صاحب قدس سره ص۔۳۴۶) و اما تحريك الرأس فقط يمنة و يسرة تحقيقا لمعنى النفى و الاثبات فى لااله الاالله فالظن الغالب جوازه بل استحبابه اذا كان مع النية الصالحة فيخرج عن حد العبث و اللعب فيكون فعلا دالاعلى التوحيد مقارنا للقول الدال عليه فيكون كلمة ككلمتين و اصله رفع المسبحة فى الصلوة فى التشهد عند اشهد ان لااله الاالله وقد روى فى الصحاح عن النبى ﷺ مع ان الصلوة موضع سكون ووقار حتى كره فيها الالتفات (طريقه محمديه ص۔۲۶۸ج۲) سپیکر پر ذکر جائز نہیں (خیرالفتاوی ص۔۳۵۰ج۱) و اعلم ایضًا ان الوجد ينقسم الى هاجم و الى متكلف و يسمى التواجد و هذا التواجد المتكلف فمنه مذموم و هو الذى يقصد به الرياء و اظهار الاحوال الشريفة مع الافلاس منها و منه ما هو محمود و هو التوصل الى استدعاء الاحوال الشريفة و اكتسابها و اجتلابها بالحيلة.

(احياء علوم الدين ص۔۲۹۵ج۲) الرخصة فيما ذكر من الاوضاع عند الذكر و السماع للعارفين الصارفين او قاتهم الى احسن الاعمال..... اذا غلب عليهم الوجد بغلباته..... فمنهم من طرقته طوارق الهيبة فخرّ و ذاب و منهم من برقت له بوارق اللطف فتحرك و طاب و منهم من طلع عليه الحب من مطلع القرب فسكر و غاب هذا ما عنّ لى فى الجواب (ردالمحتار ص۔۲۰۸ج۳ ط بيروت).

( د پنځمې خبرې دلائل او حوالی ) فعلی الوعاظ و المفتين معرفة احوال الناس و عاداتهم في القبول و الرد و السعي و الكسل و نحوها فيتكلمون بالاصلح و الاوفق لهم حتى لا يكون كلامهم فتنة للناس و كذا الامر بالمعروف و النهى عن المنكر اذ قديكون سببا لزيادة المنكر او اصابة مكروه لغيره فيكون آثما ( طريقه محمدية صـ٨٥ج٢ ) قوله او اصابة مكروه لغيره بان يغضب المامور و المنهى فيضرب او يشتم احدا من الناس غيظا من الآمر و الناهى فيكون ذلك الامر بالمعروف و النهى عن المنكر اثما اى موجبًا لاثم اى ذنب فيكون حراما على فاعله لانه يؤدى الى ارتكاب فعل حرام ( حديقه بهامش طريقه محمدية صـ٨٥ج٢ ) الاحتساب وله درجات و اداب اماالدرجات فاولها التعرف ثم التعريف ثم النهى ثم الوعظ و النصح ثم السب و العنف ثم التغيير باليد ثم التهديد بالضرب ثم ايقاع الضرب و تحقيقة ثم شهر السلاح ثم الاستظهار فيه بالاعوان و جمع الجنود ( احياء علوم الدين صـ٣٢٩ج٢ ) و يجب انيكون فيه ( اى فيمن يأمر و ينهى ) ثلاث خصال رفق فيما يأمر به و ينهى عنه فان الغلظة لا تزيد الافسادا و حلم في ذلك عمايقال له و فقه كيلا يصيرا مره منكرا ( متن شرح شرعة الاسلام صـ٥٠٢ ) .

لان الحسبة ربّما كانت ايضًا منكرة لمجاوزة جدالشرع فيها و ماذكر المصنف رح معنى قوله ﷺ لايأمر بالمعروف ولاينهى عن المنكر الارفيق فيما يأمر به و رفيق فيما ينهى عنه و حليم فيما يأمر به و حليم فيما ينهى عنه و فقيه فيما يأمر به و فقيه فيما ينهى عنه ( شرح شرعة الاسلام صـ٥٠٣ ) قال رسول الله ﷺ ان الله رفيق يحب الرفق و يعطى على الرفق مالا يعطى على العنف و مالا يعطى على ما سواه رواه مسلم و فى رواية له قال لعائشة رضى الله عنها عليك بالرفق و اياک و العنف و الفحش ان الرفق لايكون فى شئ الازانه و لاينزع من شئ الاشانه ( مكتوبات شريف مكتوب نمـ٩٨ حصۀ دوهم ) .

**(د شپږمې خبرې دلائـل اوحـوالي)** خواجه عبدالله انصاری میفرمایند آلهی هرکه راخواهی براندازی بامادراندازی.بیت ترسم ان قوم که بردُردکشان میخندند— بر سرکار خرابات کنند ایمان را حق سبحانه وتعالی کافۂ اهل اسلام را از انکارفقراء وطعن درایشان نگاهدارد(مکتوب شریف نم—۱۱۸ج۱حصۂ دوم) بغض.این طائفه سم قاتل است وطعن ایشان موجب حرمان ابدی است (مکتوب شریف نم۱۰۲ج۱ حصۂ دوم)

ينبغي لكل ذى عقل و دين ان لا يقع فى ورطة الانكار على هؤلاء القوم فانه السم القاتل كما شوهد ذلك قديما و حديثا..... قال بعض العارفين من رأيتموه يؤذى الاولياء و ينكر مواهب الاصفياء فاعلموا انه محارب لله مبعد مطرود عن حقيقة قرب الله...... و يكفى فى عقوبة المنكر على الاولياء قوله ﷺ فى الحديث الصحيح من آذى لى وليا فقد آذنته بالحرب اى اعلمته انى محارب له و من حارب الله لا يفلح ابدا الخ (الفتاوى الحديثية صـ۳۳۱)

طعن و تجسس عیوب بزرگان وکبر وافساد درمیان جماعتی از مسلمانان ازاقبح خصال واعمالست قال الله تعالی ﷻ (ويل لكل همزة لمزة) یعنی وای مرهر طاعن وعیب چین را (فصل الخطاب بين الخطاء و الصواب صـ۲۵) کلام درآنست که شیخ صاحب است قامت وتقوی است اگردر عمری چیزی ازوی ظاهر شودکه مخالف شرع باشد دران صورت بر شیخ اعتراض نکند بلکه تاویل کند اگر تواند بر عذر محمول کند واگرقول باشد حمل کندبرسکریابرمجازیابرعدم دریافت معنی واگر البته معصیت باشد تا هم آن ولی.را انکار نکندبلکه آن عمل راانکارکندکه بزرگان گفته اند القطب قدیزنی ..... ماعزؓ که از اصحاب رسول الله ﷺ بود ازوی بزورتقدیرزنا واقع شده اورا حق تعالی.توبه توفیق داد که خود رجم کنانیدواگر شخصی است که شعارا وفسق است پس اوالبته ولی نیست پس تأویل قول وفعل اوضرورنیست.

(ارشادالطالبین لقاضی ثناء الله پانی پتی صـ۲۷)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دچاپه کښت اوښان ګډ سي، مالک
## اوښان راولي داوښانومالک نه پیداکیږي؟که داوښانودخرڅولو، مالک ته دپیسو ورکولوحکم وي نودساتنې د ورځومصرف به له مالکه اخلي کنه؟

**سوال**: محترما: مونږ د منصور د غُنډي مقام کلي بمبلي ده رجب د کليو اوسيد نکي ځومُده مخکښې د نامعلومو اشخاصو اوښان زمونږ د کليو غنمان و خوړه او زمونږ د کليو خلګو أولسوالي د ډنډ ته خبر ورکړی او د ولسوالي پخواني قاضي صاحب امر ورکړ چه ساروانان ورتـه ونيسی او بيا بـه د اوښانو د خاوندانو څخه بـه ئی تاوان دراخلو د هماغـه اوښانو د جملې څخه اوس تقريبًا اولس ۱۷ دانې اوښان پاتـه دي چه خاوندان ئی نه پيداکيږی مونږ اوس د ولسوالی مقام ته عارض سو چه د ذکر سوي اوښانو پـه بـاب مونږ تـه فيصله راکړی د ولسوالی قاضی صاحب راتـه وويـل چه زه بـه د تميز د عـالی رياست سره معلومات او خبره وکړم اوس دوې ورځی کيږی چه اوښان مونږ و ښار تـه راوستلي دي ساروانان او مزدوران ورته ناست دي د بل په سرای کښی موقت چوک کړيدي او مونږ ډير ورسره پـه عذاب يو کـه د فيصلې د حل په مقصد دتميز په رياست امر را کړی ډيره مهرباني به مو وي؟

**جواب**: محترمـه تاسی بايد خپلې محکمې تـه مراجعـه وکړئ ستاسـو د محکمې د قاضي صاحب په امر دي دغـه اوښان خرڅ کړه سی او هغـه پيسی دي و ساتل سي هر وقت چه يی مالک پيدا سو هغـه تـه دي دغـه پيسی و سپارل سي او د هغـه وختـه څه چه تاسو تـه قاضی صاحب امر کړی چه ساروانان ورته و نيسی د هغه وروسته چه هر څه مصرف ستاسو پر دغه اوښانو سوی وي د هغـه مصرف حق تاسی د اصلی مالکانو څخه اخستلای سی خو پـه دې مسئله کی ډير احتياط ضروری دی چه اوښان بايد پـه مناسب قيمت خرڅ کړه سی او پيسی بايد په ډير ښه ډول وساتل سی چه خپل مالک ته ورسيږي او د هيڅ چا حق او مال بايد ضائع نسی.

وهـو فـی الانفـاق علـی اللقـيط و اللقطـة متبـرع لقـصور ولايتـه الا اذا قـال لـه قاضٍ انفق لترجع فلو لم يذكـر الرجـوع لم يـكـن دينـا فـی الاصـح (الـدرالمختار

بهامش ردالمحتار صـ۳۵۲ج ۳) وانکان لها نفع آجرها باذن الحاکم...... وان لم یکن باعها القاضی و حفظ ثمنها و لو الانفاق أصلح امر به لان ولایته نظریة اختیارفلو لم یکن ثمة نظر لم ینفذ امره به الدرالمختار قوله و لو الانفاق اصلح الخ قالو انما یأمر بالانفاق یومین او ثلاثة علی قدرمایری رجاء ان یظهر مالکها فاذا لم یظهر یأمر ببیعها لان دارة النفقة مستأصلة فلا نظر فی الانفاق مدة مدیدة (ردالمحتار صـ۳۵۳ج ۳) هکذافی (الهدایة صـ۵۹۲ج ۲) وان لم تکن لها منفعة او لم یجد من یستأجرها و خاف ان تستغرق النفقة قیمتها باعها وأمر بحفظ ثمنها کذافی فتح القدیر (الفتاوی الهندیة صـ۲۹۰ج ۲)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دملک له حاکم سره دعوه وي تر درو محاکموزیات حق لري کنه؟

**سوال**: محترم رئیس صاحب د دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

محترما: په دا لاندي سوال کښې د شرعي مذهبي فقه حنفي فتوی غوښتونکي یم، سوال زمونږ د امیرالمؤمنین سره پر محکه باندي دعوی ده نو دي محترم زمونږ سره د ۳ محکمو حق لري او که اضافه هم لري؟

(عبدالسلام ولد حاجي لعل محمد)

**جواب**: هر هغه حکم چه د شرعي محاکمو له خوا صادر او بیا تائید سي او خپل شرعي شرائط ټول پکښې موجود وي نو هغه حکم صحیح او نافذ ګرځي او نقض یې نه دي جائز نو که بله محکمه د دغه حکم لپاره جوړیږي یا و بلې محکمې ته حواله کیږي او هغه تائید د دغه حکم کوي نو پروا نه لري او که هغه نقض د دغه حکم کوي او حال دا چه شرعي شرائط ټول په دغه صادر شده حکم کې موجود وي نو دغه نقض جواز نه لري حال دا چه امیرالمؤمنین

کولای سی چه د خپل اطمینان لپاره بله محکمه جوړه کړی لکن نوی محکمه به پخوانی د شرعی شرائطو سره سم حکم نه نقض کوی بلکه تائید به کوي.

احکم القضاة تصان عن الالغاء و الابطال فاذا صدر الحکم مستوفیا شرائطه الشرعیة لایسوغ نقضه (الفتاوی المهدیة صـ۲۲۹ج ۳) لایجوز رؤیة و سماع الدعوی تکرارًا التی حکم و صدر اعلام بها توفیقا لاصولها المشروعة ای الحکم الذی کان موجودا فیه اسبابه و شروطه (المجلة المـ۱۸۳۷) سئلت مرارا عدیدة عن حکم القاضی المستوفی لما یطلب فیه شرعا هل ینقض فاجبت بما فی الخیریة من اول القضاء لایجوز نقضه بعدا نبرامه و استیفاء شرائطه و احکامه سواء کان متفقا علیه او مختلفا فیه اختلافا فی محل یسوغ فیه الاجتهاد (الفتاوی الکاملیة صـ۱۰۶) سئل فی حکم القاضی اذا کان بعد دعوی صحیحة شرعیة و شهادة مستقیمة و انفصل الحال علی ذلک المنوال هل یلزم ولایجوز نقضه ولا استئناف الدعوی ام لا اجاب لایجوز نقضه بعدا نبرامه و استیفاء شرائطه و احکامه سواء کان متفقا علیه او مختلفا فیه اختلافا فی محل یسوغ فیه الاجتهاد...... وهذا مما اجتمعت علیه الامة و اتفقت علیه الائمة ومع ارتفاع الخلاف کیف یسوغ الاسئناف (الفتاوی الخیریة صـ۲ج۲) الاصل فی القضاء انیکون علی درجة واحدة..... ولکن ..... جری العمل حدیثا علی تعدد المحاکم ولا مانع فی الفقه الاسلامی من تعدد المحاکم بدلیل الخ (الفقه الاسلامی صـ۷۵۴ج ۶) و اذا رفع الی القاضی حکم حاکم امضاه الا ان یخالف الکتاب او السنة او الاجماع او یکون قولاً لا دلیل علیه (الجوهرة النیرة صـ۳۱۵ج۲)

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که ورونه په مشترک مال کي ودونه وکړي
## بیاتقسیم وکړي یو ورورېږ واده پاته سي دولور حق پرنورو لري کنه؟

ال: محترم مقام دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

بد: زه ستاسو فتوی غواړم په دی مسئله کی مونږ خلور ورونه یو دوه د یوې مور او دوه د مور زمونږ پلار په ژوند کی دوه مشران ورونه جلا کړی وه بیا زمونږ پلارچا قتل کړی نکه مونږ دوه د عمر په لحاظ کم وو نو هغه مشران ورونه راګډ سوه بیا په دیت د والد حب مونږ ټولو ۴۰۰ سوه میږی راوستی بیا زمونږ مشرانو ورونو په مال مشترک کي ي و کړي یعنی ولور ئي د مال مشترک څخه ورکړ لیکن دغه یو ورور خپله یوه لور ورکړه یم ئې ولور ورکړ او زما مور نی ورور ته ئی هم ښځه په مال مشترکه وکړه زه پاکستان ته ړم د سبق دپاره ۶ کاله بعد راغلم چه دوئ تقسیمونه سره کړی وه مال باقی مانده ئی دوه یمه کړی وو یو تقسیم ئی زما مور او ورور ته ورکړی وو او بل تقسیم هغه دوو مشرانو و اخستی وو بیا زما مورنی ورور ما ته ښځه وکړه او نیم ولور ئی هم ورکړ د خپل مال ه نو اوس زه پر دغه دوو مشرانو ورونو حق د نیم ولور لرم کیا ؟د شریعت په رڼا کی جواب رئ ؟

ب: که چیری واقعه داسی وي لکه تاسو چه لیکلی ده نو دغه مستفتی ته باید ووایو چه غه وخت کی چه مشرانو ورونو وَدُونه کول او پیسی ئی د پلار د پاته سوی مال څخه چه یم سوی نه وی مصرفولی نو په دغه حال کی که ته بالغ وي او ستا په خوښه دوئ دغه ف کړی وي نو اوس ته شرعًا حق د ولور اخستلو نه لري لکن که دوئ په خپله رضاء او ت د رکاوه نو پروانه لري او که تا اجازه نه وی ورته کړی یا ئی ستا په غیاب کی په خپل ا کار کړی وي یا ته په هغه وخت کي صغیر وي او پس له بلوغه دې هم اجازه نه وی کړی ه دې صورت کي حکم دا دی هغه وَلورونه چه د مشترک مال څه ستا بې اجازې یا په ت د کوچنی والی کی اخستل سوي دي هغو ته دې حساب وسی او د مال میراث په طریقه ټولو وارثانو حصی معلومی سی هر څونه حصه چه تا ته ورسیدله د هغو نه پیسو حق ته

لري چه مشران به ئی تا ته درکوي خو دا ټول په هغه وخت کی کیدای سی چه هغه تقسیم چه دوی ستا په غیاب کی کړی دی هغه تقسیم ئی د باقیمانده پیسو کړی وي او وَلورونو ته ئی حساب نه وی پکښی کړی او نه ئی د وَلورونو مصارف په تقسیم کی داخل کړی وي.

کل من الشرکاء فی شرکة الملک اجنبی فی حصة سائر هم فلیس احدهم وکیلا عن الاخر ولایجوزله من ثم ان یتصرف فی حصة شریکه بدون اذنه (المجلة المـ۱۰۷۵) والاذن نوعان صریح ودلالة ففی الاول یتصرف الشریک بحصة شریکه کما اذنه سواء اضرا ولم یضرفله ان یرهن ویبیع او یهب اما فی الثانی فانما یتصرف بها علی ماهو معروف و معتاد (شرح المجلة سلیم باز المـ۱۰۷۱ صـ۶۰۰) الخلاصة ـ للشریک ان یتصرف بجمیع انواع التصرف من التصرفات المضرة و غیر المضرة باذن شریکه الصریح (دررالحکام صـ۲۴ ج ۳)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که ځوک موټر واخلي اسناد ئې له مالک سره وي پیسي ئې هم پوره نه وي وکړي په دې وخت کي ئې مشتري پربل چاخرڅولای سي کنه؟

**سوال**: یو سړی باندی مو موټر خرڅ کړی د اوو ۷ ورځو په خیار چه که مونږ موټر خوښ سو زمونږ دی او که مو نسو خوښ بیرته ستا سی دی موټر ئی بوتلی او د دغه اوو ۷ ورځو په مابین کی ئی پر بل چا خرڅ کړی مونږ نه د موټر کاغذان او اسناد هغه سړی ته ورکړی وه نه هغه ټوله پیسی راکړی وي صرف یو لک کالداری ئی راکړی وي او دری نیم لکه پر پاته وي نو ایا دغه سړی کولای سی چه دغه موټر پر بل چا خرڅ کړی کیا؟

(المستفتی محمد کریم)

**جواب**: دا چه د موټر اسناد او کاغذان تاسو راګرځولی دي يوازې موټر هغه بيولی دی نو دلته قبض د مبيعی نه دی راغلی نو هغه مشتری نسی کولای چه دا موټر پر بل چا خرڅ کړی ځکه چه خرڅول د يو شی منقول تر مخه د قبض ناجائز دی او اسناد او کاغذان د موټر موانع د تصرف دي د حکومت او ترافيکو په وړاندي.

ان القبض يحصل بقبض المبيع كله (دررالحكام شرح مجلة الاحكام صـ٢٥١ج١) ثم التسليم يكون بالتخلية على وجه يتمكن من القبض بلا مانع و لاحائل الخ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ٤٧ج٤) التسليم أو القبض معناه عند الحنفية هو التخلية أوالتخلى وهو أن يخلى البائع بين المبيع و بين المشترى برفع الحائل بينهما على وجه يتمكن المشترى من التصرف فيه (الفقه الاسلامى صـ٣٣٨٨ج٥ ط جديد) للمشترى ان يبيع المبيع لاخر قبل قبضه ان كان عقارا و الافلا (المجلة المـ٢٥٣) فقال الشافعى بعدم الجوازسواء أكان المبيع عقارا أم منقولا و قال ابوحنيفة بجوازه فى العقار و عدمه فى المنقول (دررالحكام صـ٢٣٧ج١) فاذا قبض المشترى المبيع بدون اذن البائع قبل ان يؤدى الثمن الى البائع و باعه من آخر أو آجره أورهنه أووهبه أو تصدق به و سلمه اى تصرف به تصرفا قابلا للنقض و الفسخ فللبائع ان ينقض هذه التصرفات (دررالحكام صـ٢٦٠ج١) قال محمد كل تصرف يجوزمن غير قبض اذا فعله المشترى قبل القبض لايجوز و كل مالايجوزالا بالقبض كالهبة اذا فعله المشترى قبل القبض جاز و يصير المشترى قابضا (ردالمحتار صـ٤٧ج٤)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## په تراویحوکي به بسم الله دهرسورة په سرکي په زوره وايي که ديوه سورة؟

**سوال**: و حضور ته د محترم د دارالافتاء رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.
و بعد: زما استفاء په لاندي توگه د جواب په خاطر ستاسو عالی مقام ته وړاندي کیږي څرنگه چه د روژې مبارکه میاشت رانزدي شوی ده یو طالب جامع کښی د ترایحو د لمانځه د اداء کولو لپاره مؤظف سوی دی دی د هرسورت په پای او د بل سورت په شروع کښی د لمانځه د اداء په وخت کی بسم الله په جهر سره وايي ایا په داسی وخت د بسم الله ویل په جهر سره سنت دی او جواز شته کنه هیله ده چه په دې باب د شرعی مسئلو پربنا معلومات راکړی ډیره مننه به مو وي؟

(الحاج مولوی خدایدا د رئیس دیوان امنیت عامه مقام عالی تمیز)

**جواب**: د فاتحة او سورة تر مابین بسم الله ویل که جهرًا وی که سرًا نه سنت دی نه مکروه بلکه یو جائز عمل دی البته که ویل ئی نه تکلیف کیده پر قوم باندي نو درجه د حسن او استحباب لري او د هر سورة په شروع کی بسم الله ویل جهرًا مکروه دی او پټ ویل ئی جائز دی او که سبب د تطویل نه وه نو مستحب ده خو کله چه په تراویحو کی یو څوک ختم د قرآن شریف کوی نو یو وار به ئی د یو سورة په سرکی په جهر سره وایی هر سورة چه وي په نورو سورتو کی د پټ ویلو او نه ویلو اختیار لري او که چا د فاتحة څخه وروسته سورة د مابین څه شروع کاوه نو بسم الله ویل اتفاقا نده سنت.

لاتسن بین الفاتحة و السورة مطلقا ولو سریة ولاتکرہ اتفاقا الدرالمختار قوله و لاتکرہ اتفاقا و لهذا صرح فی الذخیرہ و المجتبی بانه ان سمی بین الفاتحة و السورة المقروءة سرا او جهرا کان حسنا عند ابی حنیفة و رجحه المحقق ابن الهمام و تلمیذہ الحلبی لشبهة الاختلاف فی کونها آیة من کل سورة بحر (ردالمحتار ص۳۶۲ج۱) هکذافی (الطحطاوی علی الدرالمختار ص۲۱۹ج۱) قوله ولاتکرہ اتفاقا بل لاخلاف فی انه لوسمی لکان حسنا (طحطاوی علی الدرالمختار ص۲۱۹ج۱) هکذافی (السعایة شرح شرح الوقایة ص۱۷۰ج۲) و فرعوا علیه ان من لم یقرء البسملة فی صلوة التراویح فی تمام القران مرة واحدة ایضا لاتتأدی سنته و هذا هوالاصح (سعایة ص۱۷۰ج۲).

پس ہرایک سورۃ کی ساتھ جہر نہ کرنا چاہیئے صرف تمام قرآن شریف میں ایک دفعہ کسی سورۃ میں جہر سے پہڑ ی (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۲۲۸ج۴) هکذافی (۲۲۲) (۲۲۴) (۲۷۸ج۴) و (احسن الفتاوی ص۵۱۹ج۳).

(امدادالفتاوی ص۳۲۸ج۱) و (امدادالاحکام ص۶۳۰ج۱) باقی سب سورتوں کی اول میں بسم اللہ کو جہر سے پڑہنا امام صاحب رحمۃ اللہ تعالی کہ نزدیک مکروہ ہے اور ہر سورۃ کی اول میں سرا پڑہنا جائز ہے بلکہ اگر مقتدیوں پر تطویل کا خوف نہ ہوتو مستحب ہی (امدادالاحکام ص۶۳۰ج۱) وافاد بذکر السورۃ انہ اذا قرء ایات من سورۃ لاتسن اتفاقا (طحطاوی علی الدرالمختار ص۲۱۹ج۱)

واللہ تعالی ﷻ اعلم.

بسم اللہ الرحمن الرحیم

## ژوندی حیوان په تاله (وزن) خرڅول څنګه دي؟

**سوال**: ژوندی حیوان لکه چرګ خرڅول په وزن سره روادي یا نه؟

(مستفتی فضل محمد اشپز)

**جواب**: د ژوندی حیوان تلل که چیری عرف او رواج ګرځیدلی وو نو بیا صحت لري او جائز دی ځکه چه که څه هم بو څه جهالة پکښې سته لکن دا جهالة فاحشة نځ دی چه مفضی و نزاع ته سی فلهذا فتوی په جواز ورکول کیږي.

قال الحنفية ..... فانكان (اى المبيع او الثمن) مجهولا جهالة يسيرة و هى التى لاتؤدى الى المنازعة لايفسد البيع لان هذه الجهالة لا تمنع من التسليم و التسلم فيحصل مقصود البيع و العرف هو المحكم فى بيان نوع الجهالة يسيرة او فاحشة (الفقه الاسلامى صـ۴۵۴ ج ۴).

سوال: آج کل زندہ مرغی تول کر بیچی جاتی ہی کیا یہ جائز ہے جبکہ ہدایہ میں تصریح ہے ولا یمکن معرفۃ ثقلہ بالوزن لانہ یخفف نفسہ مرۃ و یثقل اخری اس سے معلوم ہوتا ہے کہ عدم امکان معرفت وزن کی وجہ سے یہ بیع صحیح نہیں،
الجواب: باسم ملہم الصواب مرغی کی سانس کی وجہ سے اس کی وزن میں کوئی معتدبہ فرق نہیں آتا لہذا یہ جہالت یسیرۃ ہے جو مفضیۃ الی المنازعۃ نہیں نیز مرغی کی اس طرح بیع کی عرف عام ہو جانی کی وجہ سے اس میں نزاع کا احتمال نہیں اس لئے یہ بیع جائز ہے (احسن الفتاوی ص۴۹۷ ج۶)

واللہ تعالی اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دولتي مځکه په اجاره ورکول سي

## هم عشر ورباندي سته؟که وي نوپردولت که پرمستاجر؟

**سوال**: د بیت المال په مځکو کی عشر سته کنه؟ چه په اجاره ورکول سوي وي ؟

**جواب**: په امارتی مځکو کی عشر سته ولی په عشر کی ملکیت د مځکې لازم نه دی نو که د امارت مملوکه مځکې حکومت خلقو ته په اجارة کامله ورکړی نو عشر به مؤجر ورکوی او که په أجرة ناقصة سره یی اجارة وکړه نو عشر به مستأجر ورکوي نو که مؤجر وي او که مستأجر عشر به خپلو مستحقینو ته ورکوی د مسجد ملا امام ته عشر ورکول جائز دی لکن په دوه ۲ شرطه (اول ) دا چه هغه ته به شرعًا د عشر اخستل جائز وي مثلا فقیربه وی (دوهم ) دا چه دغه عشر به په عوض کی د امامت نه ورکوی او نه به یی د امامت لحاظ ساتی خاص او خاص به یی د هغه مستحق والی په نظر کی ساتلی وي او اجرت کاملة دی ته وایی چه که دغه اجاره دار هم أجرة ورکړی مؤجر ته هم عشر ورکړی نو یا تاوانی کیږي یا ډیره لږ گټه ورپاتیږي او اجرة ناقصة دی ته وایی چه که مستأجر عشر ورکړی بیا هم قابل اعتبار گټه ور پاته سی او د بیت المال او امارتی مځکو کی داسی مځکی هم سته چه هغه په اصل کی خراجی وي او مالکان یی وفات سوی وي او وارثان یی پاته وی نو د بیت المال گرځیدلی وي یا یو ځای د کفارو څه په زور فتح سی او بعضی ابادی مځکې د عامو مسلمانانو د نفعې دپاره بی تقسیمه پاته سی دي ته اراضی الحوز ویل کیږي حکم یی دا دي چه دغه مځکي که حکومت په اجاره ورکړی نو هغه اجرة خراج بلل کیږي د حکومت په حق کی او اجرة بلل کیږي د مستأجر په حق کی نو د دغه اجرة څخه پرته نه عشر سته نه خراج نه پر مؤجر نه پر مستأجر ولی هغه أجرة خراج و بلل سو د حکومت په حق کی نو عشر او خراج خو نه جمع کیږي او نه خراج تکرارًا اخستل کیږي.

و كذا ملك الارضْ ليس بشرط للوجوب لوجوبه فى الاراضى الموقوفة (الفتاوى الهندية صـ۱۸۵ج۱) هكذافى (ردالمحتار صـ۲۷۹ج۳) نعم قد تقرران اراضى بيت المال يسلك بها مسالك ارضْ الوقف خيرية من العشر و الخراج (تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۰۲ج۲).

چونکہ وجوب عشر کی لئے زمیں کا مالک ہونا ضروری نہیں ہے یہی وجہ سے کہ غیر مملوکہ راضی میں بھی عشر واجب ہے نیز عشر پیداوار میں واجب ہے نہ کہ زمیں میں اس لئے اراضی اوقاف میں بھی عشر واجب ہوگا خواہ اوقاف عامہ کی اراضی ہوں یا وقف علی الاولاد کی۔ فقط (جدید ف۔ فقہی مباحث ص۷۵۴ج۹).

والعشر على المؤجر كخراج مؤظف و قالا على المستأجر (الدرالمختار) فان امكن اخذالاجرة كاملة يفتى بقول الامام و الافبقولهما لما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لايقول به احد (ردالمحتار صـ۶۰ج۲) هكذافى (تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۰ج۱).

عشر و خراج مقاسمہ میں یہ تفصیل ہے کہ اگر زمیندار أجرت بہت زیادہ لیتا ہے اور مستأجر کی پاس بہت کم بچتا ہے تو عشر اور خراج مقاسمہ زمیندار پر ہے اور اگر اجرت کم لیتا ہے مستأجر کو بچت زیادہ ہوتی ہے تو عشر اور خراج مقاسمہ مستأجر پر ہے (احسن الفتاوی ص۳۴۷ج۴) هکذافی (امدادالفتاوی ص۵۸ج۲) و (جواہر الفقہ ص۲۷۹ج۲).

فثبت ان بيع الاراضى المصرية و كذالشامية صحيح مطلقا اما من مالكها او من السلطان فانكان من مالكها انتقلت بخراجها و ان من السلطان فان لعجز مالكها عن زراعتها فكذلك و ان لموت مالكها فقد منا انها صارت لبيت المال و ان الخراج سقط عنها فاذا باعها الامام لايجب على المشترى خراج سواء وقفها أو أبقاها قلت وهذا نوع ثالث يعنى لاعشرية ولاخراجية من الاراضى

تسمى أرضّ المملكة و أراضى الحوز وهو مامات أربابه بـلاوارث و آل لبيت المـال او فتح عنـوة و أبقى للمسلمين الى يوم القيامة وحكمه على مافى التتارخانية انه يجوز للامام دفعه للزراع باحد طريقين اما با قامتهم مقـام المـلاک فی الزراعـة و اعطاء الخراج و اما باجارتهـا لهـم بقـدرالخراج فيكون المـأ خوذ فـى حـق الامـام خراجـا ..... و امـافى حـق الاكـرة فـأجرة لاغيـر الـخ (ردالمحتـار صـ۲۸۰ج ۳) ارضّ خـراج مـات مالكهـا فللسـلطان ان يؤجرهـا و يأخـذالخراج مـن أجرتهـا (مجموعه رسائل ابـن نجيم صـ۵۱) لان العشرية تصير خراجية و الخراجية لاتـصير عشرية (النـتف فى الفتاوى صـ۱۱۹) فالحاصل ان ارضّ مـصرخراجية فـى الاصل كما صرح به فى الهداية (مجموعة رسائل ابـن نجيم صـ۵۲) و يجـب الخـراج فـى ارضّ الوقف الاالمشتراة من بيت المـال اذا وقفها مشتريها فـلا عـشر ولاخـراج الـخ ( الدرالمختار) قوله فـلا عشر و لاخراج لم يـذكـر فى البحـر العـشر ..... نعم ذكـر العشر فى تلک الرسـالة فقـال انه لايجب ايضًا لانـه لم يرفيه نـقـلا قلت و لايخفى مافيه لانهم قد صـرحـوا بـان فـرضـية العـشر ثابـتـة بالكتاب و السـنـة و الاجماع و المعقـول و بانـه زكـاة الثمـار و الـزروع و بانـه يجب فـى الارضّ الغيـر الخراجية و بانه يجب فيمـا ليس بعشرى و لاخراجى كالمفـاوز والجبـال و بـان سبب و جوبه الارضّ النـامية بالخـارج حقيقـة و بانـه يجب فـى اراضـى الـصبى و المجنـون و المكاتب لانـه مؤنـة الارضّ وبـان المـلک غير شرط فيه بـل الـشـرط ملک الخـارج فيجـب فـى الاراضـى الموقوفـة الـخ (ردالمحتـار صـ۲۷۹ج ۳ و صـ۵۴ج ۲) و عـلى فـرضّ سقوط الخـراج لايـسقط العـشر فـان الارض المعـدة للاسـتغلال لاتخلـو من احدى الوظيفتين (ردالمحتار صـ۵۴ج ۲).

بسم الله الرحمن الرحيم

**ځيني مواد، حيوانات، اجناس چې له يوه ملکه بل ملک ته انتقاليږي دولت واک لري چې دخپل ملک دمصلحت په خاطرئې له خارجه بندکړي؟، اوځيني جايدادونه چې مالکان ئې غائب وي دولت کولای سي چې په غياب کي ئې داصلاح په خاطر ونړوي؟**

**سوال**: د دارالافتاء د رياست محترم مقام ته السلام عليکم ورحمةالله وبرکاتهُ هيله لرو د لاندي ذکر شويو شيانو اجناسو حيوانانو حبوباتو ارتزاقي موادو په هکله د شرعي فتوی په اساس معلومات راکړي:

(**اول**) داهلي حيواناتو لکه غواوي پسونه ووزی آس او داسي نورو بندول د خارج څخه

(**دوهم**) د خوراکي موادو لکه غنم جوارماش تازه ميوه لوبيا او داسي نورو بندول د خارج څخه چه په ملک کي قيمتی او قحطي جوړيږي؟

(**دريم**) ارتزاقي مواد لکه د سونگ لرگي.

(څلورم) د حيواناتو خوراکي مواد لکه پروړ شپيشتي اوربشي ايږدن او داسي نورو ورلو بندول خارج ته

(**پنځم**) سپيني با توري وړی.

(**شپږم**) پنبه چه په ملک کښي ورته ضرورت وي د خارج څخه منع کول شرعًا څه حکم دی؟

(**اووم**) د پورته شيانو منع کول د مخالفينو د مناطقو څخه څه حکم لري؟

(**اتم**) د هغه مارکيټونو په هکله چه بايد روغ او ترميم سي يا د ښاروالي د ماسټر پلان او نقشي مطابق بايد ونړيږي او استملاک شي چه فعلاً ئي مالکان نسته او په خارج کښي او سيږي د دوی په غياب کښي په نوموړو ملکيتونو کښي کارکول او د هغي څخه استفاده کول څه حکم لري د پورته اتو ۸ مادو په هکله که د شريعت په چوکاټ کښي معلومات راکړی ډيره مهرباني به مو وي؟

﴿الحاج مولوی صدراعظم د ښاروالي مرستيال﴾

**د اولينو شپږو سوالونو جواب**: که چيری و دغه مالونو ته په افغانستان کي داخل شديد ضرورت وو او خارج ته په انتقالولو کي يې ضرر عام پيښيدی و دې ملت ته نو حکومت نه

اجازه سته چه تجاران د دغه انتقال څه منع کړی لکن پس د منعی څخه به تجار په دی نه مکلف کيږي چه په داخل کي د افغانستان يي په يو معين ولايت کی خرڅ کړی او نه به يی مالونو ته هيڅ قسم ضرر او نقصان رَسَول کيږي او نه به نرخ ورته ټاکل کيږي ځکه چه تسعير يعنی نرخ ورکول په شريعت مقدس کی جائز نه دی بغير له هغه يوه معين صورته څخه او که چيری خارج ته په انتقال کی ضرر عام نه وو او دلته ضرورة شديده نه وو موجود نو بيا حکومت ته شرعًا اجازه نسته چه منع د انتقال څخه وکړی ځکه هر سړی په خپلو مالونو کی شرعًا صلاحيت او اختيار لري هرڅه چه په کوی هر ځای چه يی وړی.

اعلم ان فی جنس هذه المسائل اختلافا حاصله انه لايمنع علی اصل الامام وهو ان کل من تصرف فی خالص ملکه لايمنع فی الحکم وان لحق بالغير الضرر وافتی بهذه طائفة لکن ترک غالب المتأخرين ذلک فی موضع يتعدی ضرر تصرفه الی غيره ضررا بينًا وقالوا بالمنع وعليه الفتوی کما فی کثير من المعتبرات (غمز عيون البصائر ص۲۸۲ج۱) الملک اختصاص بالشئ يمنع الغير منه ويمکن صاحبه من التصرف فيه ابتداء الالمانع شرعی الخ (الفقه الاسلامی ص۵۷ج۴) لايجوز لاحد ان يتصرف فی مال الغير بلا اذنه (المجلة المـ۹۶) ولهذا يجب ان يکون او امر السلطان واولی الامر والنهی موافقة لمصالح الرعية الخ (شرح المجلة لسليم باز ص۴۲) ولايسعر حاکم لقوله ﷺ لاتسعروا فان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق الخ (ردالمحتار ص۲۸۳ج۵) وبناء عليه الاصل عدم التسعير ولايسعر حاکم علی الناس وهذا متفق عليه بين الفقهاء (الفقه الاسلامی ص۵۸۸ج۳).

**داووم سوال جواب**: امام کولای سی چه د مخالفينو د مناطقو څخه يوړسه مواد منع کړی که دا په دي کی مصلحت ليدی او سبب د کمزوری د مخالفينو کيدی او پر خلقو باندی ئی د دغه امر هم دنو او امرو په مان واجب التعميل دی تخلف کوونکی ته به قاضی د خپلی خوښی مصر تعزير ورکوی او د تعزير مالی څخه به اجتناب کوی او مالونو ته به هيڅ نوع ضرر نه رسيږي کيږي لکه چه حوالی او عبارتونه د اول سوال په جواب کی تير سوه او همدارنګه وايی.

فتصرف الغير في مال الغير ممنوع الاان تكون وصاية او ولاية او تدعو ضرورة فيجوز..... لان الضرورات تستثنى من القواعد العمومية (شرح المجلة للاتاسى صـ۲۶۲ج۱) التصرف على الرعية منوط بالمصلحة (المجلة المـ۵۸).

او همدارنګه امام ته دا اجازه سته چه د مخالفينو شخصي اموال د هغوئ څخه واخلي او تر هغو يي ورته وساتي (حبس يي کړي) څو چه د دوی مخالفت ايسته کيږي نو دعادلانو او تجارانو په مالونو کی د منع د انتقال حق په طريق اولی لري لکه چه وايي.

و اما اموالهم فيحبسها عنهم الامام الى ان يزول بغيهم فاذا زال ردها اليهم الخ (الفقه الاسلامى صـ۱۴۴ج۶) هكذافى (بدائع الصنائع صـ۱۴۱ج۷).

**د اتم سوال جواب**: د دغه مارکيټو په باره کی بايد ووايو چه حکومت ته بالکل ناجائز او حرامه ده چه په يو نوعه د انواعو تصرف پکښي وکړي استملاک خويي بالکل قطعي حرام دي او حکومت لره شخصي استفاده ځنی بالکل حرامه ده پرته له هغه صورته که لار يا سړک جوړيدی او ترڅو چه دغه د غائب ملکيت ته نقصان ونه رسيږي نو دا لارنسی جوړيدلای او د دغه لار يا سړک و جوړولو ته شديد ضرورت موجود وو نو اميد سته چه جواز به ولري سره د نورو شرائطو چه فقهاؤ ذکر کړی دي او دغه د ښاروالی نقشي يا ماستر پلان يا تزيين او ترميم شرعًا په ضروراتو کی نه دی داخل او نه په ضروراتو کی حسابيږي.

لايجوز لاحد ان يتصرف فى مال الغير بلا اذنه (المجلة المـ۹۶) وعدم الجواز شامل لجميع انواع التصرف من استعمال كركوب ولبس ووضع جذع على حائط ودخول دارو مرور بارضٍ و من اعارة و ايداع و اجارة و صلح وهبة و بيع و رهن و هدم و بناء الخ (شرح المجلة للاتاسى صـ۲۶۲ج۱) لايجوز لاحد ان ياخذ مال احد بلاسب شرعى (المجلة المـ۹۷) اى لايحل فى كل الاحوال عمدا او خطاء او نسيانًا جدا او لعبًا ان يأخذ احد مال احد بوجه لم يشرعه الله تعالى ولم يبحه لان حقوق العباد محترمة لا تسقط بعذر الخطأ و النسيان و الهزل و غيره و ذلک كالغصب و السرقة الخ (شرح المجلة للاتاسى صـ۲۶۴ج۱) فمن

تناول مال احد باحدی هذه الطرق فهو ظالم غاصب یجب علیه رده قائما او مثله او قیمته هالکاً (اتاسی صـ۲۶۵ج۱) لدی الحاجة یؤخذ ملک کائن من کان بالقیمة ویلحق بالطریق لکن لایؤخذ من یده ما لم یؤدله الثمن انظر الی مادتی (۲۵۱) (۲۶۲) (المجلة المـ۱۲۱۶) وهکذافی (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۵۸ج۴) (سلیم باز صـ۴۳) (الفتاوی الخانیة بهامش الهندیة صـ۲۷۹ج۱) (الفقه الاسلامی صـ۵۰۹ج۵) و (۷۶ج۴)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**دزیارت اصلي طریقه څنګه ده؟ایاله زیارته مرسته غوښتلای سي؟**

**سوال**: د دارالافتاء محترمو علماء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

(اول) چه سړی مریض زیارت ته ولاړی اوس څه ووایی او څنګه وکړی د دغه مریض په حصه کی خواه روحی وي او که جسمی وي یا نور څه ، ایا داسړی مدد او کومک غوښتلای سی کنه؟

(المستفتی عبدالجلیل)

**جواب**: سنّت طریقه داده چه د مصائبو او امراضو په وخت کی د تیرو ګناهونو څخه عفوه وغواړی استغفار ووایی او د الله ﷻ څخه طلب د شفاء وکړی یا د اسانه کولو د مصیبت ولی چه الله تعالی ﷻ قادر مطلق او ستا په مشکل باندي پوره عالم دی او د دعا د قبلولو وعده ئی هم کړیده او دانور أسباب قطعی نه دی او د دغه دعا دپاره که وکتل سی چه په یو با برکته محل کی وسی لکه مساجد او زیارتونه د اولیاء کرامو نو دا بهتره ده او که د الله تعالی ﷻ څخه طلب د دعا و کړی په وسیله د مشایخو هم جواز لري او دا چه پخپله د زیارت څخه شفا غواړی دا کار د عوامو دپاره ناجائز دي ولی احتمال د شرک یا د ګناه یا د افتراء پکښی سته

که نور نه وی نو بدعت خو په یقینی ډول دی او هغه علماء که خپل د نیت پر اصلاح نادر وی او نیت سم کړی او دغه زیارت والا متصرف تام الاختیار مستقل و نه بولی یا طلب د دعا ځنی وکړی د الله تعالی ﷻ په دربار کښی لکه څنګه چه د ژوندو څخه چه طلب کیږي او د هغه دعا واجابت قریبه و برلی تر خپلی دعاء نو بیا جواز لري.

استمداد بارواح بزگان دوقسم است قسمی آنست که بابزرگان زنده هم مانند آن بعمل میآید یعنی دعای ایشانرا اقرب الی الاجابة فهمیده ایشانرا واسطۂ درخواست مطالب خود سازد وایشانرا مرتبه بجز توسط وآلیت درذهن خود نه نهد مانند عینک پندارد وهذا جائز بلا اشتباه وقسمی آنست که توجه مقصور بر ایشان باشد وچنین پندارد که ایشان دردہانیدن مطلب یا دادن آن مستقل اند ومرتبه از قرب حق دارند که تدبیر آلهی را تابع مرضی خود توانند ساخت وہمیں قسم است که عوام بآن استمداد می طلبند واین قسم شرک محض است ﴿فتاوی عزیزی ص-۱۰۴ ج ۲﴾ وبتحقیق ثابت شده است بآیات واحادیث که روح باقی است واورا علم وشعور بزائران واحوال ایشان ثابت است وارواح کاملان را قربی ومکانتی درجناب حق ثابت است چنانکه درحیات بود یا بیشتر ازان .

﴿اشعة اللمعات ص-۷۶۲ ج۱﴾ استمداد ازاموات خواه نزدیک قبور باشد یا غائبانه بی شبهه بدعت است ودرزمان صحابه وتابعین نبود لیکن اختلاف ست دران که این بدعت سیئه است یا حسنه ونیز حکم مختلف میشود باختلاف طریق ستمداد﴿فتاوی عزیزی ص۸۹ ج۱﴾ جو استعانت واستمداد بالمخلوق باعتقاد علم وقدرت مستقل مستمدمنه ہو شرک ہی اورجو باعتقاد علم وقدرت غیر مستقل ہو مگر وہ علم وقدرت کسی دلیل صحیح سی ثابت نہ ہو معصیت ہی اورجو باعتقاد علم وقدرت غیر مستقل ہو اور وہ علم وقدرت کی دلیل سی ثابت ہو جائز ہی ﴿امداد الفتاوی صـ۳۷۴ج۵﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک تناب کش کړي بل سړي په ځاه کي واچوي، مړسي، ديت، ضمان سنه کنه؟

**سوال**: د کندهار د دارلافتاء عمومی ریاسنت السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ

الغرض والمرام: یو سړی د ځاه پر خوله باندي پر څرخ باندي ئی ځان تکیه کړیدی او پر دغه څرخ باندی لړ تناو پیچلي دی او بل سړی ځاته ورشیوه کیږي تر یو حده پوری بې تناوه کښته کیږي بیا عام خلګ پر تناو ورشیوه کیږي نو دغه کښته هم تناو راکش کړی او خبر نه دی چه تناو پیچلي دی او یا څوک پر څرخ تکیه کړیده نو دواړه ځاته شیوه سوه لکن لاندی سړی لړ خوږ سو او سر بیره سړی مړ سو. د دې مړی دیت سته که نسته او که چیری وي نو پر چا به وي؟

**جواب**: دغه سړی چه لاندي شیوه سوی دی او تناو یې کش کړی دی او دغه فعل د تناب کشیدو سبب د رالویدلو او مړ کیدلو د دې بل سړی ګرځیدلی دی نو دی مباشر بلل کیږي او پر مباشر باندی ضمان او دیت سته که څه هم د ده په قصد او اراده هغه فعل نه وی صادر سوی.

حد المباشر ان يحصل التلف بفعله من غير ان يتخلل بين فعله و التلف فعل مختار كذافى الو لوالجية من كتاب القسمة (غمر عيون البصائر صـ۴۶۶ج۱) المباشر ضامن و ان لم يتعمد (المجلة المـ۹۲) فيضمن و انكان مخطئا سواء كان الخطاء فى نفس الفعل نحو ان يقصد صيدا فاصاب شاة لانسان او فى ظن الفاعل نحو ان يظن الشاة حجرا فاصابها بسهمه او لم يكن هذا ولا هذا كما لو انقلب و هو نائم على مال فاتلفه قال و ان لم يتعمد لانه مع التعمد من باب اولى و عليه الاثم و بدونه ضمان و لا اثم (شرح المجلة للاتاسى

صـ۲۵۵ج۱) و اماما اجری مجری الخطأ كنائم انقلب علی آخر فقتله فحكمه حكم الخطأ . . . . . و موجبهما ای الخطأ مطلقا و ما اجری مجراه الكفارة و الدية علی العاقلة (مجمع الانهر صـ۶۱۷ج۲).

د دوهم سوال په هكله بايد ووايو چه ديت اولاً پر عاقلة دی او كه عاقلة موجود نه وی نو بيا پر بيت المال دی كه ښه منظم بيت المال موجود وو او كه هغه هم نه وی نو د قاتل د خپل مال څخه به په درې كاله كی اخستل كيږي او عاقلة د دفتر يا تنظيم ملګرو ته ويل كيږي يا نور د ده هم كسبه يا اقرباء يا قوم او قبيلة دی يعنی هر هغه څوک چه د دوی تر مابين تناصر موجود وی او يو د بل په مشكلاتو كی سره حاضريږي هغه معتبر دی.

قال فی البزازية و عاقلة كل انسان من يتناصر هو به ان من اهل الديوان فعاقلته اهل ديوانه و الصناع بعضهم لبعض انكانوا يتناصرون بالديوان و الصناعة . . . . . و ان لم تكن له عشيرة ولا ديوان فعاقلته بيت المال فی ظاهر الرواية و عليه الفتوی . . . . . ثم ان وجوبها فی بيت المال انما هو حيث كان منتظما و الافی مال الجانی قال فی المجتبی مانصه قلت وفی زماننا بخوارزم لايكون الا فی مال الجانی الا اذا كان من اهل قرية او محلة يتناصرون لان العشائر فيها قدوهت . . . . . وقد مر ان الدية حيث وجبت علی العاقلة تؤخذ فی ثلاث سنين و انه لايؤخذ من كل واحد منهم اكثر من ثلاثة دراهم . . . . . و اذا فقد بيت المال و وجبت الدية علی المسلم فی ماله صار كالذمی فتجب عليه فی ثلاث سنين ابتداء ها من يوم القضاء لا من يوم الجناية (تنقيح الحامدية صـ۲۵۰ج۲) هكذافی (الفتاوی الهندية صـ۸۳ج۶) و (احسن الفتاوی صـ۵۴۱ج۸)

والله تعالٰی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که انګور دګل پر وخت خرڅ کي اوله دي وروسته دباوړئ اوبه پر لګوي عشرکه نصف عشر ورکړي؟ که هریو وي پر بائع ده که پر مشتري؟

**سوال**: محترمو د شوری علماء کرامو چه د یوه باغ انګور په هغه وخت کی خرڅ کړی چه ګل وی او هغه وخت ئی د ولی اوبه پر لګولی وي او تر هغه وروسته مشتری د باوړی او به پر لګولی وي بائع به لسمه حصه زکوة ورکوي که شلمه او پر مشتری باندي عشر سته کنه او که وی را ته بیان ئی کړئ ؟

**جواب**: خرڅول د انګورو یا د نورو میوو په هغه وخت کی چه په ګل کی وي او دانو یې ظهور نه وی کړی دا بیعه جواز نه لري او ملکیت ئی مشتری ته نه انتقالیږي او عشر یې پر داغه بائع لازم دی هر کله چه ئی دانی ښکاره سوی بیا یې بیعه جائزه ده او پس له خرڅیدو څخه عشر پر مشتری دی که یې په داسی حالت کی خرڅه کړی وه چه دانی ئې پخی سوی نه وي. او بل دا خبره ده که دا باغ ډیر وخت د باوړی په اوبو اوبه سوی وو نو نصف عشر دی او که ډیر وخت د باران په اوبو اوبه سوی وي نو پوره عشر به ورکوی دا اعتبار نه لري چه یا بائع اوبه کړی دی یا مشتری او هر کله چه عشر پر مشتری لازم سو نو بائع خلاص دی د عشر څخه د هغه څه عشر نه اخستل کیږي.

(ومن باع ثمرة بارزة) اما قبل الظهور فلا یصح اتفاقا (ظهر صلاحها أو لاصح) فی الاصح (الدرالمختار) قوله اما قبل الظهور اشار الی ان البروز بمعنی الظهور و المراد به انفراک الزهر عنها و انعقادها ثمرة و ان صغرت الخ (ردالمحتار ص۴۲ ج۴) اجمع العلماء علی ان بیع الثمار قبل ان تخلق لاینعقد لانه من باب النهی عن بیع مالم یخلق الخ (الفقه الاسلامی ص۴۸۵ ج۴) ولو باع الارض العشریة و فیها زرع قد ادرک مع زرعها او باع الزرع خاصة فعشره علی البائع دون المشتری لانه باعه بعد وجوب العشر و تقرره بالادراک و لو باعها و الزرع بقل فان قصله المشتری للحال فعشره علی البائع. .... و ان ترکه حتی أدرک فعشره علی المشتری الخ (بدائع الصنائع ص۵۶ ج۲) هکذافی (احسن الفتاوی مع تحقیق کثیر ص۳۳۸ ج۴) ولو سقی سیحا و بآلة اعتبر الغالب (الدرالمختار) قوله اعتبر الغالب أی اکثر السنة (ردالمحتار ص۵۵ ج۲)

بسم الله الرحمن الرحیم

## که یودلګی مشر دجهاد لپاره موټر واخلي اوپوره پیسي نه لري محاذمشرئې نه ورکوي هغه نیمي هم پور وي بیرته ئې خرڅولای سي چې پورپه اداکړي؟ اوکه یومجاهد خپل موټر خرڅ کړي پیسي دده دي که دبیت المال؟

(**اول سوال** ) یو شخص مسئول د محاذ او د خط وی د یو مشر څخه چه هغه عمومی د ټول ولایت د نظامی چارو مسئولیت په لاس کی لري د موټر د اخستلو غوښتنه وسی بیا یو څه پیسی ورکړی او نوری پیسی یو بل مسئول د ولایت وعده وکړی بیا هغه د غه موعوده پیسی ورنکړی نو اوس هغه مالک دغه پیسی غواړی نو یو څه د جوړیدلو مصرف وی اوس چه مشر نوری پیسی ورنکړی که دغه موټر خرڅ کړه سی څنګه چه هغه قرض والا ته ورکړل سی متباقی بیرته په جامعه او د مجاهدو په کار کی مصرف سی شریعت او فقه حنفی څه حکم کوي؟

( **دوهم** ) زموږ له طرفه د یو مسئلې په باره کی د پوره فتوی غوښتنه کیږي هغه دا چه د جهاد په دوران کی مولوی محمد نبی صاحب یو موټر راکړی وو د اسلحی د حمل او نقل لپاره بیا دغه موټر یوه پلا د پاکستان حکومت و نیوی تقریبًا یونیم کال د پاکستان د حکومت په لاس کي پاته وو چه بالاخره یی ضبط کړی بیا موږ د ډیرو پیسو په واسطه بیرته لاس ته راوستی دوهم پلا بیا دغه موټر هزاره وو ـ ونیوی تقریبًا اووه ۷ میاشتی د هزاره وو په لاس کښی وو بیا د ډیرو روپو په واسطه موږ د هزاره وؤ څخه راخلاص کړی بیا دغه موټر په شپږ لکه کاندارو موږ خرڅ کړی اوس د دغه خرڅ سوی موټر پیسی د شریعت د نظره د بیت المال بللې کیږی او که زما بللې کیږی د دغې مسئلې په باره کی موږ جزمی او قاطع فیصله د کتابو په حواله د علماء کرامو څخه غواړو او د جوړیدلو هم زما سره صلاحیت عام ؤ تام وؤ ځکه چه اکمال می هم کوی (بینواتو جروا)

**د اول سوال جواب**: تاسی کولای سی چه د مسئولینو او مشرانو په اجازه دغه موټر خرڅ کړی او قرض په ادا کړئ خو د مشرانو اجازه پکښې شرط ده.

**د دوهم سوال جواب**: په جواب کی باید ووایو که دغه موټر د تنظیم د طرفه تاسو ته په طریقه د ملکیت درکول سوی وو چه تاسو یې شخصی مالکان یاست نو موټر او د هغه پیسی ستاسو شخصی دی او که یې فقط تولی او تصرف تاسو ته سپارلی وو او د مصارفو اجازه یې درته کړې وه نو خپل شخصی مصارف ځنی وباسی باقی پاته پیسی بیت المال ته وسپاری.

وفی فتاوی الحانوتی الذی وقفت علیه فی کلام اصحابنا ان الناظر اذا انفق من مال نفسه علی عمارة الوقف لیرجع فی غلته له الرجوع دیانة لکن لوادعی ذلک لایقبل منه بل لابد ان یشهد انه انفق من مال نفسه لیرجع ..... اعلم ان عمارة الوقف باذن متولیه لیرجع بما انفق یوجب الرجوع باتفاق اصحابنا الخ (ردالمحتار صـ۴۶۰ج۳) قد تقرران راضی بیت المال یسلک بها مسالک ارض الوقف خیریة من العشر و الخراج و فیها و الحاصل انه یجب مراعاة مصلحة بیت المال کما تجب مراعاة مال الیتیم و ما وردفیه غیر خاف علی الفقیه (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۰۲ج۲) و فی البحر و کثیر من الکتب للقیم صرف شئ من مال الوقف الی کتب الفتوی و محاضر الدعوی لاستخلاص الوقف من ایدی ذوی الشوکة خیریة من الوقف (تنقیح الحامدیة صـ۲۰۶ج۱).

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## داجاري دعشرپه هكله خلورمهيمي

## پوښتني، په اسپيكركي بې ضرورته لمونځ كول، دسيپاروختم څه حكم لري؟

**سوال** : د كندهار د ولايت د دارالافتاء د رياست و محترم مقام ته السلام عليكم ورحمةالله وبركاتهُ

محترما : هيله ده چه يو تعداد مسئلې چه مونږ سره ئی حل مبهم دی د شرعی امورو مطابق په مستند ډول معلومات راكړي.

( **اول** ) كومه مځكه چه د مځكې د مالک له طرفه په اجاره وركول سوی وي د هغی مځكی د اجاری عشر پر اجاره دار كيږي كه پر مالک ؟؟

( **دوهم** ) كه چيری اجاره دار د مځكې په اجاره كی تاوان و كړی او خپله اجاره پوره نه كړی عشر د اجاره دار لخوا وركول كيږي او كه د مځكې د خاوند لخوا ؟

( **دريـيم** ) كه چيری عشر پر مالک د ځمكی سي او مځكه تر خپلې اجاری اضافه حاصلات وكړی د اضافه حاصلاتو عشر به مالک وركوی او كه اجاره دار ؟

( **څلورم** ) د باوړي په حاصلاتو كی عشر شلم من دی او كه لسم من دی ؟

( **پنځم** ) كه چيری بيله ضرورته په لوړو لوړ سفيكرونو كی ملا امام د جماعت لمونځ ادا كوي جواز ئی څنگه دی ؟

( **شپږم** ) د قرآن شريف ختم د سيپارو د ويشلو په طريقه د شريعت د نگاه څخه څنگه دی ؟

پورتنی شپږ واړه سوالونه ستاسو حضور ته عرض سو هيله ده چه ځوابونه په مستند ډول واضح كړی.

**د اولی پوښتنی جواب** : كه چيری دغه اجاره په أجرة كاملة سره وه نو عشر پر مؤجر دی او كه په أجرة ناقصة سره وه نو عشر پر مستأجر دی اجرة كاملة دی ته وايی چه كه دغه اجاره دار هم اجرة وركړی مالک ته اوهم عشر وركړی نو تاوانی كيږي او هيڅ وقت گټه نه ورته پاتيږي او اجرة ناقصة هغه دی چه كه عشر وركړی اجاره دارته بيا هم معتد به گټه ورته پاته سی.

والعشر على المؤجر كخراج موظف و قالا على المستأجر ( الدرالمختار )فان امكن اخذالاجرة كاملة يفتى بقول الامام والافبقو لهما لما يلزم عليه من الضررالواضح الذى لايقول به احد ( ردالمحتار صـ۶۰ج۲ ) هكذافى ( فتاوى تنقيح الحامدية صـ۱۰ج۱ ).

عشر وخراج مقاسمہ میں یہ تفصیل ہے کہ اگر زمیندار اُجرت بہت زیادہ لیتاہے اور مستأجر کو بچت زیادہ ہوتی ہے تو عشر اور خراج مقاسمہ مستأجر پر ہے ( احسن الفتاوی صـ۳۴۷ج۴ ) ( امدادالفتاوی صـ۵۸ج۲ ).

**د دوهم او دریم سوال جواب**: د امام صاحب رحمۃ اللہ تعالی علیه په نزد عشر د مځکي پر خاوند دی مطلق که اجاره دار تاوانی وي او کنه او د صاحبانو رحمهم اللہ تعالی په نزد عشر پر اجاره دار دی مطلقًا که گټه وی که تاوان فتوی پر دي ده که چیری عقد د اجاری په اجرة کاملة سوی وو نو عشر پر مالک د مځکي دی او که عقد پر اجرة ناقصة سوی وو نو عشر پر اجاره دار دی او علماؤ فرق نه دی ذکر کړی د تاوان او د گټی د صورت لکه د اول سوال په جواب کی ئی چه حوالی ذکر سوی.

**د خلورم سوال جواب**: د باوړی په حاصلاتو کی شلم من نصف عشر لازم دی.

ویجب نصفه فی مسقی غرب ای دلوکبیر و دالیة ای دولاب لکثرة المؤنة ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۵ج۲ ) هکذافی ( الفتاوی الهندیة صـ۱۸۶ج۱ ) ولو سقی سیحا و بآلة اعتبر الغالب ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۵ج۲ ).

**د پنځم سوال جواب**: لمونځ ورکول په لوډسپیکر کی بغیر له ضرورته د لاندی اسبابو په وجه باید منعه سی:

(**اول**) مخالفت راځی د دي آیة کریمة څخه ( ولاتجهر بصلاتک و لاتخافت بها و ابتغ بین ذلک سبیلا ).

(**دوهم**) فقهاء وایی چه جهر کول زائد تر حاجت د جماعة اساءة دی او اساءة تر مکروه تنزیهی پورته او تر مکروه تحریمی کښته درجه ده.

(**دریم**) نور خلق چه په نورو مساجدو یا کورونو کی په لمونځ یا ذکر یا خوب یا نورو اشغالو مصروف وي د هغو د ضرر باعث ګرځی.

(**څلورم**) دا هم یو نوعه توهین دی چه ډیر خلق قرآن کریم اوری او سمع ئی نسی کولای یائی نه کوي.

(**پنځم**) په لوډ سپیکر کی د علماء اختلاف دی بعضی علماء لمونځ پکښی ناجائز بولی نو لمونځ باید په داسی طریقه وسی چه د اختلاف څخه خارج وی. نو لمونځ باید په ګویاکی ونسی او که په بعضی مساجدو کی ضرورت وی او خلق ډیر وی او مکبّرین انتظام نه کیږي نو بیا دې د داخلی لوډ سپیکرو څخه استفاده وکړی چه اوازیی تر صفوفو ډیر نه خارجیږي.

فصل ویجهر الامام وجوبابحسب الجماعة فان زاد علیه اساء (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۹۳ج۱) لایقرء جهرا عند المشتغلین بالاعمال ومن حرمة القران ان لایقرء فی الاسواق وفی موضع اللغو (الفتاوی الهندیة صـ۳۱۶ج۵) رجل یکتب الفقه وبجنبه رجل یقرء القرآن ولایمکنه استماع القرآن کان الاثم علی القاری ولاشئ علی الکاتب وعلی هذا لوقرء علی السطح فی اللیل جهرًا یأثم (الفتاوی الهندیة صـ۳۱۸ج۵). لکن قدمنا فی اول بحث سنن الصلاة اختلاف عباراتهم فی ان الاساءة دون الکراهة او افحش منها ووفقنا بینها بانها دون کراهة التحریم وافحش من کراهة التنزیه فراجعه (ردالمحتار صـ۲۸۱ج۱ط بیروت).

البتہ جہر میں تکلیف کرنا یا اتنا جہر کہ نماز میں تشویش کا باعث بنی یا کسی کیلئی باعث ایذاء ہونا جائز ہے (احسن الفتاوی ص۸۷ج۳) (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۱۷۹ج۲) نماز میں آلۂ مکبر الصوت کی استعمال میں بہت سے مفاسد ہیں اس لئے اس سے اجتناب کیا جائے اور سنت کی سادی طریقی پر آواز کو دور تک پہنچانی کیلئے مکبرین کا انتظام کیا جائے لیکن اگر کسی جگہ الۂ مکبر الصوت پر نماز ادا کرلی گے تو نماز فاسد واجب الاعادہ نہیں ہے اور استعمال کرنیوالوں کو کم از کم یہ لازم ہے کہ مکبرین کا پورہ انتظام رکھیں کیونکہ علماء کی ایک جماعت اس کو مفسد قرار دیتی ہیں اُن کی خلاف سے خروج کی فکر کرنا چاہئے (آلات جدیدۃ ص۳۳).

**د شپږم سوال جواب**: د قران کریم د سیپارو د ویشلو په طریقه کی د فقهاء کرامو څخه منعه نه ده ذکر سوی نه ئی کراهیة چا ذکر کړی دی. والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که په ابتدائيه محکمه کي دشاهدانو شاهدي رد اوپه مرافعه کي قبوله سي په کومه عمل کيږي؟

**سـوال**: در موضوع قتل یکنفر در مربوطات ولایت هرات جریان تحقیق در محکمه ابتدائیه مدعی حق العبدی بعد از ترتیب دعوی قصاص اقامه شهود نموده که شهادت شهود مذکور مورد قبول قضات محکمه ابتدائیه واقع نشده - که در نتیجه فیصله شرعی خود را بترک خصومت وعدم سمع در حق العبدی صادر نموده ودر حصه حق الله تعالی متهم مذکور را بمدت شش ماه حبس محکوم بجزا نموده است که فیصله مذکور باثر مرافعه طلبی مدعی به محکمه مرافعه آمده که محکمه مرافعه فیصله مذکور را باطل غرض فیصله مجدد بمحکمه ابتدائیه مربوط فرستاده که محکمه مذکور بهمان صورت دعوی قبلی فیصله وشهود فیصله قبلی که شهادت شهود مذکور باتفاوت در اداء شهادت درفیصله مجدد محکمه ابتدائیه مذکور بقبول شهادت همان شهود مذکور که قبلاً رد شده بوده حکم قصاص مدعی علیه را صادر نموده چون موضوع مذکور نهایت پیچیده ومرموز است که ایا شهادت بینه در موضوع معین دریک محکمه ردگردیده باشد ایا دوباره همان محکمه به عین شهادت که قبول نکرده بوده حکم کرده میتواند یا خیر؟ (مولوی احمد سعید رئیس محکمه مرافعه هرات)

**جواب**: شهادة شهودی که یکبار در محکمه ردشده باشد دوباره در مجلس همان قاضی دران موضوع پذیرفته نمیشود اگر چه ردکردن آن بسبب یک علتی باشد که آن علت در دفعه ثانیه رفع شده باشد باستثناء شاهدی که یا طفل باشد یا نابینا. الساقط لايعود كما ان المعدوم لايعود (المجلة المـ٥١) ومنها لوردت شهادة رجل لعلة ثم زالت العلة فاعاد الشهادة فی تلک الحادثة لاتقبل الافی الصبی والاعمی اذاردت شهادتهما بسبب القصر والعمی فبلغ الصبی وابصر الاعمی قبلت (اشباه) (سليم باز صـ۴۰) هكذافی (دررالحكام صـ۵۴ج۱) فی الجامع الصغير رجل شهد ولم يبرح عن مكانه حتی يقول أوهمت بعض شهادتی انكان عدلا تقبل شهادته فقوله لم يبرح دليل علی انه اذا برح ثم عادلا تقبل جواهر الفتاوی..... اقول ماذكره من عبارة الجامع الصغير جزم به اصحاب المتون قال فی البحر وقيد بقوله ولم يبرح ای لم يفارق مكانه لانه لوقام لم يقبل منه ذلک الخ (تنقيح الحامدية صـ۳۱۷ج۱). والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دوه ورونه تقسیم ونه کړي مړه سي
## دیوه لور دبل په کړوسیانو، لمسیانو(۵۰) کاله وروسته دعوی کولای سي؟

**سوال**: و محترمو حضراتو علماء کرامو ته په ډیر احترام سره دا لیکم دوه ورونه وه یو حبیب الله نومیدی دو هم محمد علی حبیب الله مړ سو دري لوڼی ئی پاته سوی د حبیب الله د مرگ ۵۰ کاله کیږی تقریبًا په دغه درو لوڼو کښی یوه ژوندی پاته ده دوی مړې سوي دي او اوس ئی زامن او لوڼی پاته دي حبیب الله او محمد علی چه ورونه وه د مځکی تقسیم ئی نه دی سوی او محمد علی هم مړ سوی دی دغه مشترکه مځکه اوس پاته ده ولمسی او کړوسیانو ته نو اوس د حبیب الله د لور دعوی قاضی اوریدلای سی که یا ؟او هغه دوې لوڼې چه مړی دی زامنان ئی دعوی کولای سې که یا ؟که دا حق ما ته معلوم سی زه طالب العلم عصمت الله به ډیر خوشحاله سم ؟

(المستفتی طالب عصمت الله)

**جواب**: دغه د حبیب الله دلور او د لمسیانو جانب مقابل که دا اقرار کوی چه د دوی زمونږ سره حق سته نو بیا به قاضی د دوي تقسیم ورکوي او که جانب مقابل د دوی د حق څخه منکر وو نو که دغه د حبیب الله لور او یا لمسیانو خپله دعوه دا پنځوس کاله د یو شرعی عذر په خاطر پرې ئیښی وه لکه کوچنی والی لیونتوب سفر یا دا چه جانب مقابل ئی متغلب او جابر وو نو ئی دعوی په محکمه کی اوریدل کیږي او که ئی بغیر له عذره پرې ئیښی وه نو بیا نه اوریدل کیږي او د ښځی په باره کی دا هم یو عذر دی چه د خپلو اقرباؤ د خوف له وجې محکمې ته نسی تلای البته دا عذر به دا په محکمه کی ثابتوی.

لایسقط الحق بتقادم الزمان فاذا اقر المدعی علیه و اعترف صراحة فی حضور الحاکم بان حق المدعی عنده فی الحال علی الوجه الذی یدعیه و کان قد مر الزمان علی الدعوی فلا یعتبر مرور الزمان و یحکم بموجب اقرار المدعی علیه (المجلة المـ۱۶۷۴) المعتبر فی هذا الباب ای باب مرور الزمان المانع لسماع الدعاوی انما هو مرور الزمان الواقع بلا عذر اما الزمان الذی مر لعذر

شرعی کما لو کان المدعی صغیرا او مجنونا او معتوها سواء کان له وصی اولم یکن او کان فی دیار بعیدة مدة سفر او کان خصمه من المتغلبة فلا یعتبر بل یعتبر بدء مرورالزمان من تاریخ زوال العذر واندفاعه (المجلة صـ۱۶۶۳) قیل فی المجلة ککون المدعی صغیر الخ لانه یوجد عذررابع حیث اذا منع الزوج زوجته صاحبة الحق من اقامة الدعوی منعًا اکیدا اولم تدع من اجل ذلک فهذا العذر معدود عذرا شرعیا و لها اقامة الدعوی بعدزوال المنع و لاتعتبر المدة التی مرت اثناء المنع الا انه یجب ان یثبت منع الزوج لها (علی افندی) (دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۳۰۸ج۴)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که خورخپل ملک کشر ورورته وبخښي**

**اوبیاکشر، مشراوخورمړه سي دمشر ورور ورثه دعمه په حق دعوی کولای سي کنه؟**

**سوال**: د پلار شخه و دوو ورونو او یوې خور ته باغ پاته دی دوئ په خپل منځ کي ویش کړي دی خور خپل حق و کشر ورور ته وربخښلی دی دوئ درې سره مړه سوي دی کشر ورور خپل حق او د خور حق و خپلو اولادو ته په وصیت نامه کی په میراث ورپری ایښی دی دغه باغ داسی تقسیم سوی وو چه یو ه حصه یوه او بله حصه د کشر ورور او خور دواړو ته پاته وه د کشر ورور حصه د خور دحصې شخه جلا سوی نه وه اوس د مشر ورور ورثه وایی چه مونږ د خپلي عمه په حصه کی حق غواړو او هغه عمه خپل اولادونه نه لري او خور د دواړو ورونو شخه وروسته مړه ده ؟

**جـواب:** د مـشر ورور د وارثـانو خبـره ښـه خبـره او پـر ځـای خبـره ده ولـی دغـه عَمّـه چـه خپل اولادونه نلري مـال ئـی د دوارو ورونـو وارثـانو تـه پـاتيږی ولـی د كـشر ورور او خـور حصه پـه داسی حال کی چه تقسیم سوی نه وه د دوئ پـه خپل مابین ~~کي او~~ جلاجلا سـوی نـه وه نـو دغـه خور تر خپلي حصي نه تيريدای سی نه یی بخښلای سي بلکه هغه حصه د هغه خور ملک بلل کیږي او اوس به د دوارو ورونو وارثانو ته په شرعی طريقه ورویشل کیږي.

صـرح علمـاؤنـا بـان الارث لايـصح اسـقاطه اذهـو جبـری . . . . . وفـی الاشـباه و النـظائر لو قال وارث تركـت حقی لم يبطـل حقـه ( الفتـاوی الخيريـة صـ۹۹ج۲ ) الارث جبری لا يسقط بالاسقاط ( تنـقيح الفتـاوی الحامدية صـ۲۶ج۲ ) هـكـذافی ( دررالحكام صـ۶۹ج۴ ) كـذلك لو وهب احـد حـصة فی تـركـة قبل ان يعلم ما يصيبه منهـا من المال لاحد الورثة لاتصح الهبة كمـا لاتـصح الهبة فيمـا لوقال احـد وهبت مقدارا من الاشياء التی املكهـا لابنـی الـصغير ولـم يعـين الاشياء التی و هبها ولم يعلم بها ( التنـقيح وعلی افنـدی ) ( دررالحكـام صـ۴۳۹ج۲ ) لاتـصح القسمة الابافرازالحصص و تمييزها ( المجلة المـ۱۱۲۴ ) وبمـا ان التمييـز والافـراز هـمـا بمعنـی التـفريق فعطـف الافـرازعلی التمييـز هـو عطـف تفـسيری ( دررالحكـام صـ۱۱۲ج۳ ) بقـی من شـرائط صـحة الهبة انيكون الموهـوب مقـسوما و مفرزا وقت القبض لاوقت الهبة ( اتاسی صـ۳۷۸ج۳ ) ( الفقه الاسلامی صـ۱۴ج۵ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه مضارب تاوان وكړي ، يادروغ
## ووايي، رب المال دحساب اوقسم حق ورباندي لري كنه؟

**سوال:** ما حاجی محمد نسیم مشهور په حاجی لالک و یوه نفرته ۱۲ لکه پاکستانی کالداری په طور مضاربت ورکړی وې هم دغه نوموړی شخص په هغه کالدارو د صرافی کار او بار په کندهار کی شروع کړی وو او په چمن کی ئی خپل زوی کاراوبار د پاره کښینولی وو تخمینًا د ۲ میاشتو په شاوخوا کی چه ئی کار وکړ زه دده په خرید او فروش او نورو اجراءاتو اشتباهی سوم نو ما و دغه نفرته خبر ورکړ چه کاراوبار دی پر رونق برابر نه دی بند ئی کړه او حساب راوړه هغه پسله دغه زما د ویلو څخه بیا په خپل سر تخمینًا ۴ میاشتي زما د اجازې پرته خپل کار اوبار ته ادامه ورکړه وروسته تر شپږنیمو میاشتو چه راغی او حساب ئی راوړی ویل ئی چه ما پورته سرمایه ټوله تاوان کړی ما ورته وویل چه زه دغه حساب نه منم زه بیا یو صحی حساب در څخه غوارم هغه وو چه اوس ئی حساب اختصاصی محکمې ته راوړی هغه حساب چه زما میرزا ملاحظه کړ د ۱۸۳ - ۱۴ ورکی په میزان کی شپږ لکه دیرش زره کالداری تفاوت وو او په ۱۹۲ - ۲۳ ورکی په میزان کی بیا دوه لکه پنځه ویشت زره کالداری تفاوتونو چه دغه ۲ ورکی ستاسو محترم علماء کرامو په حضور هم په مشاهده رسوم چه تاسی محترم علماء پر هغه غلطی او تفاوتو خپل علم آوری راولی د اختصاصی محکمی هیئت هم و فرمایله چه دغه موضوع دارالافتاء ته وروړئ چه مسئله درکړی نو زه حاجی محمد نسیم پر دغه خپل مضارب د یو صحی حساب حق لرم کنه؟ په دغه هکله لطفًا فتوی را کړی ؟ (حاجی محمد نسیم)

**جواب:** رب المال دا حق نه لري چه د مضارب څخه مکمّل او مفصل حساب وغواړی بلکه د مضارب قول معتبر دی په مقدار کی د گټې او تاوان یوازی رب المال دا حق لري چه مضارب ته قسم ورکړي لکن که رب المال دا ثابته کړه چه څلور میاشتي تر مخه ما دغه مضارب عزل کړی وو نو بیا د دغو څلور میاشتو گټه او تاوان پر مضارب ده نه پر رب المال خو ۳ شرطه لري:

( **اول** ) دا چه مضارب ته به خبر د عزل رسیدلی وی.

( **دوهم** ) دا چه د مضارب سره به رأس المال یعنی سرمایه په نقدی ډول موجوده وی.

( **دریم** ) دا چه رب المال به دغه عزل پس له دوو میاشتو ثابتوی یا په اقرار د مضارب یا په بله طریقه سره هر وخت چه دغه ۳ شرطه موجود سوه نو پس له عزل او پس له نـقدولو څهد سرمایی د طرفه د مضارب هر څه گټه او تاوان چه وو هغه په مضارب پوری اړه لری نه په رب المال پوری.

سئلت عن مضارب طلب منه رب المـال المحاسبة تفـصيلا هـل يجبر على ذلک فالجواب ان قارئ الهداية سئل عن شريک طلب من شريکه او من العامل فی المضاربة حساب ماباعه او ماصرفه فقال لا اعلم حسابا و انما بعت و تصرفت و بقی هذالقدرهل يلزم بعمل محاسبته اجاب القول قول الشريک و المضارب فی مقدار الربح و الخسران مع يمينه و لايلزم ان يذكر الامر مفصّلا و القول قوله فی الضياع و الرد لرب المـال ( کاملية صـ١٦٩ ) هکذا فی ( الانقروية صـ٢٦٢ج٢ ) ( سليم باز صـ٧٥٧ ) تبطل المضاربة بالفسخ و بالنهی عن التصرف او العزل اذا وجد شرط الفسخ و النهی و هو علم صاحبه بالفسخ و النهی و انيكون رأس المال ناضًا ای نقدا وقت الفسخ . . . . . فانكان متاعا لم يصح العزل . . . . . و هذا متفق عليه بين علماء المذاهب الاربعة ( الفقه الاسلامی صـ٨٧٢ج ٤ ) اذا تجاوز المضارب حد ما ذونيته و خالف الشرط كان غاصبا ( المجلة المـ١٤٢١ ) و لايخرج عن كونه غاصبا و لواجازرب المال بعده حتى لوا شترى المضارب مانهی عنه ثم باعَه و تصرف فيه ثم اجاز رب المال لم يجز ( مخ ) ( سليم باز صـ٧٥٤ ) .

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که ترتقسیم مخکي داسي مځکه هبه سي چې دخویندوحقوق هم پکښي وي خوبخښلي یې وي داهبه دمشاع ده کنه؟که هبه دمشاع سي حکم ئې څنګه دي؟

**سوال**: محترم مقام د دارالافتاء رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

محترما: څرنګه چه یو سړی احمد جان نامی راولاړ سو خپل کوچنی ورارهٔ ئی وواهه د هغه دا مقصد نه وو چه هغه عیبی شی مګر نو موړی کوچنی محمد نسیم نامی عیبی سو د هغه د ملا د هډوکی اپریشن ئی ډاکټرانو وکړی مګر اپریشن ئی هم ناکامه سو اوس هلک ته اعصابی تکلیف پیدا سوي دی وروسته د هغه اکا ئی راولاړ سو مځکه ئی وروبخښله خو مده چه تیره سوه هلک ته ئی وویل چه ما خو مځکه و تاته دروبخښله زه شی نه لرم و ما ته واده را وکړه وروسته دده د وقفې مځکي څخه یو څه مځکه او خپله مځکه ئی خرڅه کړه و ده ته ئی واده وکړ هغو خلګو د دواړو څخه قباله واخیسته بیا وروسته تر واده د دغه هلک پلار ته وویل چه زه شی نلرم ما ته باغ را رانیسه د هلک پلار محمد حسین نامی خپل ورور احمد جان ته باغ رانیوی اوس نو موړی احمد جان ورته وایي چه په دغه مځکه کي چه تاته می درکړی ده زما د خور حق هم پکښی دی دا مځکه مشاع ده دا مځکه بیرته را ایله کړه د خوندو د واده ۴۰ کاله کیږی چه واده سویدی د هغه د پلار د مرګ څخه ۴۲ کاله کیږي چه دوی حقداره سویدي د نوموړی احمد جان خوندی وایي چه زمونږ څخه چه هر وخت پوښتنه کړیده مونږ ورته ویلی دي چه مونږ حق نه غواړو په وخت کی د تقسیم زمونږ څخه چه ۲۸ کاله کیږي دوی مونږ ته نه دی راغلی په دغه وخت مونږ څخه پوښتنه نه ده کړی چه حق غواړی که یا ـ دا ورونه ئی وایي چه مونږ په دغه سبب سره پوښتنه نه ده کړی چه دوی ویلی وه چه حق نه غواړو نو مونږ هم د دوی بې حضوره تقسیم وکړ یوه خور ئی چه حقداره سوی وه ۳۵ کاله ژوندی وه اوس ئی ۷ کاله د وفات کیږی دغه وفات سوی خور ئی په خپل ژوند کی ویلی وه چه زما حق زما د ټولو ورونو دی زه حق نه غواړم زامن ئی هم وایي چه مونږ حق نه غواړو هغه بله خور ئی هم وایي چه زه حق نه غواړم خط ئی هم ورکړی دی چه زما حق زما د ورونو دی په دغه ۴۲ کاله کی هیڅ څوک نه وایي چه زه حق لرم اوس ستاسو د محترم مقام څخه دا هیله لرم چه معلومات و ما ته راکړئ چه یوې خورئې وصیت کړی دی چه زه حق نه

غواړم او بلې خور ئې هم ویلی دي چه زه حق نه غواړم ایا دا مشاع ده که یا؟ ـ ایا دغه هلک چه خپل اکا په لاس وهل سویدي او اکا ئی هم خپل جایداد په خپل رضائیت وربخښلی دي آیا دغه مځکه که مشاع سی یا نسی مشاع ځینی ګرځولی سی که یا؟ (المستفتی حاجی محمد حسین)

**جواب:** محترم مستفتی صاحب دغه هبه هبه د مشاع ده ولی تاسو او واهب او موهوب له ټولـه دا اقرار کوئ چه په دغه ځای کی د خویندو حق سته او تقسیم سوی نه دی نو نه په دې ځای کی مرورالزمان راتلای سی ولی د طرفینو اقرار موجود دي او نه د خویندو حق ساقطیږی په دې خبره چه مونږ حق نه غواړو زمونږ حق د ورونو دي نو ستاسی د مسئلې علاج دا دي چه تاسو به د هغه یوې ژوندۍ خور او د هغې بلې وفات سوې خور د ټولو وارثانو په موجودګی کي دغه مځکه په شرعی ډول سره تقسیموئ د هغه وارثانو په مابین کی چه د احمد جان د پلار د وفات په وخت کی موجود وه او د میراث حقداره وه او بیا به د وفات سوی خور حصه د هغې د وارثانو په مابین کی تقسیموئ او د هر یوه حصې به معلوموئ پس له غه چه حصې معلومې سوی هر وارث او هر حق داره که په خپله رضاء او رغبت سره خپله خصه یوه معلوم شخص ته ور وبخښله نو هم صحیح ده او که یی نه ور بخښله هم یی خپله خوښه ده حاصل دا چه شرعًا نوی تقسیم ضروری دي که څه هم ډیره مده تیره سویده او د مخه تر تقسیم هبه د مشاع ده.

لایسقط الحق بتقادم الزمان فاذا اقر المدعی علیه و اعترف صراحة فی حضور الحاکم بان حق المدعی عنده فی الحال علی الوجه الذی یدعیه و کان قدمر الزمان علی الدعوی فلا یعتبر مرورالزمان و یحکم بموجب اقرار المدعی علیه (المجلة المـ۱۶۷۴) هکذافی (ردالمحتار صـ۳۸۱ج ۴) الارث جبری لا یسقط بالاسقاط و قد افتی به العلامة الرملی کما هو محرر فی فتاواه (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۶ج ۲) هکذافی (الفقه الاسلامی صـ۳۴۱ج ۵) لکن ان قسم الواهب الجزء الموهوب المشاع بنفسه او بواسطة نائبه و سلمه الی الموهوب له صح العقد لزوال المانع و کذا لو امر الموهوب له ان یقسم مع شریکه (ردمحتار) اما لو سلمه شائعا فلا یملکه الموهوب له و لاینفذ تصرفه فیه (سلیم باز صـ۴۷۳) و الله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## له مصنوعي غاښ سره غسل څنګه دي؟

**سوال**: د مرکزي دارالافتاء علماء کرامو حضور ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.
وبعد: په موجوده وخت کی د مصنوعی غاښو یو طریقه داسی راوتلی ده چه د کوم چا غاښ نه وی نو ډاکټر د غاښ پر اندازه ورو ورپری کړی او لاندي یا لوړ هډوکی برمه کړی بیا نوی مصنوعی غاښ په هغه ځای د پیچ یا دوا په واسطه پیټ کړی نو په دغه مذکور صورت کی بیا غسل صحت لري کیا ؟ (المستفتی الحاج مولوی عبدالودود صاحب)

**جواب**: د غسی غاښ ایښوول لکه په استفتاء کی چه ذکر سوی دی مانع د غسل نګرځی.

مصنوعی دانت دوطرح کی ہوتی ہیں ایک وہ جو مستقل طور پر لگادی جائے اور پھران کو آسانی سے نکالا نہ جاسکی دوسری وہ جوبنائی ہے اس طرح جاتی ہیں کہ حسب ضرورت انکا استعمال کیا جائے اور حسب ضرورت نکال لیا جائی پہلی صورت میں یہ مصنوعی دانت اصل دانت کا درجہ رکھتی ہیں اسی لئے ان کا حکم اصل دانتوں ہے کا ہوگا وضو میں ان دانتوں تک پانی پہنچانا مسنون ہوگا اور غسل میں فرض دانت نکالنے اورتہ تک پانی پہنچانی کی ضرورت نہیں اسکا واضح قرینہ یہ ہے کہ بعض فقہاء نے اس طرح کی دانت لگانی یا دانتوں کی سونے چاندی کی تاروں سے کسی کی اجازت دی ہے اب ظاہر ہے اس اجازت کا مطلب یہی ہوگا کہ ان کی اندرونی حصول میں پانی پہنچانا ضروری نہیں ہے ورنہ یا اجازت بڑی پریشان کن بھی ہوگی اور بی معنی بھی الخ (جدید فقهی سائل صـ۲۳ج۱) هکذا فی (احسن الفتاوی صـ۳۲ج۲) (فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۱۴۵ج۱) (فتاوی رحیمیه صـ۹ج۳) (امداد الفتاوی صـ۱۸ج۱).

والتراب والطین فی الظفر لایمنع والصرام والصباغ ما فی ظفر هما یمنع تمام الاغتسال و قیل کل ذلک یجزیهم للحرج و الضرورة و مواضع الضرورة مستثناة عن قواعد الشرع کذا فی الظهیریة (الفتاوی الهندیة صـ۱۳ج۱).

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دانجلۍ دبلوغ سن به څوکاله شمیرل کیږي؟

**سوال**: د کندهار د دارالافتاء ریاست ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.
که چیري یو سړی خپل نابالغه زوی ته یوه نابالغه انجلۍ وغواړي او عقد وسی پر یو اندازه مهر باندې او د دغه هلک پلار هغه مهر ورکړی بیا دا هلک ځوان سی او طلب د واده وکړي نو ددې هلک پلار د انجلۍ پلار ته ووایي چې واده راکړه او د انجلۍ پلار وایي چه کوچنۍ ده نو د دواړو اختلاف دی د هلک پلار وایي غټه ده او د انجلۍ پلار وایي کوچنۍ ده. آیا شرعًا د انجلۍ د څو کالو په عمر کې غټه شمارل کیږي او پلار ئې په واده ورکولو مجبور کیږي؟

**جواب**: د ډیرو فقهاؤ په نزد سن اعتبار نه لري په دغه مسئله کښې بلکه طاقت ته کتل کیږي که ئې طاقت د واده درلودی نو واده دي کړي که څه هم د نه ۹ کاله څخه کمه وي او که یې طاقت نه درلودی نو بیا دي نه و دوی که څه هم تر ۹ کاله بالاوي او که صورت د اختلاف سو لکه مستفتی چه پوښتنه کړې ده نو که هغه انجلۍ د کوره څخه د باندې وتله نو قاضی دي خپله ووینی او فیصله دي وکړي چه طاقت لري کنه او که انجلۍ نه راوتله د کوره نو بیا دې قاضی دا سې ښځې ورواستوي چه دده په هغه ښځو باور وي هغه ښځې به قاضی ته حال ووایی قاضي به د هغه مطابق فیصله وکړي. واکثر المشایخ علی انه لاعبرة للسن فی هذا الباب وانما العبرة للطاقة انکانت ضخمة سمینة تطیق الرجال ولایخاف علیها المرض من ذلک کان للزوج أن یدخل بها وان لم تبلغ سنین وانکانت نحیفة مهزولة لا تطیق الجماع ویخاف علیها المرض لایحل للزوج ان یدخل بها وان کبر سنها وهو الصحیح واذا نقد الزوج المهر وطلب من القاضی أن یأمر أبا المرأة بتسلیم المرأة فقال ابوها انها صغیرة لاتصلح للرجال ولاتطیق الجماع وقال الزوج بل هی تصلح وتطیق ینظر انکانت ممن تخرج أخرجها وأحضرها وینظر الیها فان صلحت للرجال امر بدفعها الی الزوج وان لم تصلح لم یأمر وانکانت ممن لاتخرج امر من یثق بهن من النساء ان ینظرن الیها الخ (الفتاوی الهندیة ص۲۸۷ج۱) فان زعم الزوج انها تحتمل الرجال و انکر الاب فالقاضی یریها النساء ولایعتبر السن (تنقیح الفتاوی الحامدیة ص۲۸ج۱)

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دخورپه غیاب کي تقسیم وسي حصه ئې معلومه سي ، خودې ته ورمعلومه اوتسلیم نسي، خورابراء خط ورکړي صحت لري کنه؟

**سوال**: د مرکزی دارالافتاء رئیس صاحب حضور ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.
عرض دادی چه زما خورجان نامی پلار وفات سو د هغه څلور ښځې نه ۹ لونې شپږ ۶ زامن پاته سوه مور مي هم مړه سوه پسله څه وخته ورونو پخپله خوښه زما په غیاب کی تقسیم سره کړی وو زما د مور او زمونږ د دوو خوندو حصه یوه ورور د خپلې حصې سره ځان ته گرزولی ده بیا دغه ورور تر دغه مخکی چه زمونږ حصه را معلومه کړی یا ئی را تسلیم کړی زما څخه ابراء تر لاسه کړی ده اوس زما عرض دا دی چه تر مخه تر تسلیم وماته چه زما حصه نه ده را تسلیم سوي زما ابراء یا هبه قابل د اعتبار ده کنه ده ؟ ﴿خورجان بنت حاجی عبدالله﴾

**جواب**: حق د میراث یو جبری حق دی یعنی که وارث وغواړی چه خپل حق ساقط کړی او وایی چه زه خپل حق نه غواړم نو حق یې نه ساقطیږی نو دغه ابراء یا هبة چه د خپلې حصې د معلومولو تر مخه سوی ده نه صحیح کیږي او اوس خپل حق غوښتلای سی او حق یې ثابت دی.

صرح علماؤنا بان الارث لایصح اسقاطه اذهو جبری لاسیمافی الاعیان فقولها لااستحق ارثا معارضٌ بقوله تعالیٰ ولابویه لکل واحد منهما السدس فبطل به قولها لااستحق ارثا وفی الاشباه والنظائر لو قال وارث ترکت حقی لم یبطل حقه ﴿الفتاوی الخیریة صـ۹۹ج ۲﴾ الارث جبری لایسقط بالاسقاط ﴿تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۶ج ۲﴾ هکذافی ﴿درر الحکام صـ۶۹ج ۴﴾ وعلیه یکون کل ابراء اسقاطا ولیس کل اسقاط ابراء ﴿الفقه الاسلامی صـ۳۲۶ج ۵﴾ کذلک لو وهب احد حصته فی ترکة قبل ان یعلم مایصیبه منها من المال لاحد الورثة لاتصح الهبة کما لاتصح الهبة فیما لو قال احد وهبت مقدارا من الاشیاء التی املکها لابنی الصغیر ولم یعین الاشیاء التی وهبها ولم یعلم بها (التنقیح وعلی الفندی) ﴿درر الحکام صـ۴۳۹ج ۲﴾ والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که سرای واخیستل سي ، په مسجدګړ سي بیرته ئې مالک غوښتلای سي کنه؟

**سوال**: د کندهار د دارالافتاء رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

د سلام مسنون څخه وروسته د علی احمد نامی د اقرار او د شواهدو په حضور کښنی د والی علومی صاحب له طرفه خریداری سوی سرای او بیا په زړه جامع ګڼ سوی دی په ۱۸/۵ ۱۳۷۰ هجری شمسی کښنی اوس بیا نوموړی علی احمد غواړی چه سرای د جامع څخه جلا کړی د عارض د اطمنان د پاره مدلل شریعی حیثیت ولیکی مهربانی به مو وي . والسلام او وروسته زمونږ سره ثبتنام سوی هم دی جلد نمبر ۲ صفحه ۱۴ باندی ؟

﴿مولوی صبغت الله رئیس حج و اوقاف کندهار﴾

**جواب**: یو څوک چه په خپله رضاء او رغبت سره خپل شخصی سرای یا مځکه یو مسجد ته ورکړی که په مقابل کی د پیسو وی یا نه وی او هغه ځای په مسجد کی خلط سی او خلق لمونځ پکښنی شروع کړی نو دا ځای د أبد دپاره مسجد ګرځی هیڅ وخت حکم د مسجدیت نه ځنی زائلیږي او نه د شخصی کور استفاده ځنی کیدلای سی.

اما علی قول ابی یوسف رحمة الله تعالی علیه فلان المسجد و ان خرب و استغنی عنه اهله لایعود الی ملک البانی ..... و الفتوی علی قول ابی یوسف رحمة الله تعالی علیه انه لایعود الی ملک مالک ابدا ﴿الفتاوی الهندیة صـ۴۵۸ج۲﴾ و اتفق العلماء فی وقف المساجد انها من باب الاسقاط و العتق لاملک لاحد فیها و ان المساجد لله تعالی ﴿الفقه الاسلامی صـ۱۵۶ج۸﴾ قال فی شرح التنویر و لو خرب ما حوله و استغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام و الثانی ابدًا الی قیام الساعة و به یفتی ﴿احسن الفتاوی صـ۴۳۶ج۶﴾ قلت و فی الذخیرة و بالصلاة بجماعة یقع التسلیم بلا خلاف حتی انه اذا بنی مسجدًا و أذن للناس بالصلاة فیه جماعة فانه یصیر مسجدا ﴿ردالمحتار صـ۳۶۹ج۳ بیروت﴾ هکذافی ﴿امدادالفتاوی صـ۷۲۵ج۲﴾ والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که صلح وسي ديوه حق پربل کښېښودل سي، اوبيا ثابته سي چې حق ئې نسته صلح باطليږي؟ که باطليږي کوم شرائط لري؟

**سوال**: د مرکزی دارالافتاء رئيس صاحب ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.
عرض دا دی: چه پرما حاجی احمد باندي حاجی نعمت الله الزام لګولی دی چه ته زمونږ دواړو شراکت په حساب کی باقی ئی بيا مونږ صلح کونکو ته وکالت تحريری شکل ورکړی صلح کونکو پر ما حاجی احمد څه مبلغ کښېښوی او ما ومنی اوس که دا ثابته سی چه د حاجی نعمت الله پر ما پيسی نسته ايا هغه صلح چه سوي وه هغه بيرته ماتيږي که يا ؟ او ما حاجی احمد يوار دا اقرار کړي دی چه د حسابو کتابو نه د صلح څخه وروسته اعتبار نه لري اوس زه بيرته مطالبه د حساب کولای سم ؟

**د اول سوال جواب**: که چيری شرعًا دا ثابته سی چه د حاجی نعمت الله پر تا پيسی نسته (يعنی حاجی نعمت الله اقرار وکړی چه ما ناحقه دعوی کړی وه.
(ددوهم سوال جواب وګوره ) نو هغه صلحه باطله ده او حاجی نعمت الله حق نلري چه هغه مبلغ د صلحی ستاسو څه واخلی

وفی آخر صلح الاشباه ايضًا ادعی مالا فأنکر فصالحه ثم ظهر بعده ان لاشئ عليه بطل الصلح کما فی العمادية من العاشر ...... و اذا جری الصلح بين المتداعيين و کتب الصک و فيه ابراء کل واحد منهما صاحبه عن الدعوی ثم ظهر ان الصلح وقع باطلا بفتوی الائمة فارا دالمدعی ان يدعی ما ادع لان صح دعواه للابراء السابق و المختار ان تسمع لان هذا ابراء فی ضمن

صلح فاسد فلا يعمل (مجمع الفتاوى) (تنـقيح الفتاوى الحامدية صـ٦٥ج٢) لو ادعى انسان على انسان مالا او حقا في شئ ثم صالحه على مال فتبين انه لم يكن عليه ذلك المال و ذلك الحق لم يكن ثابتا كان للمدعى عليه حق استرداد ذلک المال هکذافی خزانة الفتاوى (الفتاوى الهندية صـ٢٨٤ج ٤).

**د دوهم سوال جواب**: اوس حق د مطالبی د حساب نه لري ځکه په صحیح صلحه سره رفع د نزاع راځي او په حساب سره بیرته نزاع مابین ته کیږي او بل دا چه که یو مدعی د مدعی علیه سره د دي وجې صلحه وکړی چه د مدعی سره شاهدان نه وی موجود او پس د صلحی شاهدان موجود سی یا دا چه مدعی علیه اقرار وکړی په حق سره د مدعی نو هم صلحه نه ماتیږي او د دوئ دعوی غیر مسموع ده نو حساب او کتاب چه حجة ضعیفة دی نسبة و اقرار او شاهدانو ته هغه په طریق اولی غیر معتبر دی لکن که مدعی پس له صلحې اقرار وکړی چه ما ناحقه دعوی کړی وه نو صلحه ماتیږي که دغه اقرار په شاهدانو مثلاً ثابت سو (لکه چه تر مخه په لیکلی سوی عربی عبارتونو کی چه لفظ ده ثم ظهران الصلح الخ فتبین انه الخ راغلی دی هغه هم دغه محمل لري چه مدعی خپله اقرار وکړی مثلاً نه دا چه اوس حق د بیرته دعوی کولو او حساب کولو موجود دی).

الصلح هو عقد يرفع النزاع بالتراضي (المجلة المـ١٥٣١) المسألة الاولى اذا ادعى احد على آخر بان الدار التي تحت يده هو داره و لعدم اثبات دعواه تصالح مع المدعى عليه على الف درهم ثم وجد شهودا يشهدون بأن الدار ملكه فلا تسمع دعواه ولاشهوده المسألة الثانية اذا ادعى احد على آخر بحق وحصل الصلح بينهما عن انكار ثم اقر المدعى عليه بالمدعى به فلا يخل ذلک الصلح الواقع (درر الحكام صـ٥٧ج ٤) اذا أقر المدعي بعد الصلح بأن لم يكن له قبل المدعى عليه اى حق يبطل الصلح (ردالمحتار و التكملة) (درر الحكام صـ٥٨ج ٤) هکذافی (شرح المجلة للاتاسی صـ٥٧٠ج ٤)

والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## صرف ذوليدي حجت ده كنه؟ د ذوليدي احداث يابطلان پرمدعي لازم ده كنه؟

**سوال**: يو شخص په بل شخص دعوه کړيده چه تا زما پدری موروثی ملک را څخه غصب کړيدی هغه مدعی علیه ثبوت د ملکيت په شاهدانو نه وی کړی بلکه وائی چه زه ذواليد يم ماته د پلار او نيکه څخه را پاته دي اوس عرض دا دی چه ايا زما د غصب په دعوه وده ته ذواليدی حقيقی ثابتيږي کيا ؟

﴿المستفتی مولوی عبدالغفار﴾

**جواب**: يوازی د غصب کولو په دعوی سره د مدعی ذواليدی حقيقی مدعی عليه ته نه ثابتيږي بلکه که مدعی د مدعی عليه غصب ثابت کړی او احداث ديد د مدعی عليه ثابت کړی نو ذواليدی حقيقی د مدعی عليه څخه منتفی کيږی او مدعی عليه خارج بلل کيږي.

ذواليد هو الواضع اليد على عين بالفعل او الذی يثبت تصرفه تصرف الملاک ﴿المجلة المـ۱۶۷۹﴾ ولو غصب ارضًا وزرعها فادعى رجل انهاله و غصبها منه فلو برهن على غصبه و احداث يده يكون هو ذايد والزارع خارجا ولو لم يثبت احداث يده فالزارع ذويد و المدعى هو الخارج ولو كان بيده عقار فاحدث الاخر عليه يده لا يصير به ذايد فلو ادعى عليه انک احدثت اليدوكان بيدى فانكر يحلف و به علم ان اليد الظاهرة لا اعتبارلها ﴿سليم بـاز صـ۱۰۰۰﴾ قال فی جامع الفصولين لابد من معرفة القاضی كون العقار فی يدالمدعى عليه فيذكر المدعى انه بيده اليوم بغير حق آه ﴿كاملية صـ۱۱۵﴾ غصب أرضا و زرعها فادعى رجل انها لی و غصبها منی فلو برهن على غصبه واحداث يده يكون هو ذايد والزارع خارجا ولو لم يثبت احداث يده فالزارع ذواليد و المدعى هو الخارج آه ﴿جامع الفصولين صـ۸۵ج۱﴾

والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دلاري په خاطر دچادکان له ښاروالي سره استملاک سي، اوقیمت ئې ترلاسه نکړي، لارجوړه نسي، موقت دکانونه ورباندي جوړسي نو ښاروالي مالک ته قیمت ورکړي ښاروالي کرایه واخلي که مالک ته کرایه ورکول سي؟

**سوال**: محترما : څرنګه چه د ټیکچن هندو درې بابه دکانونه په سړک کښې استملاک سوي دی اود دکانو قیمت ئی په هغه وخت کښی نه دی ترلاسه کړی د موقت وخت لپاره ئی پر همدغه ځای چه سړک په شل متری کښی واقع دی دکانونه جوړ کړی دی څرنګه چه سړک د ښاروالی ملکیت دی اوس مونږ ته مطابق د شریعت معلومات راکړئ چه د نوموړی ځای کرایه هندو ته ورکول سی یا هندو د هغه وخت د قیمت مستحق او کرایه ښاروالی ته ورکول سی د پورته موضوع په ارتباط طالب د هدایت یو ؟ (حقبین صاحب)

**جواب**: دلاری د ضرورة په اساس حکومت کولای سی چه یو څوک د خپل ملک و خرڅولو ته مجبور کړی لکن د ټیک چن هندو د دکانو په هکله باید ووایو چه د یوې خوا ده خپل قیمت نه دی ترلاسه کړی او د بلې خوا دده دکانونه بی له ضرورته تخریب سوی دی په پخوانی حکومت کی ولی که ضرورت موجود وای نو په لار به ګډ سوی وای او بیرته به نوای دکانونه سوی . نو د ټیکچن ملکیت پر خپل حال پاته دي ملکیت یی ښاروالی ته نه دی انتقال سوی کرایه به داغه ټیکچن ته ورکوي نه و ښاروالی ته . باید ووایو چه حکومت هغه وخت یو څوک د خپل ملک و خرڅولو ته مجبور کولای سی چه دغه شرطونه موجود وي:

(اول) د لاری ضرورت به فعلاً موجود وي.

(دوهم) د استملاک د وخت مناسب او معادل قیمت به بائع ته ورکوی.

(دریيم) اول به قیمت بائع ته تسلیموی بیا به هغه ځای حکومت په لار ګډوي.

لدى الحاجة يؤخذ ملك كائن من كان بالقيمة بامر السلطان ويلحق بالطريق لكن لايؤخذ من يده مالم يؤدله الثمن انظر الى مادتى (۲۵۱) ـ (۲۶۲) (المجلة المـ۱۲۱۶) و (شرحها سليم باز صـ۴۳) و (الاتاسى صـ۱۵۸ج ۴) و (الفتاوى الخانية بهامش الهندية صـ۲۷۹ج ۱) و (الفقه الاسلامى صـ۵۰۹ج ۵ صـ۷۶ج ۴) و

كذلك يحق للدولة التدخل فى الملكيات الخاصة المشروعة لتحقيق العدل و المصلحة العامة (الفقه الاسلامی ص۵۱۸ج۵) ليس كل من ادعى الضروره يسلم له ادعاءه او يباح له فعل الحرام و انما لابد من توافر شروط او ضوابط للضرورة و هی مايأتی -۱ -ان تكون الضرورة قائمة لامنتظرة فی المستقبل الخ (الفقه الاسلامی ص۵۱۶ج۳)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که درې واره داسي ووايي: (پرماباندي خپله ماينه خور ومورده) (دابښځه والله که زماپه کوربيارانوزي) او ښځه په دغه کورکي وي اوبياداهم ووايي چې ثلاثه اوكلما هم يادکړي اونيت ئې هم دطلاق وي نوځه حکم دي؟**

**سوال:** مونږ يو انډيوال داسی ويلی دي چه پرما باندي خپله ماينه خور و مور ده او دا خبره ئی درې کرته تکرار کړيده او بل ګښت يو انډيوال تری پوښتنه کړي ده چه تا ځنګه دا خبره کړيده ده بيا داسی ورته ويلي دي چه ما کلما سره او ثلاثه سره دا خبره کړي ده مګر طلاق ئی نه دی ياد کړی او د خور و مور کلمه کښی د دې نفر د طلاق ثلاثه نيت ؤ مونږ په احترام هيله کوو چه مونږ ته مسئله راکړئ چه دده د نکاح تړلو لار را ته وښئی چه دده نکاح ځنګه تړل کيږي دا نفر حلاله يا دا چه ځوک ورسره شپه تيره کړی نه مني که بله لاره وي مونږ ته ددې کاغذ پرشا معلومات او مسئله راکړی مونږ ډير سودائی يو چه څه وکړو او دايي هم ويلی دي چه دا ښځه زما په کور والله که رانوزی حالانکه ښځه هم په دغه کور کی ده او په مذکور لفظ کی ئی هم نيت د ثلاثه طلاق ؤ ؟

(ملاّ عبدالرحيم اخند نقشبندی)

**جواب:** پر دغه مستفتی صاحب باندي هيڅ شی نه لازميږي نه ئی ښځه طلاقيږي نه باندی حراميږي هغه اول لفظ چه ده ويلی دي چه پر ما خپله ماينه خور او مور ده په هغه کی خويی لفظ د تشبيه نه دی ذکر کړی نو هغه لفظ لغو دی که څه هم نيت يی د طلاق وو او دوهم لفظ

یی دا ویلی دي چه دا ښځه زما په کور والله که راننوزی او ښځه حالاً په کور کی ده په دی جمله کی داسی لفظ نسته چه دلالة وکړی پر طلاق او بل دا چه مراد ځنی استقبال دی او طلاق په لفظ د استقبال نه واقع کیږي.

بخلاف مالو حذف الکاف منها فانه یلغو کما مر ویأتی (الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۴۴۹ج۱) هکذافی (الدرالمختار و ردالمحتار صـ۶۲۶ج۲)

اگر کسی زوجۂ خود را خواهر یا مادر بگوید بزوجہ اش طلاق واقع نمیشود و نیز ظهار نمیشود البتہ چنان گفتن یعنی زوجۂ خود را خواهر گفتن مکروہ است (فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۲۱۲ج۱۰صـ۲۰۴ج۱۰) و (امدادالمفتین صـ۲۸۷) و (عزیز الفتاوی صـ۴۹۳) و (امدادالفتاوی صـ۴۸۰ج۲) و (فتاوی محمودیة صـ۱۲۲ج۸).

زید نے اپنی منکوحہ کو مارپیٹ کر گھر سے نکال دیا اور یہ الفاظ کہی مجھ کو خدا کی قسم اس عورت کو میں کبھی نہیں رکھوں گا چنانچہ عرصہ چار سال کا ہوگا کہ نان ونفقہ نہیں دیا تو زید کی ایسی صاف الفاظ ہوتی ہوئی بھی کیا اس کی نیت بابت طلاق دریافت کی جاوی گی یا کیا، الجواب : اس صورت میں زید کی زوجہ پر طلاق واقع نہیں ہوئی اور نیت کی دریافت کرنی کی کبھی ضرورت نہیں ہے کیونکہ صیغہ استقبال میں اگر صریح الفاظ طلاق کی ساتھ بھی تکلم کرے تو اس سے طلاق واقع نہیں ہوتی کذافی العالمگیریۃ (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۷۴ج۹) اس میں کوئی لفظ طلاق کی معنی کا نہیں دوسری صیغہ مستقبل کا ہی اس سے طلاق واقع نہیں ہوتی (ظفیر حاشیہ فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۷۶ج۹).

بخلاف قوله (کنم) لانه استقبال فلم یکن تحقیقا بالتشکیک و فی المحیط لو قال بالعربیة اطلق لایکون طلاقا الا اذا غلب استعماله للحال فیکون طلاقا (عالمگیری مصری صـ۲۱۰ج۱) (ظفیر فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۴۷ج۹)

والله تعالی علم اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دوصيت ، له جنازي پس دعاء، په روژه کي

## پيچکارئ، دپيرصاحب په نوم نذرپه دې اړه څلور مهيمي پوښتني اوجوابونه

**سوال**: و محتـرم رئـيس صـاحب د شـورى علمـاء او دارالافتـاء مركـزى تـه الـسلام علـيكم ورحمةالله وبركاتهٗ!

محترمو مونږ علمـاء د خاک افغـان د ولـسوالى د يو څو مـسائلو استفتاء کوو که مطابق د فقهي حنفي جواب راکړئ لويه مهرباني به مو وي.

(**اول**) که يو مرده وصيت کړى وي چه زما د مال له ثلثه څخه دونه مقدار اسقاط او خيرات وکړي وصى او قريبان هغه مقدار خيرات وکړي ثلث د مال ئى نورلا هم پاته وي او يا مرده وصيت نه وى کړي يا مسکيـن وي قريبان ئى له خپله طرفه يعني له خپله مال څخه په اسقاط او خيرات پسى وکړي دا قسم خيرات او اسقاط جائز دى کنه ؟

(**دوهم**) پس لـه لمانځـه د جنازي دعـا پـه هيئت اجتمـاعى لـه مخه ترکسر د صفوفو او دغـه رنگه پس له فرضى لمانځه او سنت څخه دعا کول جائز ده کنه ؟

(**دريم**) که چيرى يو څوک د پيرصاحب يا حضرت صـاحب يا اوليـاؤ د رضـا لپاره يو حيوان نذر بيا ئى حلال کړى په بسم الله سره دغه حيوان حلال دى اوکه مردار؟ او دغـه نـاذر کافر دى که مسلمان دى ؟

(**څلورم**) پـه روژه د رمـضان کـړى چه نيت ئې د روژې کـړى وي پيچکـارئ او يـا سيروم پـه غوښه يا په رگ کى لگول جائز دى که نه ؟ ﴿المستفتيون علماء زابل﴾

**د اول سوال جواب**: دلته بايد څو خبري ښه واضحي سي.

﴿**اوله خبره داده**﴾ خيرات کول په مړى پسى جائز دى بلکه موجب د ثواب دى هغـه د مړى په حق کي هم او د خيرات کوونکى په حق کى هم او دغه خيرات کول ډيره زياته نفعه رسوى و مړى ته چه دا خبره هم پـه احاديثو ثابتـه ده هم د اهـل الـسنة والجماعـة د علماؤ پـه اقوالو او کتابونو سره چه يو نمونه ئى دلته ذکر کوو.

روی الدارقطنی قال رجل یا رسول الله کیف ابرّ ابوی بعدموتهما فقال ان من البر بعدالموت ان تصلی لهما مع صلاتک و ان تصوم لهما مع صیامک وان تصدق عنهما مع صدقتک ..... عن انس ﷺ انه سأل رسول ﷺ فقال یا رسول الله اذا نتصدق عن موتانا و نحج عنهم و ندعولهم فهل یصل ذلک الیهم قال نعم و یفرحون به کما یفرح احدکم بالطبق اذا أهدی الیه (عمدة القاری شرح صحیح البخاری صـ۱۱۹ج ۳) الافضل لمن یتصدق نفلا ان ینوی لجمیع المؤمنین و المؤمنات لانها تصل الیهم ولاینقص من اجره شیٔ آه هو مذهب اهل السنة و الجماعة (ردالمحتار صـ۶۶۶ج۱)

بدانکه دعا وصدقۂ زندگان برای مردگان نافع است .

قال التفتازانی فی شرح العقائد النسفیة و فی دعاء الاحیاء للاموات و صدقتهم ای صدقة الاحیاء عنهم ای عن الاموات نفع لهم ای للاموات خلافا للمعتزلة ..... شیخ عبدالحق محدّث دهلوی قدس سره درجامع البرکات منتخب شرح مشکٰوۃ نوشته و برحصول ثواب ووصول نفع اموات رابعبادات مالیه اتفاق است ودربدنیه مثل نمازگزاردن و قرآن خواندن اختلاف واصح وصول است کذا قال الشیخ ابن الهمام رحمة الله علیه ..... بلکه منقول از امام احمد رحمة الله تعالی علیه آنست که میرسد بمیت هرچیزاز صدقه و صلوة وحج الخ ..... وامام ربانی در مکتوب صدوچهارم جلد اول میفرماید مصیبت برفتن نیست برحال رونده است تا با اوچه معامله کنند بدعا واستغفار وتصدق امداد باید نمود ..... عجب تماشا است که بعضی مردمان همچو معتزله از ثواب رسانی موتٰی انکار میکنند مع هذا از دعوی سنیت دست نمی بردارند وگاهی برابطان ایصال ثواب بعبادات بدنیه حکم مینمایند وباوجوداین اجتهاد در ابطال دعوٰی تقلید وحفیت نمی گزارند (فصل الخطاب بین الخطاء والصواب صـ۵۷) .

**(دوهمه خبره داده)** د اسقاط گرځولو په هکله متأخرینو علماؤ فتوی دا ده چه دغه اسقاط گرځول جائز بلکه خدای تعالی ﷻ ته ډیر امید دی چه د میت په حق کی ډیر انفع

وگرځی البته څه شرائط لري چه د هغو لحاظ باید وسی چه هغه شرائط په نورو کتابونو کی مفصل ذکر سوی دی او دلائل د جوازیی هم په نورو کتابو کی په تفصیل راغلی دی خو بعضی یی دا دي.

فی الدرالمنتقی انهم اذا ارادوا الاخراج عنه یحسب عمره بحسب غلبة الظن و یخرج منه مدة الصباوهی اثنا عشر فی الغلام و تسعة فی الجاریة و یخرج عنه بقدرها انکان عندهم ما یکفی والاتدفع مرارا آه.

ودر نورالایضاح میگوید و ان لم یف ما اوصی به عما علیه یدفع ذلک للفقیر فیسقط عن المیت بقدره ثم یهبه الفقیر للولي و یقبضه ثم یدفعه للفقیر فیسقط بقدره ثم یهبه الفقیر للولي و یقبضه ثم یدفعه الولی للفقیر و هکذا ..... ودر مراقی الفلاح ص-۱۸۵ ضمن قول ماتن ..... میگوید ..... فحیلته لابراء ذمة المیت عن جمیع ما علیه ان یدفع ذلک المقدار الیسیر بعد تقریره بشئ من صیام او صلوات او نحوهما و یعطیه للفقیر بقصد اسقاط مایرید من المیت بقدره ثم بعد قبضه یهبه الفقیر للولي او للاجنبی و یقبضه لتتم الهبة و تملک ثم یدفعه الموهوب له للفقیر بجهة الاسقاط متبرعا به عن المیت آه وهمچنان در (جامع الرموز صـ۱۶۱ج۱) و فتاوی زاهدی نقلا عن التحقیق حیلهٔ مذکوره ذکر نموده و قرارداده (جرءة الائمة صـ۴۸).

وفی (البصائر لمنکری التوسل باهل المقابر لمولاناحمد الله داجوی صـ۱۳۰) ولو لم یترک مالا یستقرضْ وارثه نصف صاع مثلا و یدفعه لفقیر ثم یدفعه الفقیر للوارث ثم و ثم حتی یتم (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۴۲ج۱).

**(دربیمه خبره)** که چیری پر ذمه د میت باندی قضایی لمونځونه یا روژی یا نور قابل اسقاط فرائض وی او د غه میت وصیة په خیرات یا اسقاط سره کوی او هغه خپل واجبات پریږدي او په هغو سره وصیت نکوی په دي صورت کی میت گنهگار دي او که میت وصیت په خپلو فرائضو کړی وي هغه په مقدار د ثلث مال نو پر ولی باندي د هغه عملی کول واجب

دی او که یې په خیرات یا دور اسقاط باندې وصیت کړی وو نو د هغه عملی کول پر ولی باندې لازم ندی ځکه چه دا وصیة دی په تبرع سره یعنی ولی ئی عملی کولای سی لکن باندې لازمیږي نه.

ونص علیه فی تبیین المحارم فقال لایجب علی الولی فعل الدورو ان اوصی به المیت لانها وصیة بالتبرع والواجب علی المیت ان یوصی بما یفی بما علیه ان لم یضق الثلث عنه فان اوصی باقل و أمر بالدورو ترک بقیة الثلث للورثة او تبرع به لغیر هم فقدا ثم بترک ما وجب علیه آه وبه ظهر حال وصایا اهل زماننا فان الواحد منهم یکون فی ذمته صلوات کثیرة و غیرها من زکوة و أضاح و ایمان و یوصی لذلک بدراهم یسیرة و یجعل معظم وصیته لقراءة الختمات و التهالیل التی نص علماء ناعلی عدم صحة الوصیة بها (ردالمحتار صـ۵۴۲ج۱) (مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۱۹۷ج۱)

**د دوهم سوال جواب**: دجنازې د لمانځه وروسته تر مخه تر کسر د صفوفو دعا کول مکروه دی او په پنځو لمونځو کی د هغه لمونځو وروسته چه سنة نه وی دعا کول سنة دی او که وروسته سنة وه نو بیا د سنتو وروسته دعا کول جائز دی اما التزام د دغه دعا (یعنی چه څوک ترک د دغه دعا کوی هغه ته نسبة د اساءة کول) بدعت دی په شریعت کی اصل نه لري نو که څوک دغه دعا کوی هم صحیح او جائز دی او کی نه کوی هم جائز دی.

و قید بقوله بعد الثالثة لانه لایدعو بعد التسلیم کما فی الخلاصة (البحر الرائق صـ۱۸۳ج۲) اذا فرغ من الصلوة لایقوم بالدعاء (فتاوی سراجیة بهامش قاضیخان صـ۱۴۱ج۱) وفی خلاصة الفتاوی لایقوم بالدعاء بعد صلوة الجنازة وفی البزازیة لایقوم بالدعاء بعد صلوة الجنازة وفی شرح المشکوة ولا یدعو للمیت بعد صلوة الجنازة لانه یشبه الزیادة فی صلوة الجنازة (فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۳۰۸ج۵) هکذافی (احسن الفتاوی صـ۲۳۶ج۱) (امدادالاحکام صـ۱۹۴ج۱).

و الاحـاديـث التـى يـستدل بهـا عليهـا ( اى على الـدعـاء بعـد المكتوبـات )
الاولى ماروا ه ابوداؤد و النسـائى عن معاذبن جبل ان النبـى ﷺ قال له يا معـاذ انى
والله لاحبک فـلا تـدع د بركـل صـلوة ان تـقول اللّهـم اعنـى على ذكـرک و
شكرک الحديث و الثانية عن ابى بكرة ﷺ قال كان النبـى ﷺ يدعوا بهن ( اللّهم
انـى اعـوذ بـک مـن الكفـر و الفقـر و عـذاب القبـر ) دبركـل صـلوة آه ( احـمـد
والترمـذى و النسـائى ) الثالثة عـن الفـضل بـن عباس ﷺ الـصلوة مثنـى مثنـى
تشهد فى ركعتين و تخشع و تـضرع و تمسكن و تـقنـع يـديک يقول ترفعهـمـا
الى ربک مستقبلا ببطونهما و جهک و تـقول يا رب يا رب و من لم يفعل فهـو كـذا
و كذا وفى رواية فهو خداج اخرجه الترمـذى و الروايـات فى هـذا البـاب كـثيرة
فالدعاء بعد الصلوات من الـسنـن الثابتته فـلا تكن فى مرية والله اعلم (محمـد
عبدالله غفرله )الدعاء بعد المكتوبات برفع الايدى ثابت بالاحاديث المرفوعة
جمعها المفتى العلامة كفايت الله الدهلوى فى رسالة مستقلة فى هـذا البـاب
نسمى بالنفـائس المرغوبة فـارجع اليهـا و اغتنمهـا خير محمد الجالنـدهرى
( خيرالفتاوى صـ۳۵۸ ج۱ ) عن الاسود العامرى عن ابيه قال صليت مع رسول الله ﷺ
الفجر فلما سلم انحرف ورفع يديه و دعـا ( الحديث اخرجه ابـن ابـى شيبة فى
مصنفه ( خير الفتاوى صـ۳۵۲ ج۱ ) قيل يـا رسول الله اى الـدعـاء اسمع فقـال رسول
الله ﷺ جوف الليل الاخـر و دبرالـصلوات المكتوبـات رواه الترمـذى ( خيرالفتـاوى
صـ۳۵۴ ج۱ ) و يـكره تـاخير السنـة الابقـدراللهم انـت الـسلام الخ الـدرالمختارقوله
الابقدراللهم الخ لمـا رواه مسلم و الترمذى عـن عـائشة رضى الله تعـالى عنهـا قالت
كـان رسـول الله ﷺ لايقعـد الابمقـدارمـايقول اللهـم انـت الـسلام و منـک الـسلام
تباركت يـا ذالجـلال و الاكـرام و امّا مـا ورد من الاحـاديث فى الاذكـار عقيب
الصلوة فـلا دلالة فيه على الاتيان بهـا قبل السنـة بل يحمل على الاتيـان بهـا بعـدها
( ردالمحتار صـ۳۹۱ ج۱ ) لاتفاق كلمة المشايخ على ان الافضل فى الـسنـن حتى

سنة المغرب المنزل ای فلا یکره الفصل بمسافة الطریق (ردالمحتار صـ۳۹۲ ج۱).

**(تتمة)** په دغه مروجه اصطلاحي دعاء کې څو شیان جمعه دي رفع الیدین توجه د امام او قوم ته په سر او پای کې حمد او صلوة ویل په پای کې لاس تیرول پر مخ باندي کول د دعا پس له لمانځه څه او هیئة اجتماعي د امام او قوم او غیر د دغه آخري أمره څه دا نور ټول امور شرعیه دي او په احادیثو شریفو کې ثابت دي نو په جمع کې دا مور شرعیة هم څه ممنوع نه پیښیږي او هیئة اجتماعي چه خلق را جمع کول وي د پاره د نفل عبادت او اصل ئې په حدیث کې ثابت نوي هغه مکروه دي لکن دلته خو دغه اجتماع اصلاً د لمانځه د پاره ده نه د دعا د پاره او هغه فرض چه وروسته ئې سنة وي د هغه څه وروسته هم دعا جائز ده لکن څرنګه چه هلته سنة کول په کور کې افضل دي او خلق هم د لمانځه یعنی د سنتو څه په یو وقت او یو وار نه فارغه کیږي نو که امام دعا کوي احتمال د دي سته چه د بعضی کسانو په لمانځه کې خلل واقع سي فلهذا دا دعا ته سنت نه ویل کیږي فقط جائزه ده هغه هم سره د دي شرطه چه دعا کوونکی به پوره سعیه کوي چه د خلقو په لمونځو کې خلل واقع نسي خو د دي موضوع د پوره تفصیل د پاره جرءة الائمة او البصائر او همدا راز نور داسي رسائل او کتابونه چه دا راز مسائلي پکښي ذکر سوي دي باید و کتل سي.

**د دریم سوال جواب:** نذر یو عبادة دي او عبادة یوازي د الله تعالی ﷻ د پاره وي او دغه کسان چه یو حیوان د پیرصاحب یا یو زیارت د پاره نذر کوي که د هغه مطلب او حقیقت دا وي چه زه به د خپل دغه نذر ثوابونه حضرت صاحب یا فلان زیارت ته وربخښم یا دا چه دغه حیوان به هلته حلالوم چه د هغه ځای فقراء یا میلمانه ئې غوښې وُوخري او له همدي وجهي ذکر د بسم الله شریفي او الله اکبر کوي په وقت د ذبح نو دا ناذر مسلمان دی بلکه مأجور دی څرنګه او ولی د کفر نسبت ورته کیږي لکن هغه څوک چه عقیدة ئې دا وي چه دا نذر د خدایتعالی ﷻ د پاره نه بلکه د فلانی زیارت د پاره کوم او د هغه عبادت کوم نو په وقت د

ذبحی که د هغه نوم ذکر کوی او که د خدایتعالی ﷻ (نعوذبالله تعالی) دا سړی مشرک بلل کیږي نو د غه عوام خلق چه نذرونه کوی د دوی مطلب غالبًا هغه اول قسم وی که څه هم نفصیل ئی ورته معلوم نوی ولی یو خبره یا یو فعل د مسلمان چه ښه محمل او احتمال و لري نو پر بد محمل به نه حمل کیږی او بل دا چه د دغه نذر کوونکی څه که پوښتنه وسی چه آیا ته عبادت د پیر یا د دغه زیارت کوي ایا په خوشحاله یبی نو د هغه حواب به منفی وي او دا ډیره بده بولی نو څنگه به په دي فعل دوی ته د کفر نسبت کیږي (ومن ههنا علم ان البقرة المنذورة للاولیاء کما هو الرسم فی زماننا حلال طیب) ﴿ التفسیرات الاحمدیة صـ۴۵ ﴾.

حاصل دا چه مدار د حلّ او حرمت په دي ځای کی پُر دی خبره دی چه که تقرّب الی الله په نذر کښی مقصود وي او بیا ئی ثوابونه بخښل و زیارت ته یا صدقة کول پر فقراء د هغه ځای یا عامو فقراء باندی مطلب وي نو دا جائز بلکه یو فعل حسن دی هر چا چه حکم د جواز ده دغه نذر کړی دی مقصود ئی دغه صورت دی که څه هم دغه ناذر مکان یا یو ځای یا یو زیارت د ذبحی متعین کړی وي یعنی دائی ویلی وي چه زه به په فلانی ځای یا فلانی زیارت کی دا ذبح کوم او که مقصود پکښی تقرب الی الغیر وو نو دا نذر بالکل حرام او نا جائز دی او هغه عبارتونه د فقهاؤ چه شدیده منع پکښی کی د ده مقصود پکښی دا دوهم صورت دی (خو پر علماؤ دا لازمه ده چه دا مسئله عوامو ته په ښه ډول تشریح کړی).

وعن ابن عباس ان سعدبن عبادة استفتی النبی ﷺ فی نذر کان علی امه فتوفیت قبل ان تقضیه فافتاه ان یقضیه عنها متفق علیه ﴿ مشکوة شریف صـ۲۹۷ ﴾ قالت و نذرت ان اذبح بمکان کذا و کذامکان یذبح فیه اهل الجاهلیة فقال (ای ﷺ) هل کان بذلک المکان وثن من اوثان الجاهلیة یعبد قالت لا قال هل کان فیه عید من اعیاد هم قالت لا قال اوفی بنذرک ﴿ مشکوة شریف صـ۲۹۸ ﴾ اختلفوا فی نذرام سعد هذا . . . . . و الاظهر انه کان نذرا فی المال او نذرا مبهما و

يعضده مارواه الدارقطني من حديث مالک فقال له يعني النبي ﷺ اسق عنها الماء (مرقاة شرح مشكوة صـ٤٠۶ج ۶).

ازینجا معلوم میشود که کسی که نذر کند ذبح را در مکانی لازمست وفا بدان اگر آن موضع معبد اوثان و مجمع شعار کفار نبود (اشعة اللمعات صـ٢٢١ج ٣).

و اعلم ان النذر الذى يقع للاموات من اكثر العوام و مايؤخذ من الدراهم و الشمع والزيت و نحوها الى ضرائح الاولياء الكرام تقربا اليهم فهو بالاجماع باطل و حرام ما لم يقصد واصر فها لفقراء الانام (الدرالمختار) قوله مالم يقصدوا اى بان تكون صيغة النذر لله تعالى للتقرب اليه و يكون ذكر الشيخ مرادا به فقراءه كما مر (ردالمحتار صـ١٣٩ج ٢).

از عبارة رد محتار ودر مختار اينچنين مستفاد ميشود كه اگر غرض ازين نذر و ذبح تقرب لغير الله باشد ذبحه اش حرام باشد ترجمهٔ عبارة (امداد الفتاوى صـ٥٥٥ج ٢).

فتاوى ابى الليث مين هى - الناذر لغير الله ان قصد بالنذر التقرب الى غير الله و ظن انه يتصرف فى الامور كلها دون الله فنذره حرام باطل و ارتداده ثابت و ان قصد بالنذر التقرب الى الله و ايصال الثواب للاولياء و يعلم انه لايتحرک ذرة الاباذن الله و يجعل الاولياء وسائل بينه و بين الله فى حصول مقاصده فلا حرج فيه و ذبيحته حلال طيب (خير الفتاوى صـ٥٥٨ج ١) و نذر الزيت و الشمع للاولياء يوقد عند قبورهم تعظيما لهم و محبة فيهم جائز ايضًا لاينبغى النهى عنه (تقريرات الرافعى صـ١٢٣ج ١) و من ههنا علم ان البقرة المنذورة للاولياء كما هوالرسم فى زمننا حلال طيب (تفسيرات احمدية صـ٤٥) و اما الذبح و النذر ان كان باسم غير الله تعالى فلاشک ان النذر لغير الله حرام باجماع العلماء مالم يقصد صرفه الى الفقراء و كذا الذبح و اما ان كان المراد ان

يصل ثوابه الى المقبور الفلانی فای حرج فيه كيف و النبی ﷺ كان يضحی عن امته ممن لم يضح و كذا علی ؓ كان يضحی عن النبی ﷺ بعد وصاله ﷺ و ماذلک الالوصول الثواب و الافالا ضحية الواحدة كيف تصح عن جميع الامة و هذا هو محمل الحديث والافالرجل يذبح الدجاج للضيف و كذا الشاة ﴿البصائر صـ۱۶۰﴾.

ازین قول فقہاء ہویدا است کہ نذر اگر بالاستقلال برای آن ولی است باطلست واگر برای خدا است وذکر ولی برای بیان مصرفست صحیحست ولیکن درین مقام سند العلماء

(مولاناشاه عبدالعزیز دهلوی) فائده عظیمه بقلم آورده است ..... حقیقت این نذر آنست که اهداء ثواب اطعام و انفاق وبذل مال بروح میّت که امریست مسنون وازروی احادیث صحیحة مثل ما وردفی الصحیحین من حال ام سعد و غیرها این نذر مستلزم میشودپس حاصل این نذر آنست ان شئت قلت مثلاً اهدی ثواب هذالقدر الی روح فلان وذکر ولی برائی تعین عمل منذور است نه برای مصرف ..... وهمین است مقصور نذرکنندگان بلاشبهه (و حكمه انه صحيح يجب الوفاء لانه قربة معتبرة فی الشرع) آری اگرآن ولی راحلاّل مشکلات بالاستقلال یا شفیع غالب اعتقاد میکنند این عقیده منجر بشرک وفساد میگردد لیکن این عقیده چیزی دیگراست ونذرچیزی دیگر انتهی.
﴿فصل الخطاب صـ۲۲﴾.

وفی الفتاوی الصغری الكفر شئ عظيم فلا أجعل المؤمن كافرا متی وجدت رواية انه لا يكفر آه و فی الخلاصة وغيرها اذا كان فی المسئلة وجوه توجب التكفير و وجه واحد يمنعه فعلی المفتی ان يميل الی الوجه الذی يمنع التكفير تحسينا للظن بالمسلم ..... والذی تحرر انه لايفتی بكفر مسلم امكن حمل كلامه علی محمل حسن او كان فی كفره اختلاف و لو رواية ضعيفة
﴿ردالمحتار صـ۳۱۲ج۳﴾.

**د خلورم سوال جواب:** د پیچکاری په مسئله کی اختلاف دی بعضی علماء روژه ماته بولی بعضی ئی ماته نه بولی لکن څنګه چه د متقدمینو څه په دي هکله نقل نسته ولی په هغه

وقت کی پیچکاری نوه نو د متأخرینو علماء دلائلو او نظرونو ته به اعتبار ورکول کیږي خو د دارالافتاء د علماؤ نظر دا دی چه په دي مسئله کی دي احتیاط وسی او هغه څوک چه شدید مریض وی او پیچکاری لګولو ته مجبوره وي نو دی په دي وجه روژه نه نیسی چه وای زه پیچکاری لګوم یا یو چا ته ضرورت عاجل پیښ سی او پیچکاری ولګوی او وروسته نو دی بیغمه سی او خپله روژه خوری په دي دلیل چه ما پیچکاری ولګول او روژه می ولاړه په دي صورتو کی فتویٰ دا ده چه په پیچکاری روژه نه ماتیږي او همدغه قول د ډیرو متأخرینو علماؤ مختاره دی او احتیاط هم په روژه نیولو کی دی سره د پیچکاری لګولو او که دغسی ضرورت نوی نو هغه سړی دي پیچکاری د روژه مات وروسته ولګوی او ځان دی د اختلاف او شبهاتو څه وساتی هغه علماء چه په پیچکاری سره د روژی نه ماتیدلو حکم کوي د هغوی و بعضی کتابو نو ته حوالی دا دی.

مالایفسدالصوم عندالحنفیة ..... الحقن فی العضل او تحت الجلد او فی الورید و الاولی عند الامکان تخیرها الی المساء ( الفقه الاسلامی صـ۶۵۸ج۲ ) والمفطرهو الدخول من المنافذ دون المسامات کما صرح به فی البحروشرح المجمع و غیره و لذالایفطر الادهان والغسل و هذا یدل علی ان الدواء الداخل فی الباطن بتوسط الحقن والابرة لاینطر سواء ادخلت الابرة فی اللحم او العرق لان هذا الدواء و ان وصل الی اللحم والعرق بالمنفذ لکنه یدخل الباطن بواسطة المسامات ( منهاج السنن لمولانا محمد فرید صاحب اکوړه ختک صـ۳۴ج۴ ) هکذافی ( فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۴۰۸ج۶ ) و ( امدادالفتاوی صـ۱۴۵ج۲ ) و ( احسن الفتاوی صـ۴۳۲ج۴ ) ( الات جدیدة صـ۱۵۳ ) ( جواهر الفقه صـ۳۷۹ج۱ ) و ( بوادرالنوادر صـ۳۸۹ ) ( جدید فقهی مسائل صـ۹۵ ) ( امدادالمفتین صـ۴۸۹ ) و ( کفایت المفتی صـ۲۳۸ج۴ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## ددولتي مځکوپه اړه څومهمي پوښتني اوجوابونه

ومحترم رئيس صاحب د شوری علماء او دارالافتاء مرکزی ته السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ!

(**اول سوال**)دولتی املاک په داخل د ښار کی که چا يعنی رعيت خو دسرانه بدون د اذن د سلطان تصرف کړی دکانونه سرايونه و غيره تصرفات يی پکښی کړی او آباد کړی وي او پخپلو شخصي مصارفو يی آباد کړي وی شرعی حکم څه دی پر دا ډول املاکو باندی اوس بايد حکومت د طرفه څه کړنه وسی ؟

(**دوهم**) دولتی املاک بيا هم په ښار کی که د طالبانو د تحريک د مخه بيا د داؤد خان تر دورې پوری پر خلگو خرڅ سوی وي او يا اجازه ورکړل سوی وي او څه ناڅه اسناد په لاس کی لري په دا ډول املاکو کی شرعی حکم څه دی؟ او دولت بايد څه و کړی د دوی سره او د هغه حکومتو تصرفات په بيت المال کی جايز او شرعی دی کنه ؟

(**دریيم**) ښاروالی يا دولت چه پر چا باندی يو ځای خرڅوي او يا يی ورکوی اول دا شرط ورسره وضع کوی چه په درې کاله دننه کی به دا ځای اباد وی او که دی نکړی جوړ بيا مځکه بيرته در څخه اخلو او د دولت ته اوس داسی مسئلی ډيری پيښي دي چه د درې کاله څخه زيات وخت تير سوی دی او ځای نه دی جوړ سوی او ښاروالی بيرته دا ډول املاک په تصرف کی راوستلی دي او دا شرط بالکل عرف او رواج گرزيدلی دي شرعی حکم څه دی پر دا ډول املاکو باندي ؟

( **څلورم** ) مطلق دښت او نا آباده مځکه د چا په ملک کی بدون د بیت المال دا خلیدای سی او کنه ؟

( **پنځم** ) دغه دښت او ناابادہ ملک شخصي خلک پر بل شخصي باندی خرڅولای سی او کنه ؟

( **شپږم** ) دښت او نا آباده مځکه دولت پر بل شخصي سړي باندی خرڅولای سی کنه وروسته د خرڅیدا د غه دښت که هغه سړی جوړ او اباد کړی د چاملک بلل کیږي او که یی هغه سړی چه رانیولی یی دي ابادیی هم نکړی د رانیولو وروسته د حکومت ملک دی او که د هغه سړی شرعی حکم غوارو ؟

(مولوی عبدالولی رئیس قضایائ امارت

**د اول سوال جواب**: هغه دولتی املاک چه ده بیت المال ملکیت وي که په داخل کی دښار وي او که خارج د ښار څه ده رعیت خو دسرانه تصرفات پکښی جائز ندی بلکه دا غصب دی حکومت ته دا جائزه ده چه ځنی وایی خلی أمیرالمؤمنین باید هغه کړنه وکی چه د عامو خلقو مصلحت پکښی کی وی که مصلحة عامة په دي کی وو چه وس نوی اجازه ورته ورکی او دوی پر خپلو مځکو پاته سی نو اجازة دی ورکی او که مصلحة عامة په دي کی وي چه اوس یی هغو خلقو ته په اجارة یا بیع ورکی یا دا چه گر سره یی ځنی واخلی هغسی دی وکی ، هر هغه تصرف چه أمیرالمؤمنین یی په بیت المال کی کوي او مصلحة عامة پکښی کی وي هغه تصرف یی جائز دی او دا چه خلقو په شخصي مصارفو دا ځایونه جوړ کړی دي او حکومت دا مصلحة و بولی چه ځنی وایی خلی نو و دی کتل سی که قیمة ده مځکی ډیر وو او قیمة دبناء لږ وو نو بناء دی و نړول سی او خالی مځکه دی حکومت ته تسلیمیږي او که قیمت د بناء ډیروو نوهم دی دغه غاصب بناء و نړوی مځکه دي و حکومت ته ورکی بناء پر مختار قول باندي.

المغصوب انكان عقارا يلزم الغاصب رده الى صاحبه من دون ان يغيره و ينقصه (المجلة الـ٩٠٥) فهذا يدل على ان للامام ان يعطى الارض من بيت المال على وجه التمليک لرقبتها كما يعطى المال حيث رأى المصلحة اذلا فرق بين الارض و المال فى الدفع للمستحق فاغتنم هذه الفائدة فانى لم أرمن صرح بها (ردالمحتار صـ٢٩٠ج ٣) لما كان لامام المسلمين ولاية نظارة على عموم الرعية فى الامور العامة كان تصرفه على الرعية منوطا بالمصلحة (شرح المجلة سليم باز صـ٤٣) التصرف على الرعية منوط بالمصلحة (المجلة الـ٤٢) (سئل) فيمن غصب ارضا وبنى فيها أو غرس و قيمة البناء اوالغراس اكثر من قيمة الارض هل يملک لارض بقيمتها أم يؤمر بالقلع (الجواب) أجاب شيخ الاسلام على أفندى مفتى الروم انه يؤمر بقلع ذلک ولايلتفت لقوله ونعم هذالجواب فان فيه سد باب الظلم والغصب..... وقال الكرخى انه لايؤمر به حينئذ (اى اذا كانت قيمة البناء اكثر) ويضمن القيمة..... ولكن نحن نفتى بجواب الكتاب اتباعا لاشياخنا الخ (تنقيح الفتاوى الحامدية صـ١٦٠ج ٢) و (شرح المجلة سليم باز صـ٥٠٢) ثم اعلم ان هذا الاختلاف فيما اذا كانت الارض ملكًا اما اذا كانت وقفًا فيؤمر الغاصب بالقلع و الرد مطلقا (مجمع الانهر) (شرح المجلة سليم باز صـ٥٠٣) وقال من كتاب الدعوى ان اراضى بيت المال جرت على رقبتها احكام الوقوف المؤبدة (ردالمحتار صـ٤٣٥ج ٣) (وكذا) يفتى (بكل ماهو أنفع للوقف فيما اختلف العلماء فيه) (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ٤٤٠ج ٣) و (الفقه الاسلامى صـ٢٣٤ج ٨).

**د دوهم سوال جواب**: څرنگه چه د داؤدخان ده حکومت څه وروسته بيا د طالبانو تر واکمنۍ پورې اسلامي قانوني او شرعي حکومت ندی راغلی فلهذا د هغوی تصرفات په مځکو د بيت المال کی غير جائز او غير نافذ دي مطلقا په استثناء د هغه ولايت يا ولايتونو چه هيڅ

يو بل مخالف قدرت نوو چه د هغو حکم د متغلبيـنو دي يعنی کم احکام چه موافق د شرع شريف سره وي هغه نافذ دی او که نوه موافق ندی نافذ امير المؤمنيـن بـه دلتـه هم مصلحة عامة په نظر کی ونيسی او د هغه موافق بـه عمل تر سره کی کـه اذن ورتـه کوی کـه نوی عقد کوی که يی څنی اخلی.

( ويشترط كونه ای الامام مسلما ) ای لان الكافر لايلی علی المسلم ...... وقوله قادرا ای علی تنفيذ الاحكام و انصاف المظلوم من الظالم و سد الثغور و حماية البيضة و حفظ حدودالاسلام و جر العساكر ( ردالمحتار صـ۴۰۵ج۱ ) قال القاضی عياض أجمع العلماء علی ان الامامة لا تنعقد لكافر و علی أنه لوطرء عليه الكفر انعزل قال و كذا لو ترک اقامة الصلوة والدعاء اليها ( اعلاء السنن صـ۶۵۷ج۱۲ ) ثم ان الظاهر ان البلاد التی ليست تحت حكم السلطان بل لهم امير منهم مستقل بالحكم عليهم بالتغلب او باتفاقهم عليه يكون ذلک الامير فی حكم السلطان ( ردالمحتار صـ۳۴۲ج۴ ) .

**د دريم سوال جواب**: څرنگه چه د غه شرط يو شرط متعارف دی د ښارواليو په مابين کی نو دا شرط معتبر دي او بيع سره د دغه شرطه صحيح او نافذ ده که چيری مشتری دغه شرط اجراء نکی بايع حق د مسترد دی لري.

البيع بشرط متعارف و هو الشرط المرعی فی عرف البلدة صحيح و الشرط معتبر ...... ويلزم علی البائع الوفاء بهذه الشروط ( المجلة المـ۱۸۸ ) فالحاصل ان المذهب عدم اعتبار العرف الخاص و لكن افتی كثير من المشايخ باعتباره آه ( مجموعة رسائل ابن عابدين رسالة نشر العرف صـ۱۱۶ج۲ ) اما العرف الخاص فلا يثبت به الاحكم خاص مثلاً سيأتی فی المادة ( ۱۸۸ ) من المجلة ان البيع بشرط متعارف فی عرف البلدة صحيح و الشرط معتبر ( شرح المجلة سليم باز صـ۳۵ )

**دڅلورم او پنځم سوال جواب**: که چیری امام یو چا ته دښتی او ناابادی مځکی د ابادولو اجازه ورکی او د ملکیت اجازه هم ورته وکی نو دغه سړی پس د احیاء څه د دغه مځکی مالک، گرځی داسی مالک چه امام یی هم بیا نسی ځنی اخستلای او خپله هر قسم تصرف پکښی کولای سی لکه بیع اجاره و غیره او بغیر له اجازی څه د امام یی په شخصی ډول هیڅ ځوک نسی خرڅولای.

اذا احیا شخص ارضا من الاراضی الموات بالاذن السلطانی صار مالکالها (المجلة المـ۱۲۷۲) ثم ان ما ذکر من الحکم هو قول الامام رحمه الله تعالی و قالا یملکها بلا اذن . . . . . قال فی ردالمحتار و قول الامام هو المختار و لذا قدمه فی الخانیة و الملتقی کعادتها و به اخذ الطحاوی و علیه المتون (شرح المجلة للاتاسی صـ۲۰۴ج ۴) هکذافی (ردالمحتار صـ۳۰۷ج ۵) اما الموات فلیس للامام اخراجه عنه لانه تملکه بالاحیاء فلیحفظ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۹۱ج ۳).

**د شپږم سوال جواب**: امام لره دا جائزه ده چه موات مځکه پر خلگو خرڅه کړی که ضرورة وو او پس ده خرڅیدو د مشتری شخصی ملک گرځی که یی اباده کی که ئی نوی اباده کړی ولی په دي وقت کی دا مځکه د مباحاتو څه نده ځکه چه عقد باندی وسو.

ورأینا د ای الامام لو ملّک رجلا أرضا میتة جاز و کذلک لو احتاج الامام الی بیعها فی نائبة للمسلمین جاز بیعه لها . . . . . فلما کان ذلک الی الامام فی الارضین دل ذلک ان حکمها الیه و انها فی یده کسائر الاموال التی فی یده للمسلمین (اعلاء السنن صـ۶ج ۱۸)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم اللہ الرحمن الرحیم

## که دولت دبل هیواد دجاسوسي اداري، او صلاح توزیع کونکي، همدارنګه په داخل کي چې دبل هیواد لپاره جاسوسي کوي موټران ونیسي څه حکم ئې دي؟

امارت اسلامی افغانستان ریاست استخبارات هرات مدیریت تحقیق بریاست محترم شوری علماء کرام ولات کندها

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

(**اول**) یک عراده موتر سراچه از نزد اسامی محمد خراسانی ولد خان محمد تبعه ایران بدست امده که کیفیت آن ازین قرار است محمد خراسانی یکی از اتباع ایرانی بوده که غرض جاسوسی وبدستور اداره استخبارات ایران از طرف احمد نام وحسین که اعضای استخبارات ایران هستند برای افغانستان توظیف شده بود ویکی از افراد خیلی مهم وخطرناک اطلاعات ایران است از نام برده یک عراده موتر سراچه هم بدست امده که به پول اداره اطلاعات ایران خریداری شده وبه غرض فعالیت های جاسوسی به اختیار محمد خراسانی گذاشته شده است ؟

(**دوم**) یکعراده موتر سراچه از نزد اسامی سنگین ولدحاجی عبدالحق بدست امده که کیفیت ان قرار ذیل است، تعداد ۳۵ میل سلاح مخالفین که از طریق اطلاعات ایران توسط شخص ایرانی بنام ازلی معاون استخبارات تایباد ایران برای سنگین توزیع گردیده بود وتوسط سراچه متذکره سلاح ها به افغانستان انتقال گردیده چون سلاح ها در مرز ایران دریک جایسازی که درزیر فرش سراچه ساخته شده بود از ایران به افغانستان انتقال داده شده وبه دسترس مخالفین قرارگرفته همچنین اسامیان هریک سنگین قومندان گلو که فعلاً قومندان مخالفین است باتعدادی افراد مسلح دیگر توسط همین سراچه از ایران به افغانستان امده اند ؟

(**سوم**) یک عراده موتر کرولا از نزد اسامی حاجی کاظم بدست امده که حاجی کاظم یکی از افراد برجسته کودتای ناکام و شورش هزاره ها در هرات بوده درپلان شورشیان حاجی کاظم بصفت رئیس استخبارات هرات تعین شده بود حاجی

کاظم از سازماند هندگان شورش بود ودرشکست شورش از هرات فرار نمودبعد از چند وقت که ذریعه کرولای متذکره بطرف هرات می امد در عرض راه همرای موترش یکجا دستگیر شده است ؟

به مطلب فوق غرض صدور فتوی شرعی به شما تحریر شدکه موترهای متذکره به بیت المال ضبط شود ویا به ورثه شان تسلیم داده شود.

﴿ ریاست استخبارات هرات مدیریت تحقیق ﴾

**جـواب:** محترما دین مقدس اسلام دربارهٔ أموال مردم وملکیتها ایشان توجّهی زیاد داده وبسیارأوامرجدّی درباب حفظ وتحفظ آنها کرده وهیچ کس را اجازه نداده تابنوعی ازأنواع بأموال مردم ناحق تعرض نماید مال زیاده باشد یا اندک وآن مردم مخالفین وباغیان باشد یا مجرمین وعصاة باشد یا دیگر افراد درعیت باشد، دربارهٔ اموال بغاة و مخالفین حکم اینست که اموال شخصیه ومملوکه ایشان از طرف حکومت بطور امانت ودیعت وحفظ شود هر وقت که مخالفین وبغاة ازبغاوت ومخالفت دست بکشد یا بزور تسلیم شوداموال ایشان بایشان تسلیم شود هیچ نوع تغییر ونقصان باموال ایشان باید رسیده نشود واگراموال از قسم حیوانات بود که محتاج بنفقات ومصارف بودآن اموال باید فروخته شود وقیمت اش برای ایشان نگهداری شود وهمچنان دربارهٔ دیگر مجرمین بایدگفته شودکه تعرض باموال شخصی ایشان و موترهای شخصی ایشان واستفاده ازان بغیر اجازهٔ ایشان حرام قطعی است وتعزیربالمال جائز نیست جذا باید ازان احتراز شود.البته این حکم دربارهٔ اموال شخصی ایشان است.

ولايسبى لهم ذرية ولا يقسم لهم مال لقول علی ﷺ يوم الجمل ولايقتل اسير ولايكشف ستر ولايوخذ مال وهو القدوة فى هذالباب...... لانهم مسلمون والاسلام يعصم النفس والمال.... ويحبس الامام اموالهم ولايردها عليهم ولايقسمها حتى يتوبوا فيردها عليهم..... اماالرد بعد التوبة فلاندفاع الضرورة ولا استغنام فيها ﴿الهداية صـ٥٨٦ج٢﴾ وتحبس اموالهم الى ظهور توبتهم (فترد عليهم وبيع الكراع اولى لانه انفع فتح ويقاس عليه العبيد نهر) و

نـقـاتل بـسـلاحهم و خيلهم عنـد الحاجة و لاينـتفع بغيرهـمـا من اموالهم مطلقا و لو عنـدالحاجة سراج ﴿الـدرالمختاربهـامش ردالمحتـار صـ۳۴۱ج ۳﴾ هـكـذافی ﴿الفتـاوی الهنـديـة صـ۲۸۴ج ۲﴾ ولنـا ان عليًا قسم السـلاح فيمـا بيـن اصحابه بالبصرة و كانت قسمته للحاجة قال المحقق فی الفـتح و لو لا ان فيه اجماعًا الخ..... و فيه و ماكان من دابة او سلاح فهو لكم....... و قد اشرت الی طريق الجمع بينه و بين مايخالفه بانه اعطاهم ماكان عليه سمة السلطان و علامة بيت المال و ردماسواه الی اهله﴿اعلاء السنن صـ۶۷۲ج ۱۲﴾ وفی شرح الاثار التعزير بالمال كان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ و الحاصل ان المذهب عدم التعزير بأخذ المال ﴿البحر الرائق صـ۴۱ج ۵﴾ و الحاصل ان المذهب عدم التعزير بأخذالمال ﴿ردالمحتار صـ۱۹۶ج ۳﴾.

**﴿تنبیــه﴾** بایدگفته شودکه اگراین موترهاازطرف حکومت ایران به ایشان هبه شده باشد یاتملیکا بایشان داده شده باشدبطور ملکیت شخصی پس اخذآن غیراز صورت ودیعت جائزنباشدچنانکه مذکورشدواگرتملیکاداده شده نباشدبلکه ایران فقط برای استفاده برای ایشان داده باشدکه پس ازاستفاده این موترهارابرای حکومت ایران یامخالفین امارت اسلامی تحویل دهنددرین صورت اخذاین موترهابرای امارت اسلامی وبیت المال افغانستان جائزاست چنانکه ازحوالهای سابق فهمیده میشود.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دکفاروپه لاس اوپه برقي اله حلال سوي حيوانان څه حکم لري؟

**سوال:** د دارالافتاء رياست محترم مقام ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

وبعد: بعضی مسلمانان چه په خارج کښی لکه په امريکا جرمنی او نورو مملکتو کښی دی داسی پوښتنه کوي چه د غه حيوانات چه عبارت د چرگ پوسونه غوايی د کفارو په لاس او يا د ماشين په ذريعه حلالیږي يعنی د ماشين په ذريعه ئی سرونه پريکوی د دغه حيواناتو غوښی د مسلمانانو لپاره او زمونږ پر مذهب څنگه دي هيله ده چه د خوراک د جواز او نه جواز په هکله فتوی را کړی؟

﴿رئيس مخابرات﴾

**د اول سوال جواب:** ذبيحة د کفارو چه يو کتاب سماوی ته عقيده نلري اتفاقا ناروا ده او هغه کفار چه يو کتاب سماوی ته عقيده و لري لکه يهود او نصاری د هغو ذبيحه حلاله ده که څه هم هغوی په خپل کتاب او دين کی زيات تحريف کړی وي يا ئی عقيده د ۳ خدايانو وی لکن أولی داده چه د دوی ذبيحة بی ضرورته ونه خوړل سی.

(سئل) فی ذبيحة الذمی الکتابی هل تحل مطلقا أولا (الجواب) تحل ذبيحة الکتابی لان من شرطها کون الذابح صاحب ملة التوحيد حقيقة کالمسلم او دعوی کالکتابی ولانه مؤمن بکتاب من کتب الله تعالی و تحل مناکحته فصار کالمسلم فی ذلک و لافرق فی الکتابی بين انيکون ذميا يهوديا او نصرانيا حربيا او عربيا او تغلبيا لاطلاق قوله تعالی و طعام الذين او توالکتاب حل لکم و المراد بطعامهم مذکاهم ..... وهل يشترط فی اليهودی انيکون اسرائيليا و فی النصرانی ان لايعتقد المسيح اله مقتضی اطلاق الهداية وغيرها عدم الاشتراط و به افتی الجد فی الاسرائيلی ..... فی مبسوط شمس الائمة و تحل ذبيحة النصرانی مطلقا سواء قال ثالث ثلاثة أولا و مقتضی الدلائل و اطلاق الاية الجواز کما ذکره التمرتاشی فی فتاواه والاولی ان لا

يأكل ذبيحتهم ولايتزوج منهم الا لضرورة (تنقيح الفتاوی الحامدية صـ۲۱۱ج۲) هكذافی (ردالمحتار صـ۲۰۸ج۵) وفيه وفی المعراج ان اشتراط ماذكر فی النصاری مخالف لعامة الروايات وهكذافی (الفتاوی الهندية صـ۲۸۵ج۵) هكذافی (بدائع الصنائع صـ۴۵ج۵) .

لکن که دا معلومه سوه چه دغه اهل کتابو په وقت کی د ذبح نوم د غیرالله ذکړيدي نو اتفاقا حرامه ده ذبيحة ئی او که حال نوو معلوم لکن عادت د اهل کتابو وو چه اسم الله په وقت کی د ذبح ذکر کا وه نو بناء بر حسن ظن یی ذبیحة جائز ده.

ولواهل نصرانی علی ذبیحة بغیر اسم الله تعالی فیسمع کلامه لم تؤكل ومن لم يشاهد ذبحه منهم حل اكل ذبيحتهم (مجمع الانهر صـ۵۰۸ج۲) هكذافی (ردالمحتار صـ۲۰۹ج۵ () عزيزالفتاوی صـ۶۹۷) ان ذبائحهم حلال للمسلمين لانهم يعتقدون تحريم الذبح لغير الله ولايذكرون علی ذبائحهم الا اسم الله وان اعتقدوا فيه تعالی ما هو منزه عنه (تفسيرابن كثير صـ۲۹ج۲) لانه اذا لم يسمع منه شيئا يحمل علی انه قدسمی الله تبارك وتعالی وجرد التسمية تحسينا للظن به كما فی المسلم (بدائع الصنائع صـ۴۶ج۵) .

لکن په نن عصر کی اکثر هغه کسان چه په مملکتو کی د اهل کتابو ژوند کوی یوازی په نامه یهودی او نصرانی پاته دی او په حقیقت کی د هریان دی نو باید بی له سخته ضرور ته اجتناب ځنی وسی.

ان تفصیلات پر غور کیجیے تو معلوم ہوگا کہ یورپ میں جو لوگ اہل کتاب کہلاتی ھیں عموما ان کی ذبیحی حلال نہیں ہوتی اول تو ان کی اکثریت الحاد اور دھریت کا شکار ہے اور مذھب الھام ووحی وغیرہ کی سخت منکر ہے (جدید فـقھی مسائل ص۱۴۱ج۱) .

(**نوټ**): دا خبر ضروری ده چه د اهل کتابو د ذبیحی ذبح که پر اسلامی طریقه سوی ده نو مذکور بیان سته که پر اسلامی طریقه نوه نو حرمت قطعی دی.

**د دوهم سوال جواب**: مشيني ذبيحه يعني هغه ذبيحه چه د هغه نحر يا ذبح د برقي ماشين په واسطه سوی وي نه په لاس سره په دي صورت کی څو احتماله دي (اول) دا چه ذابح مسلمان يا نصراني يا يهودي وي يعني اهل کتاب وي مراد د ذابح څه چالا نوونکی د ماشين دی (دوهم) دا چه ذابح د هری يا بل کافر وي (دريم) دا چه په وقت کی د ذبح اسم الله باندي ذکر سوی وي يوازی (څلورم) دا چه اسم د غيرالله باندي ذکر سوی وي (پنځم) دا چه بسم الله شريفه پر هغه آلة د ذبح ليکل سوی وي او په خوله نوی ويل سوی نو که اول او دريم احتمال سره جمع سوی وه نو ذبيحه جائزه ده او په نورو ټولو صورتو کی ناجائزه ده او حرامه ده او بايد وويل سی چه دغه طريقه د ذبح خلاف د سنتو طريقه ده رواجول يې حرام کار دی په اسلامی مملکتو کی.

اتنی بات متعین ہے کہ اگر جانور کی عروق ذبح نہیں کاٹی گئیں یا ذبح کرنی والا مسلمان یا کتابی نہیں ہے یا سب کچھ ہے مگر ذبح کی وقت اللہ کا نام لینا قصدًا چھوڑ دیا ہے یا کسی غیراللہ کا نام اس پر ذکر کیا ہے تو وہ ذبحہ حلال نہیں کسی مشین میں شرائط مذکورہ کی خلاف ورزی نہ ہو تو اس کا ذبح کیا ہوا جانور حلال ہے اوران میں سے ایک شرط بھی فوت ہو جائی تو ذبحہ حرام ہو جائیگا اور جب تک صحیح صورت حال معلوم نہ ہو اس وقت تک مشینی ذبحہ کی گوشت سی احتیاط کرنا واجب ہے ﴿جواہرالفقہ مفتی محمد شفیع رحمۃاللہ تعالی ص۔۴۲۲ج۲﴾ خلاصہ اس کا یہ ہے کہ یورپ کی شہرون کا مروجہ طریقہ ذبح خلاف شرع اور موجب گناہ ہے مسلمانوں کو جہاں تک قدرت ہو اس سے بچیں اور اپنی ملکون میں اس کی رواج کو بند کریں اور یورپ کی علاقون میں رہنی والی مسلمان جو اس طریقہ کی بدلنی پر قادر نہیں اور گوشت کی ضرورت بہر حال ہیں ان کی لئے مندرجہ ذیل شرائط کی ساتھ اس گوشت کا استعمال کرنا جائز ہوگا ان میں سے ایک شرط بھی نہ پائی گئی تو حرام ہوگا (۱) مشین کی ذریعہ ذبح کرنی والا آدمی مسلمان یا نصرانی یا یھودي ہو (۲) مشین کی چھری جانوروں کی گردن تک پہنچانی کی وقت اس نے خالص اللہ کا نام بسم اللہ اللہ اکبر کہا ہو......بندہ محمد شفیع عفااللہ عنہ الخ ﴿احسن الفتاوی ص۔۴۶۹ج۷﴾ حضرت مفتی محمد شفیع صاحب ظلہم کا جواب صحیح ہے یعنی مشین سے ذبح کرنا جائز نہین مگر ذبحہ حلال ہوگا ﴿احسن الفتاوی ص۔۴۷۳ج۷﴾ ﴿ جدید فقھی مسائل ص۔۳۱۸ج۱﴾.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دوه ورونه په شراکت مځکه رانیسي بیائي تقسیم کړي نور ورونه حق پکښې لري!

**سوال**: زه فضل محمد د خیر محمد زوی خپل عرض په لاندې ډول وړاندې کوم ما او زما
ورور چه پلار مو وفات کړی وو په مشوره سره یو اندازه ځمکه چه دوې حصې پیسې ئې زما
شخصې د معاش پیسې او یوه حصه ئې زما ورور وایي چه زما د مزدورۍ پیسې وې
واخیستله شرعي تقسیم مو د ورونو سره نه دی کړی هیله کوم چه رهنمائي راته وکړی چه زما
ورونه په دغه ځمکه کې حق لري او کنه او زما دغه ورور ئې دریمه برخه پیسې پکښې
ورکړیدي څومره حق لري ؟

(فضل محمد)

**جواب**: دلته دوه شیان دي یو ستا او ستاد هغه نورو ورونو تر مابین حساب دی چه پیسې
ئې ندي درکړی بل ستا او ستا د هغه ورور تر مابین معامله ده چه یوه حصه پیسې ئې درکړې
دي د اولی خبره په هکله باید ووایو که چیری تا د رانیولو تر مخه د دوی څخه اجازه اخیستې
وه چه په مشترک مال زه مځکه رانیسم او هغه به هم مشترکه وي نو ستا دغه فعل صحیح دی
او مځکه د ټولو تر مابین مشترکه ده او که دی تر مخه اجازه نه وه اخیستې نو بیا که دي د
سودا په وخت کې ویلي وه چه زه د خپلو ورونو د پاره دغه مځکه رانیسم او بایع ویل چه د
هغو د پاره یې درباندې خرڅوم نو بیا د ورونو پر اجازه موقوفه ده او که یې وویل چه زه یې
رانیسم یا بایع وویل چه پر تا یې خرڅوم یعنی بایع او مشتري دواړو نسبة و ورونو ته ونه کړ
نو بیا مځکه یوازې ستا ده او هغه نور ورونه حصه نه پکښې لري ، د دوهمې خبرې په هکله
باید ووایو که ستا ورور دغه پیسې تاته په قرض درکړې وي نو ته باید ده ته خپل قرض
ورکړې او که یې د دې د پاره درکړې وي چه د مځکې په رانیولو کې درسره شریک شي نو بیا
دی درسره شریک دي په مځکه کې که یې دریمه حصه پیسې د مځکې د دریمې حصې

زانیولو د پاره د زکړی وي نو د مخکی دریمه حصه د ده او که مو په بل شکل خبر سره کړی وي نو بیا هغه اعتبار لري.

کل واحد من الشریکین کانه اجنبی فی نصیب صاحبه فلا یجوز له التصرف فیه بغیر اذنه اذ لا ولایة لاحدهما فی نصیب الاخر (الفقه الاسلامی ص۷۹۴ج۴) هکذا فی (بدائع الصنائع ص۶۵ج۶) وکلٌ اجنبی فی قسط صاحبه (تبیین الحقائق ص۳۱۳ج۳) و اما حکم شراء الفضولی فجملة الکلام فیه ..... فان اضافه الی نفسه کان المشتری له سواء وجدت الاضافة من الذی اشتری له او لم توجد و ان اضاف العقد الی الذی اشتری له بان قال الفضولی للبائع .. ... او قال البائع بعت هذا العبد من فلان بکذا و قبل المشتری الشراء منه لاجل فلان فانه یتوقف علی اجازة المشتری له (بدائع الصنائع ص۱۵۰ج۵)

او قال البائع للفضولی بعت منک هذا العبد بکذ الفلان فقال اشتریت لایتوقف و ینفذ الشراء علیه لانه لم توجد الاضافة الی فلان فی الایجاب و القبول و انما وجدت فی احدهما واحدهما شطر العقد فلایتوقف لما ذکرنا (بدائع الصنائع ص۱۵۰ج۵) وما اشتراه احدهم لنفسه یکون له و یضمن حصة شرکائه من ثمنه اذا دفعه من المال المشترک (الفتاوی الکاملیة ص۵۰) صرح فی البدائع ان افعل کذا و أذنت لک ان تفعل کذا توکیل یؤیده مافی الو لوالجیة دفع له الفا و قال اشترلی بها اوبع او قال اشتربها او بع و لم یقل لی کان توکیلا الخ (ردالمحتار ص۴۴۴ج۴).

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک له خور څخه خپل حق په بيع واخلي اوبياخورڅه دعوی ورباندي وکړي حق لري کنه؟

**سوال:** د حضور ته کندهار د دارالافتاء مقام ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٗ.

اما بعد: زما خور په دغه نېټه ۱۶ /۳ / ۱۳۳۸ کال کی په خپل ژوند کی خپله حصه مځکه د پلار مورثه پر ما په مقابل کی / ۱۴۰۰۰ څورلس زره افغانی خرڅه کړه د ۳ شاهدانو په حضور کی چی هغه شاهدانو هم وفات کړیدی، نو څرنګه چی زما خور ۲ کاله مخکی وفات کړیدی تر اوسه پوری د ظاهرشاهی د وخت څخه بیا د اسلامی تحریک تر اوسه پوری نه زما وفات شوی خور او نه ئی لور دعوه کړي وه، اوس ئی لور پر ما عارضه شویده، ستاسو څخه په دي باره کی شرعی فتوی غواړم؟

**جواب:** که دغه ستا خورڅه پر تا داسی دعوه کړی وي چه زما مور ته یی حق نه دی ورکړی او تاسو هم واقعًا تقسیم نه وی کړی او نه مو هم بیعه کړي وي نو اوس شرعًا او دیانةً ته مکلف یی چه حق به ئی ورکوي او که دي یعنی ستا خور خپله حصه درباندي خرڅه کړي وي په صحیح بیعه سره او اوس یی لور دعوی کوي چه زما مور دغه بیعه نه ده کړی نو که یی په تیرو وختو کی د یو عذر شرعی په وجه دعوی پري ئیښی وه نو اوس یی دعوی اوریدله کیږي او که بی عذره یی دعوه پریښی وه او مرورالزمان راغلی وو نو یی دعوی نه اوریدله کیږي او مدة د مرورالزمان ۳۶ کاله ده که منع سلطانی نه وه او که منع سلطانی صادره سوی وه نو بیا ۱۵ کاله مدة ده.

قال الصاحبان و جمهورالفقهاء تجوزاجارة المشاع مطلقا من الشريک و غيره...... كما يجوزذلک فی البيع و الاجارة احد نوعی البيع (الفقه الاسلامی صـ۷۴۲ج ۴) قال المتأخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعدست و ثلاثين سنة الا انيکون المدعی غائبا او صبيا او مجنونا و ليس لهما ولی او المدعی عليه اميرا جائرًا (ردالمحتار صـ۳۸۲ج ۴) سئلت عمن ترک دعواه خمس عشر سنة ثم مات عن ورثة فهل لاتسمع دعوا هم لقيامهم مقام مورثهم فالجواب نعم (الفتاوی الكاملية صـ۱۱۹) اذا ترک المورث الدعوی مدة و تركهما الوارث ايضًا مدة اخری و بلغ مجموع المدتين حد مرورالزمان فلا تسمع تلک الدعوی (سليم بازصـ۹۹۴).

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دګروئ دکان په دحکومت په نقشه کي راسي اونړېږي څه حکم ئې دي؟

**سوال**: دغه یو دکان په ګروی اخیستی دی که چیری دغه نو موړی دکان د دولت لخوا څخه چه په نقشه کی راسی او ویی نړوی نو په دی اساس دا پوښتنه در څخه کوم چه د دغه دکان دګروی پیسی دګروی دار حق کیږی او که ئی نه کیږی ؟

**جواب**: په دغه صورت کی چه په استفتاء کی ذکر سوی دی ۲ دوه شکله دی ۱ اول دا چه اصلي مالک ګروی دار ته دا اجازه نوی ورکړی چه د دکان څخه استفاده وکړی فقط او فقط د پیسو دضمانت په شکل دکان دګروی دار پلاس کی وی چه دا هغه اصلی او جائز شکل دګروی دی پدی صورت کی د اصلی مالک دکان ولاړی او دګروی دار پور مالک د ذمی څخه ساقط سو که هغه پور او د دکان قیمت سره مساوی وه او که چیری دپور اندازه ډیره وه نو د دکان د قیمت قدر به دپور څخه ساقط سی هغه نوری باقی پیسی به مالک وګروی دار ته ورکوی او که د دکان قیمت ډیر ؤو نو دګروی دار پور ساقط سو او د مالک دکان ولاړی یو پر بل حق نلری ۲ دوهم دا چه اصلی مالک ګروی دار ته اجازه د استفادی ورکړی وی چه دغه ګروی دار پخپله دکان وکړی یائی بل چاته په کرایه ورکړی یا داسی نور چه دا هغه ناروا صورت دی دګروی نو په دی شکل کی که په داسی حالت کی چه ګروی دار د دکان څخه استفاده کول او حکومت دکان ونړوی د مالک دکان ولاړی او دګروی دار ټوله پور د مالک پر ذمه باقی دی یعنی مالک مکلف دی چه دګروی دار ټوله پور به ورکوی کڅه هم دکان یی هلاک سوی دی

مایساوی الدین من مالیة الرهن تعتبر ید المرتهن علیه ید ضمان او استیفاء فاذا امتنع ردالمرهون لصاحبه بسبب هلاکا وغیره کان المرتهن مستوفیا من دینه هذالمقدار واحتسب من ضمانه واماما زادمن قیمت الرهن علی الدین فهو امانة یهلک هلاک الامانة فلایضمن الابالتعدی او التقصیر ﴿الفقه الاسلامی صـ۲۶۷ج ۵﴾ فلو هلک وقیمته مثل دینه صارمستوفیا دینه وانکانت اکثر من دینه فالفضل امانة وبقدرالدین صارمستوفیا وانکانت اقل صارمستوفیا بقدره ورجع المرتهن بالفضل ﴿تبیین الحقائق صـ۶۳ج ۶ بدائع الصنائع صـ۱۵۴ج ۶﴾ واذا اذن الراهن المرتهن فی الانتفاع بالرهن فهلک حال انتفاعه به بناء علی الاذن فانه ایضا یهلک هلاک الامانة ولایسقط بهلاکه شئ من الدین لانه لم یهلک فی قبض الرهن وانما هلک فی قبض العاریة ﴿الفقه الاسلامی صـ۲۶۹ج ۵﴾ هکذافی ﴿بدائع الصنائع صـ۱۵۶ج ۶﴾.

فاذا انتفع المرتهن باذن الراهن وهلک الرهن حالة استعماله یهلک امانة بلاخلاف اماقبل الاستعمال او بعده یهلک بالدین ﴿ردالمحتار صـ۳۴۳ج ۵﴾ سئلت عن الرهن هل یجوز للمرتهن الانتفاع به فالجواب انه لایجوز الانتفاع به مطلقا ..... الاباذن کل الاخر ..... قال سیدی احمد الطهطاوی رحمه الله تعالی والغالب من احوال الناس انهم انما یریدون عند الدفع الانتفاع ولولاه لما اعطی الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهو ممایعین المنع آه وهوفی غایة الحسن ..... وفی الجامع ..... انه لایحل له ان ینتفع بشئی منه و ان اذن له الراهن لانه اذن فی الربا ﴿الفتاوی الکاملیة صـ۲۴۴ هکذافی ردالمحتار صـ۳۴۳ج ۵ هکذافی الفقه الاسلامی صـ۲۵۶ج ۵﴾.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## په حیله چې کومې پیسې اخیستلي کیږي سود ده کنه؟ هغه پیسې چې دپیسو ماتول ورته وایي

**سوال**: زماعبدالله او عبدالاحد ترمینځ چه کومه سودا شوېده به لاندي ډول ده لومړی ځل چه ما له عبدالاحد څخه روپئ به ګټه اخیستی دی یولک روپی په دیرش زره ګټه مود دوؤلسو میاشتو په وعده سره ماتي کړی دی حیله مو ورته ډیو بل چا دوکان کښیښود په دوکان ننواتو چه په هغه دوکان کی یونا معلوم تعداد داوړو ګوني پرتی وی. ماورڅخه په یولک او دیرش زره روپی قبول کړو او هیڅ تصرف مي نه دی پکښي کړی له دوکان څخه سره راوه وتلو عبدالاحد ماته یولک روپی راکړی دوکان خو هغه خپل خاوند ته پاته سو زه پرخپله مخه ولاړم چه کله وعده پوره شوه ماله هغه ۳۰۰۰۰ ګټې څخه اوولس نیم زره ۱۷۵۰۰ روپی ورکړی او دوولس نیم زره ۱۲۵۰۰ پاته سوی هغه مو دشپږو میاشتو په وعده په دوه نیم زره ۲۵۰۰ ګټه سره فیصله کړی حیله مو ورته زماتوپک کښیښود چه پنځلس زره ۱۵۰۰۰ سوی او هغه یولک روپی مو بیاد ۱۲ میاشتو په وعده په ۳۷۰۰۰ ګټه سره ماتي کړی حیله مو بیا ورته دیو بل چا دوکان کښیښور پر لومړی طریقه. دریم ځل چه په ماروپی نه جوړیدی هغه ګټه ئی راقرض کړه او یولک روپی چه سر وو هغه مو بیا په ۳۳۰۰۰ روپی ګټه سره ماتی کړی او حیله مو ورته زما موټر کښیښود چه زمادموټر اصلی قیمت ۲۰۰۰۰۰ دوه لکه روپی ؤو او ده ته ما په ۱۰۰۰۰۰ یولک روپی ورکړ ددې دپاره چه حیله پر جوړه کړو دموټر کیلي مي ورکړي څوګامه زه او عبدالاحد سره ولاړو او کیلی ئی بیرته ماته راکړی په ۱۳۳۰۰۰ یولک او درې دیرش زره زما موټر پر هغه ځای ولاړ ؤو ده نور تصرف نه دی پکښی کړی؟

**جواب**: ستاسو دغه معامله او دغه جریان چه تاسو لیکلی دا ټوله دسود او ربوا معاملې دی او دغه حیلې چه تاسو ورته اېښي دی اول خو داحیلې په خپل ځان کې صحت نه لری او بل داچه داحیله ده وحرام ته او حیله وحرام ته حرامه ده هغه حیله جائزه ده چه په هغه سره سړی دحرامو خلاص سی یا یو حلال ته ځان وصل کړی او داچه حیله وحراموته کوي قطعاً حرامه ده هغه دسود پیسی چه داصلی رأس المال څخه بالابود دی او پر دغه معامله کوونکی ئی اېښی دی او ده هم ورګټلي دی هغه داصلی مالک حق نه کیږی هغه ته به فقط خپل رأس المال ورکوي او که ئی پخوا ورکړی وی دغه ګټه نو هغه اصلی مالک به بیرته هغه ګټه دغه ګټونکی ته ورمسترد کوی او که دا امکان نه وی چه هغه ته یې مسترد کړی بیابه ئی خیرات کوی خپله استفاده کول ورته حرامه ده.

(یاایها الذین امنوا اتقو الله وذروا مابقی من الربوآن کنتم مؤمنین فان لم تفعلو افا ذنوا بحرب من الله ورسوله وان تبتم فلکم رؤوس اموالکم لاتظلمون ولاتظلمون)﴿ القرآن الکریم آیت نمبـــ۲۷۸-۲۷۹ پاره۳﴾ قال فی التاتارخانیة مذهب علمائنا ان کل حیلة یحتال بها الرجل لابطال حق الغیر او لادخال شبهة فیه فهی مکروهة یعنی تحریما وفی العیون وجامع الفتاوی لایسعه ذلک وکل حیلة یحتال بها الرجل لیتخلص بها عن حرام او لیتوصل بها الی حلال فهی حسنة وهو معنی مانقل عن الشعبی لاباس بالحیلة فیما یحل ﴿غمزعیون البصائر صـ۲۱۹ج ۴﴾ وسبیل التوبة ممابید الانسان من الاموال الحرام انکانت من ربا فلیردها علی من اربی علیه ویطلبه ان لم یکن حاضراً فان ایس من وجوده فلیتصدق بذلک عنه وان اخذه بظلم فلیفعل کذلک فی امرمن ظلمه ﴿التفسیر المنیر صـ۱۰۰ج ۳﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دسرقلفي دکان که دمالک په اجازه ترمیم سي څه حکم ئې دي؟

**سوال**: زه داسې عرض لرم چه پر ما باندی یوباب دوکان چه په هرات دروازه کی په اوله ناحیه کی موقعیت لری نو ددوکان مالک حاجی عبدالودودمرحوم وماته په سر قلفی راکړی دی او عرفی خط او اقرار ئی لرم او دغه شخص پر ما ایښی وو چی دغه دوکان درزی دی نو ته به ئی جوړوی نو ما هغه جوړ کړ نو شرایط دانقلاب راغلل نو دمرمیو او راکټو په وجه ذکر سوی دوکان تخریب سو نو بیا می هم دمالک دزامنو په حضور کی جوړ کی دلسو کالو څخه زیات کیږی او خلګ خبردی نو په هغه وخت کی ئی وماته نه ویل چه ته دوکان مه جوړوه اوس ناحقه وماته وایي چه دوکان را ایله کړه او دا دوکان نړیدلی ؤو نو ما دغه دوکان جوړکړیدی بیا هم تکلیف راکوی نو هیله کوم چه وماته شرعی فتوا راکړی؟

**جواب**: دوکان چه وی او په اجازه دمالک ترمیم سوی وی او بیا ونړیږی نو والا بیرته حق لری چه خپل دکان جوړکړی او مالک نسۍ کولای چه په دی بهانه دکان ځنی وګرځوی خو شرط دادی چه سرقلفی والا به هم مناسبه کرایه( اجرة مثل) پر خپل مقرره تاریخ مالک ته ورکوی.

ومـمن افتی بلزوم الخلو الـذی یـکون بـمقابلة دراهـم یـد فعهـا للمتولی او المالک العلامة المحقق عبدالرحمن افندی العمادی صاحب هدیة ابن العماد. .... فیفتی بجواز ذلک للضرورة قیاسا علی بیع الوفاء (ردالمحتار ص۱۹ ج ۴) واعلم ان الخلو یثبت فی الارض المملوکة لماذکره المؤلف فی کتاب الوقف ان وقف البناء بدون الارض صحیح وان الخلو یتحقق ولو الارض مملوکة علی ماعلیه الفتوی (طحطاوی علی الدرالختار ص۱۰ ج ۳) سئل فی جماعة یملکون

مكانا استاجره منهم رجل بازيد من اجر المثل وآذنوه بالبناء فيه ليكون له خلو ابحق البقاء والقرار فبنى وعمر حسب الاذن منهم...... وهو يدفع اجرة المثل وزيادة للمالكين ثم بعد تلك المدة قام المالكون الآن يريدون ابطال ذلك الخلو الخ اجاب اذا ثبت الخلو المذكور مستوفيا شرائط الصحة وواضع اليد قائم بدفع اجر مثل ذلك المكان بقطع النظر عما احدثه فيه لايكون لمالكي المكان المذكور ابطال الخلو بدون وجه شرعي ولااجارة المكان من غير صاحب الخلو ﴿الفتاوى المهدية صـ۴۹ج۵﴾ وفائدة الخلو انه كالملك فتجرى عليه احكامه من بيع واجارة وهبة ورهن ووفاء دين وارث الخ..... ومنه يعلم انه لامانع من تعددالخلوات اذالملك يتعدد ﴿غمز عيون البصائر للحموى صـ۳۲۲ج۱﴾ سئل في بناء في ارض موقوفة مستحق للبقاء والقرار تهدم ذلك البناء وصارت الارض خالية فهل لربه اعادته ثانيا كما كان اولا اجاب للمحتكر حق الابقاء والاعادة حيث كان قائما بدفع اجرة مثل الارض خالية عن البناء على ماعليه العمل ﴿الفتاوى المهدية صـ۴۸۷ج۲ وصـ۴۹۵ج۲﴾ .

بسم الله الرحمن الرحیم

## که شاهد ددرواغو شاهدي ووايي فيصله صادره سي او شاهدان خپله شاهدي بيرته واخلي اقراوكړي چې مور دروا غ ويل څه حكم دي؟

**سوال**: څرنگه چې درو کسانو غیر حق شاهدی ادا کړی وه په ثلاثه طلاقو او بیرته ئی خپله شاهدی واخیسته او وئی ویل چه مونږ په دروا غو شاهدی ویلی وه نوستاسی عالی مقام څخه هیله کوم چه شرعی حکم او معلومات راکول سی چی یو قاضی دابتدائیه یا مرافعه حکم په طلاق صادر کړی او دا حکم ئی بناءوي پر شهادة الزور ایا دغه طلاق واقع کیږی او که نه ؟

**﴿حافظ محمد ادریس﴾**

**جواب** : کله چه ددروغجنو شاهدانو دشاهدی په وجه قاضی حکم په طلاق وکړی نو مفتٰی به قول دادی چه دغه قضاء ظاهر انافذه ده باطناً نده نافذه معنی یی داده چه کځه هم ظاهراً خود قاضی په امربه ښځه دمیړه څه جلا کیږی لکن که په حقیقت او واقع کی میړه طلاق نوو ورکړی او دهغه وروسته میړه غوښتل چه دغه ښځی ته نزدی سی نو داجائز دی دالله تعالی په نزد عاصی نه گرځی او دښځی دپاره هم نده جائزه چه دبل چاسره پر نکاح باندی اقدام وکړی.

( ويفنــذ القـضـاء بـشـهـادة الـزور ظـاهـر او بـاطـنــا )حـيـث كـان الـمحـل قـابـلا والقـاضـى غيـر عـالم بـزورهم(فـى العقـود) كـبيـع ونـكـاح (والفـسـوخ) كـاقالـة وطـلاق ..... وقـا لاوزفـر والثلاثـة ظـاهـرافقط وعليـه الفتـوى (الدرالختار) نـقـله ايضا فـى القهـستانى عـن الحقـائق وفـى البحـر عـن ابـى الليث الـخ﴿ردالمحتـار صـــ۳۷۰ج ۴ ﴾ لو اثبتـت امـرءة بـشـهـودزور ان زوجهـا طلقهـا ثـلاث طلقات بائنـة وبعد ان استحصلت على الحكم بالطـلاق تزوجت بعد العـدة بـزوج آخـر فيحـل لـه الاسـتمتاع بهـا ولـو علـم بحقيقـة الحـال..... ودليـل نفـاذ القـضـاء علـى هذاالوجـه ظـاهـرا و بـاطنــاهوان رجـلاً ادعـى الـخ﴿دررالحكـام صــ۶۵۹ج ۴﴾

وفی جمیع الامثلة التی سبق بیانها بانه یحل فیها علی رأی الامام الاعظم هی حرام علی رأی الامامین والفتوی علی قول الامامین (دررالحکام صـ۶۶۱ج۴) والمراد بالنفاذ (ای فی صورة النکاح) ظاهرا ان یسلم القاضی المرأة نفسها الی الرجل ویقول سلمی نفسک الیه فانه زوجک وبالنفاذ باطنا ان یحل له وطؤها ویحل لها التمکین فیما بینها وبین الله تعالی (دررالحکام شرح غررالاحکام صـ۴۰۹ج۲) وانما کانت الفتوی علی قولها لظهور ادلتهما بالنسبة الی دلیله (شرنبلالی بهامش دررالحکام شرح غررالاحکام صـ۴۰۹ج۲) والخلاصة ان القاضی فی قول ابی حنیفة ینفذ قضاءه ظاهرا وباطنا حیث کان المحل قابلاً لذلک کالعقود والفسوخ والقاضی غیر عالم بزور الشهود وهذا القول وانکان هو الاوجه فی مذهب الحنفیة الاان المفتی به عند هم هو قول الصاحبین الموافق لبقیة الائمة وهوان قضاء القاضی ینفذ ظاهرا فقط لاباطنا ای لیس الحلال عند الله هو ما قضی به القاضی بل ماوافق الحق (الفقه الاسلامی صـ۵۹۴۶ج۸ ط جدید)

**نوټ**: کله چه قاضی دشاهدانو دشاهدی په وجه حکم صادر کړی او بیا شاهدان دقاضی په حضور کی رجوع وکړی نو هم قاضی مکلّف دی چه خپل حکم به عملی کوی او نقض کوی به ئی نه یعنی دغه ښځه به دمیړه څه جلاکوی نور نو که په حقیقت کی طلاق صادر سوی وو نو دیانةً او قضاءً دواړه به مقاربت ددغه ښځی حرام دی او که په حقیقت کی طلاق نه ؤو صادر سوی نو قضاءً به دغه نزدیکت وښځی ته حرام وی او دیانةً به جائز وی چه دغه معنی دنفاذ دحکم ده ظاهراو باطناً یا یوازی ظاهر افقط خلاصه دا چه دقاضی صادر کړی حکم به دنقض څه ساتل کیږی کڅه هم دشهادة زور پر بناء وی.

اذا رجع الشهود عن شهادتهم بعد الحکم فی حضور القاضی فلا ینقض حکم القاضی (المجلة المـ۱۷۲۹)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## حکومت کولای سي چې خارج ته تلونکي مالونه په خپل هیواد کي تم کړي؟

**سوال** : محترما هغه جنس چه دافغانستان دملک تولید بلل کیږی دمثال په ډول لکه پسونه، وړی، غنم، واښه، کچالو، پیاز یانور اجناس چه دافغانستان تجاران خارج ته انتقالوی او حکومت ئی جبراً بندوی او په خپل ملک کی ورڅخه کار اخلی شرعاً څه حکم لری ایا جواز لری کنه ستا سو دشرعی تحریری حکم په انتظار ؟ ( ملامحمد حسن رحمانی والی قندهار ورئیس تنظیمه )

**جواب** : که چیری ودغه مالونو ته په افغانستان کی داخل شدید ضرورت ؤو او په انتقالولو کی ضرر عام ؤو ددی ملت نو حکومت ته اجازه سته چه ددغه انتقال څه تجاران منع کی لکن پس دمنع څه به تجار په دی نه مکلف کیږی چه په دی نرخ یعنی په یو معین قیمت به خپل مالونه خرڅوی یا به یی په داخل کی دافغانستان په یو معین ولایت کی پلوری او نه به یی مالونو ته هیڅ قسم ضرر او نقصان رسول کیږی او که چیری ضرر عام نوو پکښی نو بیا حکومت ته اجازه نسته چه دانتقال څه یی منع وکی ځکه چه هر سړی په خپل مالونو کی شرعاً اختیار داره دی هر څه چه بـا کوی.

اعلم ان فی جنس هذه المسائل اختلافا حاصله انه لایمنع علی اصل الامام وهو ان کل من تصرف فی خالص ملکه لایمنع منه فی الحکم و ان لحق بالغیر الضرر وافتی بهذه طائفة لکن ترک غالب المتاخرین ذلک فی موضع

یتعدی ضرر تصرفه الی غیره ضرراً بینا و قالوا بالمنع وعلیه الفتوی کما فی کثیر من المعتبرات﴿ غمز عیون البصائر صـ۲۸۲ج۱ ﴾ الضرر یزال..... ویبتنی علی هذه القاعدة کثیر من ابواب الفقه فمن ذلک الخ ومنها منع اتخاذ حانوت للطبخ بین البزازین وکذا کل ضرر عام کذا فی الکافی وغیره الخ ﴿ متن غمز عیون البصائر للحموی صـ۲۷۴ج۱ و صـ۲۸۲ج۱ ﴾ الملک اختصاص بالشیء یمنع الغیر منه ویمکن صاحبه من التصرف فیه ابتداء الالمانع شرعی الخ﴿ الفقه الاسلامی صـ۵۷ج۴ ﴾ لایجوزلاحدان یتصرف فی مال الغیر بلااذنه ﴿ المـ۹۶ ﴾ فتصرف الغیر فی مال الغیر ممنوع الاانتکون وصابة او ولایةً اوتدعو ضرورة فیجوز..... لان الضرورات تستثنی من القواعد العمومیة﴿ شرح المجلة الاتاسی صـ۲۶۲ج۱ ﴾ التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة ﴿ المـ۵۸ ﴾ ولهذا یجب انتکون اوامر السلطان و اولی الامر والنهی موافقة لمصالح الرعیة الخ﴿ شرح المجلة سلیم باز صـ۴۲ ﴾ ولایسعر حاکم لقوله صلی الله علیه وسلم لاتسعروا فان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق الخ ﴿ ردالمحتار صـ۲۸۳ج۵ ﴾ وبناء علیه الاصل عدم التسعیر ولایسعر حاکم علی الناس وهذا متفق علیه بین الفقهاء﴿ الفقه الاسلامی صـ۵۸۸ج۳ ﴾

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک په خپله کوزده خبرسي ووايي(زه دا ښځه نه کوم) بیاووهل سي ووايي(په ثلاثه اوکلماپرماطلاقه ده )طلاق واقع کيږي کنه؟ که طلاق نوکوم طلاق؟

**سوال**: محترما زه خپل یو سوال وتاسو محترم ته وړاندی کوم هیله ده چه شرعی حل ددی سوال راته وکی دوه ورونه دی یو مشردی یو کشر کشر وروږ پر کور نسته مشر وروږ کوزده وروکړه نکاح ئی وتړل لس یا پنځلس ورځی بعد کشر وروږ راغی خبر سو کشر وروږ وویل ولی مو زمابی مصلحته داکار کړی دی دازه نه کوم داخبره داکشر په ماښام کی وکړل ایا په دی خبره دا ښځه دده دنکاح څخه ووتل که نه په سهار ئی بیا داخبری کولی دامشر وروږ واهه نو په داو هلوکی د دردہ وویل چه په ثلاثه او کلما پر ماطلاقه ده ایا دا ښځه واپس وده ته رواکیږی که یا چه نکاح وتړی ایا دده وه اولی خبری ته اعتبار دی که دوهمی خبری ته ؟

**جواب**: که چیری موضوع دغسی وی لکه تاسو چه لیکلی دی او کشر وروږ چه په خپله نکاح خبر سوی وی او دغه کشر وروږ بالغ هم وی نو دستی ئی انکار کړی وی نو دانکاح صحیح نده او همدارنگه یی طلاق ندی واقع سوی ولی طلاق وخپلی ښځی ته ورکول کیږی او دا ښځه دده خپله سوی نده نو دآینده دپاره که ښځه او میره دواړه په نکاح راضی وه او اجازه یی وکړه او نوی نکاح یی وتړل نکاح یی صحیح کیږی او کچیری آینده هم میره ناراضه وو یا ښځه( بالغه )ناراضه وه نو نوی نکاح هم نه صحیح کیږی.

کل تصرف صدرمنه ای من الفضولی تملیکا کان کبیع وتزویج او اسقاطا کطلاق واعتاق وله مجیز ..... انعقد موقوفا ( الدر المختار بهامش ردالمحتار صـ۱۵۱ج ۴ ) هکذافی ( الفتاوی الهندیة صـ۲۹۹ج۱) الزواج الموقوف مع کونه صحیحا لایترتب علیه ای اثر من اثار الزواج قبل اجازته ممن له حق الاجازة ( الفقه الاسلامی صـ۱۰۸ج ۷ هکذافی فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۱۳۷ج ۷ ) واماشرطه ای الطلاق علی الخصوص فشیئان احدهما قیام القید فی المرءة نکاح اوعدة الخ ( الفتاوی الهندیة صـ۳۴۸ج۱ هکذافی الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۵۲ج۲ ) . والله تعالی ﷻ اعلم .

بسم الله الرحمن الرحيم

## ددکان تړه، اودمسجداودس تازه کولوځای اودمسجد دائره (صحن) څه حکم لري؟

(**اول سوال**) یو سړی چه یو خپله شخصی مځکه باندی دوکان جوړ کړی او دروازه پکښی کښيږدی دی تردروازی او چارچوب د باندی یو څه مځکه پاته سی چه ددغه سړی شخصی ملکیت دی خو اوس ددوکان مخی ته تردروازی او چارچوب دباندی خو اته پاته سوه عامی لاری ته یا په اصطلاح راستی او دری گزی ته نو اوس دغه سړی چه دغه مځکه خو دده شخصی ملکیت ؤو خو دوکان تر چارچوب دباندی پاته سو .ایا دی پردغه مځکه خپل تصرف کولای سی چه یا خپل سامان پر کښيږدی یا ئی په کرایه بل چاته ورکړی او یابل څوک استفاده ځنی کوی او دی ئی منع کړی او که دغه مځکه اوس عامه لار بلل کیږی او وقف ده حکم ئی څنگه دی؟

(**دوهم سوال**) دیوه مسجد د اودس تازه کولو په ځای کی یعنی چه دټوله دائری دمسجد په احاطه محاط وی دوکان جوړ کړی وقف گرځیږی یا نه؟

(**دریم سوال**) او یو څوک چه په خپله شخصی مځکه کی مسجد جامع جوړکړی چه دجماعت دځای نه ماورا هغه مځکه ده چه په اصطلاح زائده ورته ویل کیږی چه په احاطه کی محاط دی بلا اختیاره دهغه مسجد جوړوونکی هم په تبعه کی دمسجد وقف کیږی یا نه؟

**د اول سوال جواب**: دغه شخصی مځکه چه ددوکان څه دباندی پاته ده هغه وقت لار کیدلای سی چه مالک یی لاری ته وقف کی او یو سړی پکښی تیر سی پر قول دامام محمد رحمة الله تعالی او بغیر دده دوقفولو څه لار نسی کیدلای فلهذا دغه مالک ته ترمځه دلارکیدو دهر قسم تصرفاتو جواز سته په شرط دعدم ضرر فاحش و نورو خلقو ته.

واذا كان الملک يزول عندهما يزول بالقول عند ابى يوسف رحمه الله تعالى وهو قول الائمة الثلاثة وهو قول اكثر اهل العلم وعلى هذا مشايخ بلخ وفى المنية وعليه الفتوى كذافى فتح القدير وعليه الفتوى كذافى السراج الوهاج وقال محمد رحمة الله تعالى لايزول حتى يجعل للوقف وليا ويسلم اليه ﴿الفتاوى الهندية صـ۳۵۱ج۲﴾ فامارکنه فالالفاظ الخاصة الدالة عليه كذافى البحرالرائق ﴿الفتاوى الهندية صـ۳۵۲ج۲﴾ واذا اشترى الرجل موضعا وجعله طريقا للمسلمين واشهد عليه فانه يصح ويشترط لتمامه مروراحد من المسلمين على قول من يشترط التسليم فى الاوقاف كذافى الظهيرية ﴿الفتاوى الهندية صـ۴۶۸ج۲﴾ . لايمنع احد من التصرف فى ملكه ابدا الا اذا اضر بغيره ضررا فاحشا كما ياتى تفصيله ﴿المجلة المـ۱۱۹۷﴾ .

**د دوهم سوال جواب** : که دغه دکان په اول وقت کی دتعمیرو لو ددغه مسجد او داودسو دځای بناء سوی وی نو پروانلری جائزدی او که هغه ځای تړوله یوه پلا دمسجد یا اودسو تازه کولو دپاره وقف سوی وی او وس یوڅوک دکان پکښی جوړوی نو داجواز نلری.

لو بنى فوقه بيتا للامام لايضر لانه من المصالح امالو تمت المسجدية ثم اراد البناء منع ولو قال عنيت ذلک لم يصدق تاتارخانية ﴿الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۴۰۶ج۳﴾ والفناء تبع المسجد فيكون حكمه حكم المسجد كذافى محيط السرخسى ﴿الفتاوى الهندية صـ۴۶۲ج۲﴾ قيم المسجد لايجوزله ان يبنى حوانيت فى حدالمسجد او فنائه ﴿تاتارخانية صـ۸۶۰ج۵﴾ هكذافى ﴿الفتاوى الهندية صـ۴۶۲ج۲﴾ ﴿امدادالمفتين صـ۷۹۴﴾ وفى البحر الرائق فى المجتبى لايجوز لقيم المسجد ان يبنى حوانيت فى حد المسجد او فنائه (

صـ۲۶۹ج ۵ ) وفی فتح القدیر عن المصنف من کتاب التجنیس قیم المسجد اذا اراد ان یبنی حوانیت فی المسجد او فی فنائه لایجوز له ان یفعل لانه اذا جعل المسجد مسکنا تسقط حرمة المسجد واما الفناء فلانه تبع المسجد ( صـ۴۴۶ج ۵ ) .

ان روایات سے ثابت ہوا کہ مسجد میں بھی اورفناء مسجد (یعنی حصی متعلقہ مسجد مثل وضوخانہ وغیرہ) میں بھی دکانیں بنانا جائز نہیں..... البتہ ابتداء میں مسجد کی تعمیر کی ساتھ۔ قبل مسجد ہونے کے اوپر یا نیچ عمارات متعلقہ مصالح مسجد بنانی کا فقہاء نی ذکر کیا ہے ( امدادالفتاوی ص۔۶۸۸ج ۲ ) .

( **نوټ** ) او داخبره چه دغه دکان وقف ګرځی یا نه دا په نیت پوری دواقف تعلق لری لکه داول او درېیم سوال په جوابونو کی چه واضح سوی ده.

**د درېیم سوال جواب** : تبعاً او ضمناً بلااختیاره مځکه نه وقف کیږی نه دچا دملکیت څه خارجیږی ولی په وقف کی قضاء دقاضی په وقفیت ضروری ده په نزد دامام صاحب رحمة الله تعالی او الفاظ دوقف ضروری دی په نزد دامام ابویوسف صاحب او الفاظ دوقف او تسلیمول ومتولی ته ضروری دی په نزد دامام محمد صاحب رحمة الله تعالی فتوی پر قول دامام ابویوسف ده رحمة الله تعالی خو په ۳ دروسره قولو کی الفاظ دوقف رکن دوقف بلل کیږی.

وانما یزول ملک الواقف عن الوقف عند ابی حنیفة رحمة الله تعالی بالقضاء..... واذا کان الملک یزول عندهما یزول بالقول عند ابی یوسف رحمة الله تعالی وهو قول الائمة الثلاثة وهو قول اکثر اهل العلم وعلی هذا مشایخ بلخ وفی المنیة وعلیه الفتوی کذافی فتح القدیر وعلیه الفتوی کذافی السراج الوهاج وقال محمد رحمة الله تعالی لایزول حتی یجعل للوقف ولیا ویسلم الیه ( الفتاوی الهندیة صـ۳۵۱ج ۲ ) هکذافی ( الدرالمختار وردالمحتار صـ۳۹۵ ) فامارکنه فالالفاظ الخاصة الدالة علیه ( الفتاوی الهندیة صـ۳۵۲ج ۲ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که میریزي ورور دمیراث ناتقسیم سوي مځکه خرڅه کړي دمړي لمسیان حق پکښي لري کنه؟که خپله حصه وګټي په نوره دشفع دعوی کولای سي کنه؟

**(اول سوال)** مسئله په باب کی د میراث: مثلاً محمد دین اکا مځکه درلوده یوه لورئی درلوده یو سړی ته چه میراجان نومیده ورکړی وه محمد دین اکا وفات سو مځکه ومیراجان او دمیراجان ۲ زامنو ته پاته سوله میراجان بل واده وکړی چه یو زوی او دوې لوڼې ئې د دوهم واده څخه دی میراجان او لومړی کور والا دواړه وفات سوه دمیراث څخه مشر زوی دمیراجان نیمی مځکه خرڅه کړه هغه یو هلک او درې خوندې او مورئی چه میراجان دوهم واده کړی ؤو په دغه خرڅ ملک کی حق لری کنه؟

**(دوهم سوال)**: دمیراجان خپله پدری مځکه هم به ده د ... وس د میراجان مشر زوی چه مځکه خرڅه کړه نیمی د میراجان د پدری ملکه څخه ده نسی د محمد دین اکا د میراث څخه ده یعنی اوبه د محمد دین اکا د ملک دی او مځکه د دواړو ملکو څخه ده دغه یتیم او ۳ خوندې او مور په کوم ملک کی حق لری؟

**(دریم سوال)**: او بل که چیری دغه یتیم او ۳ خوندي او مور چه میریزی ورور محمد نبی ئی ملک خرڅ کړی دی حق پیدا کړی د نیمایی یا دریمې دهغه نور ملک دشفعې دعوه کولای سی یا حق لری کیا؟

**داول سوال جواب**: د محمد دین اکا ټوله مځکه دده وزوم میراجان او د هغه وزامنو ته دد شریعت مقدس د نګاه څخه نسی پاتیدلای بلکه لور به هغه خپله حصه یوسی نور نو که د محمد دین اکا په ورثه ؤوکی ذوی الفروض وه هغه به خپلی حصی یوسی او که نه وه نو مال به

د عصبه ؤو کيږی زوم او د لور د خوالمسيان که چيری لور ژوندی وی هيڅ حق نلری وروسته به وګورو که د ميراجان لومړی کوروالا تر مخه وفات سوی وه او ميراجان وروسته وفات سوی ؤو نو دغی وفات سوی کوروالا چه هر څو حصه د پلار د ميراث څه اخيستی وه هغه به ځلور ځايه سی يوه څلورمه يی د ميره يعنی د ميراجان کيږی او باقی ۳ حصی به د ښځی پر خپلو اولادو او ورثه ؤو يعنی ذوی الفروضو او عصبه ويشل کيږی هغه يوه حصه چه ميراجان ته ورسيده هغه حصه به دده د وفات وروسته دهغه پر ټولو ورثه اولادونو تقسيميږی دغه يوه تقسيم سوی حصه که يو زوی خرڅه کی نو هغه نور ورثه بيرته خپل حق راګرځولای سی او هم يی پريښوولای سی که بالغان وه او که صغيران وه نو د دوی په حق کی د سره بيع باطله ده خپل حق به راګرځوی او که ميراجان تر مخه وفات سوی ؤو او لومړی کوروالا يی وروسته وفات سوی وه نو بيا ميراجان او د ده دوهمه کوروالا او دهغی اولادونه هيڅ حق د اولی کوروالا په مځکه کی نلری نه په خرڅه سوی کی نه په پاته کی.

فيبدء باصحاب الفرائض ..... ثم بالعصبات من جهت النسب ..... ثم بالعصبة من جهة السبب الخ ﴿ سراجی صـ۴ ﴾ کل من يدلی الی الميت بشخص لايرث مع وجود ذلک الشخص سوی اولاد الام ﴿ سراجی صـ۱۷ ﴾ واما للزوج فحالتان النصف عند عدم الولدو ولد الابن وان سفل والربع مع الولد او ولد الابن وان سفل﴿ سراجی صـ۷ ﴾ وقف بيع مال الغير ای علی الاجازة ﴿ ردالمحتار صـ۱۵۲ج۴ هکذافی الفتاوی الهندية صـ۱۵۲ج ۳ والفقه الاسلامی صـ۳۷۱ــ۳۷۲ ج۴﴾ والتصرف فی المال( ای مال الصغير )ليس الا للاب او الجد او القاضی اواو صيائهم﴿ الفقه الاسلامی صـ۷۴۹ج ۷ والدرالمنتقی صـ۴۵۴ج ۲ والدرالمختار صـ۲۰۳ج ۲ ﴾.

**د نهم سوال جواب:** كه چيرې د ميراجان اولاد كور والا ترمخه او دی وروسته وفات شوی وي نو د مثلو، ولو، كور والا ته چه د محمد د بن اكـ د مخكې هر څو نه حصه رسيدلې ده د هغه حصې، څلورمه برخه د ميراجان كيږي د ده د مرګ وروسته به يوازې دغه څلورمه برخه د ده په ورثه وو برابر تقسيميږي او په دې طريقه هغه يتيم او دری خوندی او مور ته حصه به كښې رسيږي او كه چيرې ميراجان ترمخه او له كور والا نه وروسته وفات شوی وي نو بيا د محمد د بن اكـ په مخكه كې يتيم ۳ خوندی او د دوی مور ته هيڅ حق نه رسيږي او په دې چه د ميراجان په دې مځكه شول هغه په دواړه صورتو كې د ميراجان دواړو كور والا ژونه او د هغوی اولادونو ته خپلې حصې رسيږي كه په دغه اولادو كې يو راولاړ سی او د نورو ورثه وو حق هم خرڅ كړي نو هغوی كولای سی چه خپل حق راوګرځوی لكه د اول سوال جواب د عبارتونو څخه چه واضح معلومه ده.

**د لسم سوال جواب:** كه د اولی ورځې څخه چه يتيم يا د هغه ولی په دغه بيع خبر سو طلب د خپل حق او د شفع د دواړو كاوه چه زه په دې مځكه كې حق لرم او د نورې مځكې شفيع يم نو حق د شفعې لری او كه يوازې د خپل حق دعوه ئې كړې وي يا ئې يوازې د خپل حق غوښتنه كړې وي او كله چه هغه ترلاسه كې بيا د شفعې دعوه كوی نو هيڅ حق نلری.

يلزم الشفيع ان يقول كلاما يدل على طلب الشفعة فى المجلس الذى سمع فيه عقد البيع فى الحال (المجلة المـ۱۰۲۹) ولو بيعت داربجنب دار رجل هو شفيعها وهو يزعم ان رقبة الدار المبيعة له وهو يخاف انه اذا ادعى رقبتها تبطل شفعته وان ادعى فيها تبطل دعواه فى الرقبة فيقول هذه الدار دارى وانا ادعى رقبتها فان وصلت اليها والا انا على شفعتى لان الجملة كلام واحد فلا يتحقق السكوت عن طلب الشفعة (غمز عيون البصائر صـ۱۹۱ج ۳) والطحطاوى شرح الدرالمختار صـ۱۳۱ج ۴)

والله ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که دچا دمځکې په ځنګ کې پخوانۍ لاره وي او خلک نه وي لاره جوړه کړې له درو کلو وروسته دمځکې مالکان کولای سي چې نوې لاره بنده کړي؟**

**سوال**: ستاسو څخه دلاندي مسئلې په هکله شرعي معلومات غواړو بوه واله چه په ځنګ کی يې د ولی په استقامت لاره هم سته وروسته دغه واله ۲ ځايه سوی ده او ۲ ولي ځني جوړې سوې دي او د ۲ ولو مابين کی زراعتي مځکه سته چه هغه هم د خلقو ملکيت دي او د ۳ کالو راايسې خلق د دغه مابين په مځکه کی تيريږي د دغه ۲ ولو ونورو اطرافو تــه او پخوانی لاره ده دغه ۲ ولو پر غاړه تيره سوی ده چه هغه خلقو پريښې ده اوس پوښتنه دا ده چه دغه د مابين دمځکي مالکان کولای سی چه دغه نوی لاره بنده کړي او خلق مجبوره کی چه پر پخوانی لاره تير سی کنه؟

**جواب**: د مابين دمځکي مالکان کولای سی چه خلق ده دغه نوی لاري څه منع کی او پخوانی لاري ته يې مجبوره کړی ځکه چه په دې مځکه کی دوی لره حق المرور نه دی ثابت سوی او قديم بايد پر خيل قدم پاته سی تر څو چه ضرر بين يا خلاف الشرع شی نوی پکښې ظاهر سوی.

فمرور الرجل في ارض غيره عشرين سنة لايكسبه حق المرور فيها ولو كانت هذه المدة اكثر من المدة المعينة لمرور الزمان..... عللت له بان ذلك التصرف ربما كان عن عارة او اجارة او تغصب والحق الصريح لايثبت بامر مبهم ومشكوك فيه (شرح المجلة سليم باز ص۶۷۱) العبرة للقدم في حق المرور وحق المجرى وحق المسيل يعني تترك هذه الاشياء وتبقى على حالها القديم الذى كانت عليه لان القديم يبقى على حاله بمقتضى حكم مادة ۶ ولايتغير الا ان يقوم الدليل على خلافه اما القديم المخالف للشرع الشريف فلا اعتبار له (المجلة المـ۱۲۲۴) والمراد بالقديم هنا ما لا يوجد من يعرف اوله كما مر في المادة ۱۶۶ (شرح المجلة المـ۱۲۲۴) (سليم باز اللبناني ص۶۷۱).

والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که مور په خپل ژوند کي خپله حصه يوه زوی اود دوولمسيانو ته وبخښي څه حکم دي؟

**سوال** : زما قبله گاه صاحب محمد رحیم تقریباً ۸ کاله مخکی وفات وکړی او بیا ما خپله مځکه او نور سامان څنی جلا کړی او بیا زما مهربانی مور خپله اتمه ځان ته اخیستی وه خو زما په نورو ورونو کښی گډه وه خو زما مور په خپل ژوند کښی وصیت وکړی چه ما اتمه حصه وتور جان ته او ۲ یتیمانو ته بخښلی ده چه هغه یتیمان زما وریرونه کیږی چه پلرونه یی مړه دی او هغه زما ورونه دی خو زمونږ مور دباغ مځکی ټکټر ژرنده او نور سامان په مشترک ملکیت کی حصه نه وه معلومه کړی فلهذا ستاسی دمحترم حضور څخه امید کوم چه په دی حصه کښی معلومات راکړی چه دمشترک شیانو بخښنه کیږی یا نه؟ یتیمان یو ۴ کلن او بل ۱۲ کلن دی؟

**جواب** : محترم مستفتی ته باید وویل سی چه ستا دمور وصیت ستا دپاره جواز او صحت نه لری مگر په هغه صورت کی که دټولو وارثانو خوښه وه او که دبعضی وارثانو خوښه وه او دبعضو نه وه خوښه نو په مال موصی به کی چه څونه حصه وراضی سوو وارثانو ته رسیږی یوازی هغه حصه دی موصی له ته ورکول سی او ستا دمور وصیة ستا دوریرو دپاره بالکل صحت لری ولی هغه ذوی الفروض ندی لکن شرط دادی که ستا مور ددغه اتمی حصی څخه سوا نورمال نه درلودی نو ستا دمور دوفات وروسته به دهغی دمال ۲ حصی وارثان تقسیموی او ۳ حصه به یی هغه ۲ وریرونه سره تقسیموی یا به یی ۲ وریرونه او تورجان سره تقسیموی که نور وارثان هم وتورجان ته په وصیة خوشحاله وه خو یوه خبره ډیره ضروری ده هغه دا چه دوصیة او بخښنی فرق باید وسی که ستا مور داسی ویلی وه چه زما اتمه حصه زما دمرگ وروسته دتورجان او یتیمانو ده نو دا وصیة دی حکم یی هغه دی چه تیر سو او که یی مرگ نوی ویلی بلکه بخښنه یا یو بل دهبی لفظ ئی ویلی وی نو دی ته هبه ویل کیږی حکم

یې دادي که دمور په ژوند کې دغه دمور مال تورجان او وریرو قبض کړی ؤو هبه یې صحیح ده او که یې نوی قبض کړی نو هبه یې نده صحیح بلکه دا مال به وارثان په خپل مابین کې تقسیموي اَو مشترک شیان که قابل دتقسیم وه لکه مځکه، باغ، یا داسې نور که چاته وبخښل سي او بیا تقسیم وسي او دبخښونکې حصه موهوب له ته تسلیم سي او هغه یې قبض کې نو بخښنه ئې صحیح ده او تر دې دمخه نده صحیح او که قابل دتقسیم نوه لکه ټکټر او نور سامان او آلات نو دهغه بخښنه مطلقا صحیح ده که څه هم مشترک وي که حصه معلومه وه.

یشترط لنفاذ الوصیة انلایکون الموصی له وارثا للموصی..... فان اجازبقیة الورثة الوصیة لوارث نفذت الوصیة الخ (الفقه الاسلامی صـ۴۱ج۸ هکذافی تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۸۶ج) اذا اجازبعض الورثة جازعلیه بقدرحصته لو اجازت کل الورثة حتی لو اوصی لرجل بالنصف واجازاحد وارثین مستویین کان للمجیز الربع ولر فیقه الثلث وللموصی له الثلث الاصلی ونصف السدس من قبل المجیز (ردالمحتار صـ۴۶۰ج۵) یملک الموهوب له الموهوب بالقبض (المجلة المـ۸۶۱) فالقبض شرط لثبوت الملک لالصحة الهبة طحطاوی (شرح المجلة سلیم باز صـ۴۷۲) ثم اعلم ان الشیوع المقارن انما یفسد الهبة فیما یحتمل القسمة لافیما لایحتملها فتصح هبة مشاع لایحتمل القسمة بمعنی انه لایبقی منتفعا به بعد القسمة اصلا کالدابة (شرح المجلة سلیم باز صـ۴۷۲) والخلاصة ان الشیوع حالة القبض یمنع صحة الهبة اما حالة العقد فلایمنع صحتها وکذا الشیوع الطارئ لایفسد الهبة وهو کان یرجع الواهب فی نصف الموهوب شائعا (الفقه الاسلامی صـ۱۶ج۵) هکذافی (بدائع الصنائع صـ۱۲۱ج۶).

(**نوټ**): په صورت کی دوصية که وارثان اجازه وکړی چه ټول مال دمور دی وریرۀ ته ورکول سی یا دتی وریرو او تورجان ته ورکول سی نو دا اجازه صحیح ده او داغسی باید وسی او که اجازه ونکی نو وریروته به دمال ددریمی څه خپلی حصی دوصية ورکول سی نور مال به سره تقسیم سی خو وارث چه اجازه کوی شرط یی دادی چه عاقل او بالغ به وی یعنی داصحاب التبرع څه به وی او دا اجازه به یی پس دمرګه دوصیت کوونکی وی.

(ولاتجوز بما زاد على الثلث) بقول النبى عليه السلام فى حديث سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه الثلث والثلث كثير بعد مانفى وصيته بالكل والنصف .... (الا ان يجيزه الورثة بعد موته وهم كبار) لان الامتناع لحقهم و هم اسقطوه (ولامعتبر باجازتهم فى حال حياته) الهداية (فتح القدير صـ۳۴۵ج۹) ويشترط لصحة الاجازة شرطان الاول ان يكون المجيز من اهل التبرع ..... الثانى ان تكون الاجازة بعد موت الموصى الخ (الفقه الاسلامى صـ۴۲ج۸).

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دزور طلاق څنګه ده؟ او دیتیمي ورېږ سرپرستي به څوک کوي؟

(**اول سوال**): دیو سړی خپل اخښیان چه په زوراو ظلم بیله کوم شرعی عذر څخه خپله زوجه په طلاقه کړی ایا په شریعت کی ئی جزاء سته کنه؟

(**دوهم سوال**): خپله سکه وریره چه یتیمه وی او بیا عاقله بالغه سی او په خپل رضائیت او اقرار سره د اکا سره ژوند کوی او ورسره وی او خپل ورور یا ما ماګان ئی په زوره څنیی بوزی ددې حکم څه دی؟

(**دریم سوال**): دپاکستان په عدالت ځای کی چه یو سړی ووهل سی او زوجه په طلاقه کړی پیسی او روپی ئی لوټ او کورئی چورسی ایا دشریعت دنګاه څخه پر دوی باندی تاوان او جزاء سته کنه؟

(**څلورم سوال**): ما دخپل ورور کونده کړی وه وریره می دپلار څخه د ۳ میاشتو یتیمه پاته سوله اوس بالغه ده وښځې ته دطلاق وروسته محکمې ماته وسپارل اوس ئی ورور او ماماګان په زور راڅخه بوتله نجلی په ما راضی ده شریعت څه حکم کوی؟

**د اول سوال جواب**: دغه سړی چه په زور او ظلم(بی له یو واقعی عذره) په بل سړی خپله شرعی منکوحه جبراً طلاقه وی دغه سړی ګنهکار دی او دا ډیره لویه ګناه ده حکومت ته دی حواله سی قاضی به داسی تعزیر ورکوی څنګه چه یی قاضی مناسب بولی.

قال الزیلعی ولیس فی التعزیر شئی مقدر وانما هو مفوضٌ الی رأی الامام علی ما تقتضی جنایتهم فان العقوبة فیه تختلف باختلاف الجنایة فینبغی ان یبلغ غایة التعزیر فی الکبیرة کما اذا اصاب من الاجنبیة کل محرم سوی الجماع الخ( ردالمحتار صـ۱۹۶ج ۳ تبیین الحقائق صـ۲۰۸ج ۳).

**ددوهم اوڅلورم سوال جواب** یو انجلی چه بالغه او عاقله سی بیا دخپل ژوند په حق کی دا اختیار داره ده څرنګه تصمیم چه دانیسی دځان په حق کی سوی له یوازی ژوند کولو څخه او دخپل ژوند او دسکنی په حق کی که د ورور سره ژوند کوی او که د اکا سره لکن که ئی پلار او نیکه ژوندی وه نو هغه به ئی دځان سره ساتی که ښځه بکره وه یا داسی ثیبة وه چه

دخپل نفس څه په امان نه وه او که ئی پلار او نیکه نه وه نو بیا به ورور او اکا او نورو محرمو اقاربو کی کتل کیږی هر څوک چه ښه امین او صالح او ددې په حق کی راستؤ و دغه سره به ژوند کوی.

فلاتثبت الحضانة الا على الطفل اوالمعتوه اما البالغ الرشيد فلا حضانة عليه وهو الذى يختار الاقامة عند من شاء من ابويه فانكان الشخص رجلا فله الا نفراد بنفسه . . . . . وانكان انثى لم يكن لها الانفراد ولا بيها منعها منه (الفقه الاسلامى صـ۷۲۵ج ۷) (وان لم يكن لها اب ولاجدو) لكن(لها اخ وعم فله ضمها ان لم يكن مفسداً وانكان) مفسدا (لا) يمكن من ذلک (الدرالمختار) فيتعين الافتاء بولاية ضمه لكل من يؤ تمن عليه من اقاربه ويقدر على حفظه فان دفع المنكر واجب على كل من قدر عليه لاسيما من يلحقه عاره وذلک ايضا من اعظم صلة الرحم (ردالمحتار صـ۶۹۷ج ۲).

**ددرییم سوال جواب**: یو سړی چه دیو ظالم سلطان یا ظالم حکومت په واسطه دیو چا مال لوټ او چور کی نو دغه ساعی دهغه مال ضامن گرځی په شرط ددی چه دغه مال اخستل او ضرر رسول ټول غیر شرعی او محضاً په ناحقه سره وی او سلطان یا حکومت هم په نه تحقیق او ظلم سره مشهوره وی.

قال فى الو قاية لوسعى بغير حق يضمن عند محمد زجراله وبه يفتى آه ذكر البز دوى انه لوسعى الى السلطان فغرمه روى عن بعض علمائنا انهم افتوا بضمان الساعى وبعضهم فرقوابين سلطان وسلطان بانه اذا كان معروفا بتغريم من سعى اليه ضمن والافلا قال ونحن لانفتى به فانه خلاف اصول اصحابنا اذالسعى سبب محض الاهلاک اذالسلطان يغرمه اختيارالاطبعا ولكن نكل الرأى الى القاضى اذا الموضع مجتهد فيه (مجمع الضمانات صـ۱۵۵)

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که پلار په خپل ژوند کي یو زوی په پټه وصي کړي نوڅه حکم لري؟

**سوال**: دیو سړی دري زامن او پنځه لوڼی وی او دا پلار راولاړ سی په ژوند کی د دانورو زامنو په پټه دایو زوی پسله مرګه دخپلی دریمی وصی کړی چه دغه مال ستادی نو دا وصی توب ددایوه زوی صحی کیږی کنه؟ چه دانور زامن ئی نه وی په خبر نو پدغه کی ستاسی علماؤکرامو څخه معلومات غواړو چه زموږ د قناعت سبب سی ؟

**جواب**: وصیت وخپل وارث ته صحت نلری که چیری نورو ورثةؤو اجازه نه کوله او که نورو ورثهؤو هم اجازه وکړل او ده هغو خوښه سول بیا نو دغه وصیت صحیح کیږی خو اجازه ده نورو و ـ ثهؤو دوه شرطه غواړی یو دا چی اجازه کوونکی وارث به عاقل بالغ غیر محجور علیه او عالم په موصی به سره وی بل دا چه دا اجازة به پس د مرګه دوصیت کونکی وی.

يشترط لنفاذ الوصية الايكون الموصى له وارثا للموصى ..... فان اجاز بقية الورثة الوصية لوارث نفذت الوصية الخ ﴿ الفقه الاسلامی صـ۴۱ج ۸ هکذافی تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۲۸۶ج ۲ ﴾ ويشترط لصحة الاجازة شرطان الاول انيكون المجيز من اهل التبرع..... الثانی انتكون الاجازة بعد موت الموصى الخ ﴿ الفقه الاسلامی صـ۴۲ج ۸ ﴾.

او که بعض ورثةؤو اجازة وکړه او بعضو نه کول نو دهغه بعضو په حصة کی چه اجازه یی کړی ده صحیح دی او دهغو بعضو په حصه کی چه اجازه یی نده کړی نه دی صحیح.

اذا اجاز بعض الورثة جاز عليه بقدر حصته لو اجازت كل الورثة حتى لوا وصى لرجل بالنصف واجاز احد وارثين مستويين كان للمجيز الربع ولم فيقه الثلث وللموصى له الثلث الاصلى ونصف السدس من قبل المجيز ﴿ ردالمحتار صـ۴۶۰ج ۵ ﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که وروړ دخوړ حق نه وي ورکړي اوله مورثې څخه سرای خپلې ښځې ته په مهر کي ورکړي دا ښځه ئې له يوڅه عوضه سره بيا بل چاته هبه کولای سي کنه؟

**سوال**: عرض دادی چه يو شخص چه دپلار ميراث ورته پاته دی او يوه خور لری وهغی ته ئی حق ندی ورجلاکړی دغه شخص دپلار دمال متروکه څخه ويوی ښځی ته په مهر کی يو سرای چه حدود يی هم معلوم کړی دی سره ده پنځوس زره کالداری ورکړی سوال دادی چه دغه مشترکه سرای ملکيت يی وهغی ښځی ته ثابتيږی کيا او دغه ښځه دغه مذکور سرای وچاته هبه کولای سی کيا او که ئی هبه کی او موهوب لـه څه شی په عوض کی واهب تـه ورکی څه حکم دی؟

**جواب**: مسئله داده چه په مشترک مال کی چه هر څوک تصرف کوی دهغـه بل شريک څه بـه حتماً اجازه اخلی يوازی پـه خپلـه حصه کی تصرف کـولای سی پـه شرط ددی چـه دهغـه بـل شريک حصی تـه بـه ضرر نـه رسوی او يو شريک د بـل شريک پـه حصه کی بيگانـه دی کـه يی دشريک اجازه وه نو وکالۀ دهغه په حصه کی تصرف کولای سی او که يی اجازه نوه نـو تـصرف کول ورته حرام دی او دغه سرای او نقدی کالداری چه دمشترک مال څه يـوه شريک پـه مهر کی ښځی تـه ورکړی دی دده دخپـل حصی پـه اندازه يی ورکړه صحيح ده او ښځه هم دهغـه حصی مالکه گرځيدلای سی او که يی دخور حصه هم پکښی ورکړی وه دخور بی اجازی نـو دخور دحصی په اندازه يی ورکړه نده صحيح او نه هغه ښځه دخور دحصی مالکه گرځيدلای سی فلهذا دهغه حصی بيع او هبه هغی ښځی ته حرامه گرځي او که فرضاً دخور حصه دخور بی اجازی دغه سړی په مهر کی ورکړی وی او دهغـه ښځی څه هلاکه سوی وی نو دغـه وروړ دهغونه مقدار ضامن دی خپلی خور ته به يی قيمت ورکوی.

کيفما يتصرف صاحب الملک المستقل بملکه يتصرف ايضاً فی الملک المشترک اصحابه بالاتفاق کذلک (المـ۱۰۶۹) التقييد باتفاق الشرکاء لافادة انه ليس لاحدهم التصرف فی المال المشترک بلا اذن الباقين لان

شرکة الملک لاتتضمن الوکالة فکان کل واحد منهم اجنبيا فی حصة غيره (شرح المجلة الاتاسی صـ۱۱ج۴) لاحد اصحاب الحصص التصرف مستقلا فی الملک المشترک باذن الاخر لکن لايجوزله ان يتصرف تصرفا مضرا بالشريک (المجلة المـ۱۰۷۱) کل من الشرکاء فی شرکة الملک اجنبی فی حصة سائرهم فليس احدهم وکيلا عن الاخر ولايجوزله من ثم ان يتصرف فی حصة شريکه بدون اذنه (المجلة المـ۱۰۷۵ هکذافی الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۳۶۵ج۳).

حصة احد الشريکين فی حکم الوديعة فی يد الاخر فاذا اودع احدهما مال الشترک عند آخر بدون اذن فتلف کان ضامنا حصة شريکه راجع مادة ۷۹۰ (المجلة المـ۱۰۸۷).

او دهبی په هکله بايد ووايو هغه حصه چه دغه ښځی ته په مهر کی رسيدلی ده دهغه حصی هبه کولای سی بل چاته پدی شرط چه تقسيم به کوی په موهوب له کی يعنی که دغه واهبه ښځه په دغه سرای کی خپله تقسيم وکړی يا موهوب له ته اجازه وکړی دتقسيم او هغوی هم تقسيم وکړی نو هبة صحيح ده او که نه واهب تقسيم وکړی او نه موهوب له ته دتقسيم اجازه ورکړی نو دغه هبه يی صحت نلری که موهوب له تقسيم کړی وی که نوی او که موهوب له ځه شی په عوض کی واهب ته ورکړی نو که دغه عوض په هبة کی شرط سوی ؤو او هبة صحيح سوی وه په وجه دتقسيم او موهوب له موهوب شی قبض کی او واهب عوض قبض کړی نو هبة تامه سوه نه واهب حق درجوع لری نه موهوب له او که هبة نوه صحيح سوی نو واهب ته بايد خپل موهوب ورسيږی او موهوب له ته خپل عوض تسليم سی او که دغه عوض په هبة کی نوو شرط سوی بلکه دهبة دتمام وروسته يی ورکی او په دی يی تصريح کړی وه چه داستا دهبی عوض دی نو دغه عوض حکم دنوی هبی لری تول هغه شروط دهبی پکښی معتبر دی لکن داولی هبی صاحب يعنی واهب ته حق درجوع سته او ددوهمی هبی واهب ته حق درجوع نسته.

(و) شرائط صحتها (فی الموهوب انیکون مقبوصا غیر مشاع )الدرالمختار قوله مشاع ای فیما یقسم کما یاتی (ردالمحتار صـ۵۶۷ج ۴) هکذافی (الفتاوی الهندیة صـ۳۷۴ج ۴) و(بدائع الصنائع صـ۱۱۹ج ۶) ویشترط انیکون الموهوب مقسوما ومفرزاوقت القبض لاوقت الهبة (الفتاوی الهندیة صـ۳۷۷ج ۴) لکن ان قسم الواهب الجزء الموهوب المشاع بنفسه اوبواسطة نائبه وسلمه الی الموهوب له صح العقد لزوال المانع وکذالو امر الموهوب له ان یقسم مع شریکه (ردالمحتار) امالو سلمه شائعا فلا یملکه الموهوب له ولاینفذ تصرفه فیه بل یکون مضمونا علیه وینفذ فیه تصرف الواهب درر (شرح المجلة سلیم باز صـ۴۷۳) فانکانت الهبة بشرط العوضْ شرط لها شرائط الهبة فی الابتداء..... وبعد التقابض یثبت لها حکم البیع فلایکون لاحدهما ان یرجع فیما کان له (الفتاوی الهندیة صـ۳۹۴ج ۴) وفی الخانیة بعث الی امرءته هدایا وعوضته المرأة وزفت الیه ثم فارقها فادعی الزوج ان مابعثه عاریة واراد ان یسترد وارادت المرءة ان تسترد العوضْ فالقول للزوج فی متاعه لانه انکر التملیک وللمرءة ان تسترد ما بعثته اذ تزعم انه عوضْ للهبة فاذالم یکن ذلک هبة لم یکن هذا عوضاً فلکل منهما استرداد متاعه (ردالمحتار صـ۵۷۶ج ۴).

اما العوضْ المتاخر عن العقد..... فله شرائط ثلاثة الاول مقابلة العوضْ بالهبة وهو انیکون التعویض بلفظ یدل علی المقابلة نحوان یقول هذا عوضْ عن هبتک الخ (الفتاوی الهندیة صـ۳۹۳ج ۴) فالتعویض المتاخر عن الهبة هبة مبتدءة بلاخلاف بین اصحابنا یصح بما تصح به الهبة ویبطل بما تبطل به الهبة لایخالفها الافی اسقاط الرجوع علی معنی انه یثبت حق الرجوع فی الاولی ولایثبت فی الثانیة فاما فیما وراء ذلک فهو فی حکم هبة مبتدءة (الفتاوی الهندیة صـ۳۹۴ج ۴).

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## ژوندي تاژان په اور کبابول اودهغوئ خوړل مباح دي که حرام؟

**سوال**: وبعد مسئله داده چه دسختی گرمی په موسم کی زموږ په منطقه کی یو نوع حیوانات له مځکی څخه راوزی چه ودغو حیوانات ته غیز ویل کیږی نو دغه حیوانات چه له مځکی څخه راووزی په یو بوټی پوری ونښلی چه له دغی غیز څخه بیا یو حیوان پیدا سی په داسی کیفیت سره چه هر اندام ئی دغیز له اندام څخه راجدا سی بالاخر دغه غیز خالی پوستوکی بی حسه پاته شی چه ودغه متولد حیوان ته تاز ویل کیږی دغه تاز بیا نوری عموماً پر درختو ناسته کوی ظاهرا داسی معلومیږی چه دکوم شی خوراک نه کوی دغه تاز دومره په کثرت سره وی چه ددرختو ښاخونه ئی پټ کړی وی دسهار په وخت کی چه انسان نسی کولای نو خلگ ئی له درختو څخه څنډی بیا هم دغسی ژوندی په اور کبابه وی او خوری ئی نو اوس پوښتنه داده چه دغه سوزل جائز دی یا نه او خوړل ئی حلال دی یا حرام بینو بالدلائل الشریعة تو جروا ؟

(مولوی محمدهاشم داعلی جرگی دکلی دمعروف ولسوالی دقندهار ولایت)

**جواب** دغه غیز او تاز که چیری دجراد (مَلَخْ) دانواعو څخه یو نوع وی نو بیی خوراک جائز او مباح دی او که دحشرات الارض دقسمه څخه وی نو بیا یی خوراک مباح نه دی پر هر تقدیر ژوندی سوځل دحیوان مباح نه دی لکن دعلاماتو څخه ددغه حیوان چه په عربی کی زِیْز ورته وایی داسی معلومیږی چه دا دجراد دانواعو څه نه دی ډیری علاماتی ئی ورسره فرق لری او همدارنگه دبعضی علماؤ نظر هم دادی چه دا حیوان دحشرات الارض یو قسم دی نو څکه باید فتوی پر حرمت ورکول سی علامات فارقة د زِیْز او جراد په مابین کی دادی [1] ونزیز ډیر پزوره اواز کوی خلاف له جراد څخه [2] دوهم زِیْز دهگی څه دچینجی په شکل راوزی وروسته بیا په خپل عادی شکل کیږی او مَلَخْ اول واری په خپل عادی شکل راوزی [3] دریم د

زیز خوراک دزیبنلو په طریقه وی او دجراد ده دخوړلو په طریقه ۴ څلورم دجراد وزر دهغه دبدن په استقامة سره راشروع سوی وی چه په عربی کی ورته مستقیمة الاجنحة ویل کیږی او د زیز وزر دهغه دبدن دنیمایی څخه وی چه ورته نصفیة الاجنحة ویل کیږی.

ولایحل ذوناب یصید..... ولاالحشرات هی صغاردواب الارض واحد حشرة (الدرالختار) كالفارة والوزغة وسام ابرص والقنفذ والحية والضفدع والزنبور الخ ﴿ ردالمحتار صـ۲۱۴ج ۵ ﴾ وكل مالادم له فهو مكروه اكله الاالجراد كالزنبور والذباب ﴿ ردالمحتار صـ۲۱۵ج ۵ ﴾ وحل الجراد وان مات حتف انفه ﴿ الدرالمختار صـ۲۱۶ج ۵ ﴾.

لغت میں زیز اور جراد کی تعریف اور جراد کی اقسام دیکھنی سے معلوم ہوتا ہیں کہ زیز جراد سے علیحدہ جنس کا کیڑا ہیں لہذا یہ حلال نہیں.

ولاباس بقتل الجراد لانه صيد..... ويكره حرقها كذافى السراجية.. ... واحراق القمل والعقرب بالنار مكروه ﴿ الفتاوى الهندية صـ۳۶۱ج ۵ ﴾ كل مكروه اى كراهة تحريم حرام اى كالحرام فى العقوبة بالنار (الدرالمختار) قوله اى كراهة تحريم وهي المرادة عند الاطلاق كما فى الشرع وقيده بما اذا كان في باب الحظر والاباحة ﴿ ردالمحتار صـ۲۳۷ج ۵ ﴾.

او همدارنگه دعلم لغة علماء جراد سره دبونو نوعو په مستقیمات الاجنحة کی ذکر کوی او زیز په نصفیات الاجنحه کی ذکر کوی چه دا هم دلیل ددی دی چه جراد او زیز سره مخالف حیوانات دی.

جرادج جراد (ح) دويبة من مستقيمات الاجنحة انواعها عديدة تختلف باختلاف الشكل والحجم الخ ﴿ المنجد حيم وراء صـ۸۶ ﴾ الزيزج زيزان (ح) حشرة من فصيلة الزيزيات ورتبة نصفيات الاجنحة الخ ﴿ المنجد زاء وياء صـ۳۱۴ ﴾

والله تعالى جلّ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## په اسپيکر کي لمونځ کول جائزدي کنه؟

**سوال** : ايا په گويا کی لمونځ ورکول شرعاً جواز لری کنه ؟ (بينوا توجروا)

**جواب** : لمونځ ورکول په گويا کی پداسی طريقه سره لکه نن چه مروجه ده چه دامام اواز په توله محله يا ښار کی اوريدل کيږی ناجائز او بد عمل دی او مفضی دی وحرام ته کښه هم دلمانځه اعاده ضروری نده په لاندی وجوهو سره:

( **اول** ) جهر کول زايد تر حاجة دجماعة اساءة دی او اساءة ترمکروه تنزيهی پورته او تر مکروه تحريمی لاندی درجة ده.

( **دوهم** )لمونځ په گويا کی کښه هم دبعضی علماء په نزد جائز دی لکن ډير علماء يی ناجائز بولی.

( **دريم** ) نور خلق چه په نورو مساجدو يا کورونو کی په لمونځ يا ذکر يا نورو اشغالو مصروف وی دهغو دتشويش او ايذاء باعث گرځی.

( **څلورم** ) په دې کی يو نوعه دتوهين دقرآن کريم ده ځکه چه ډير خلق يی اوری او سمع يی نکوی يائی نسی کولای.

( **پنځم** ) مخالفت دی ددی آية کريمة سره ولاتجهربصلاتك ولاتخافت بها وابتغ بين ذلك سبيلاً .

فــصل ويجهــر الامــام وجوبابحــسب الجماعــة فــان زاد عليــه اسـاء (الـدرالمختار) وفـی الزاهـدی عـن ابـی جعفـر لـوزادعلی الحاجـة فهـو افـضل الااذا اجهد نفسه اوآذی غيره قهستانی (ردالمحتار صـ٣٥٧ج١) البته جهر مين تكليف كرانا يا اتنا جهر كه نمازمين تشويش كا باعث بنی يا كسی كی لئی باعث ايذاء هونا جائز هی(احسن الفتاوی صـ٧٨ج٣ هكذافی فتاوی دارالعلوم ديوبند صـ١٧٩ج٢) .

نماز میں آلہ مکبرالصوت کی استعمال مین بہت سے مفاسد ہیں اس لئے اس سے اجتناب کیا جائے اور سنت سیدھی سادی طریقے پر آواز کو دور تک پہنچانی کیلئے مکبرین کا انتظام کیا جائے لیکن اگر کسی جگہ آلہ مکبرالصوت پر نماز ادا کر لی تو نماز فاسد واجب الاعادہ نہیں ہے اور استعمال کرنیوالوں کو کم ازکم یہ لازم ہے کہ مکبرین کا پورا انتظام رکھیں کیونکہ علماء کی ایک جماعت اس کو مفسد قرار دیتی ہے ان کی خلاف سے خروج کی فکر کرنا چاہئے (آلات جدیدة ص۔۳۳).

لایقرء جهرا عند المشتغلین بالاعمال ومن حرمة القران ان لایقرء فی الاسواق وفی موضع اللغو (الفتاوی الهندیة صـ۳۱۶ج۵) رجل یکتب الفقه وبجنبه رجل یقرء القرآن ولایمکنه استماع القرآن کان الاثم علی القاری ولاشیء علی الکاتب وعلی هذا لوقرء علی السطح فی اللیل جهراً یاثم کذا فی الغرائب (الفتاوی الهندیة صـ۳۱۸ج۵).

لکن قد منافی اول بحث سنن الصلاة اختلاف عباراتهم فی ان الاساءة دون الکراهة او افحش منها وو فقنا بینها بانها دون کراهة التحریم وافحش من کراهة التنزیه فراجعه (ردالمحتار صـ۳۸۱ج۱ ط بیروت وصـ۳۱۹ج۱).

البته که پورتنی وجوه او موانع نوه او ده گویا اوازیوازی دجماعة په اندازه وودمسجد څه دباندی نه اوریده کیدی او ضرورة و دغه گویا ته موجود ؤ نو بیا څه پروا نلری په لمانځه کی ډیر زیات احتیاط ضروری دی زیات کوشش باید وسی چه پر طریقه مسنونه ادا سی او داخبره خو ډیره واضحه ده چه بې ضرورت شدیده په گویا کی لمونځ کول دذکر سوی دلائلو سره سره غالباً پر ریاء او نفسانی خواهشاتو بناء وی او هغه تضرّع او خلوص ددین خاص الله تعالی لره پکښې فوت سوی وی فلهذا اجتناب ځنی لازم دی او پر مسئولینو دا لازمه ده چه ددغسې ښکاره او واضح منکراتو او بدعتونو دمخنیوی لپاره مؤثر اقدامات وکړي.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## زما دپلار په منقول اوغیرمنقول جایداد زماعمه دعوه کولای سي کنه؟

( **اول سوال** ): زما عمه وایي چه زه ستا دپلار سره حق لرم دا وایي چه زما دپلار څخه چه ستا نیکه کیږي یو باغ یوه سراچه او جایداد منقوله نقدي پیسي پاته سویدي چه پیسي خوړل سویدي باغ او سراچه زما په اذن او اجازه حاجي دادمحمد خرڅ کړیدي چه ستا پلار او زما ورور دی دجایداد غیر منقول چه خرڅ سویدي پیسي په تجارت کی ډیری سویدي پوښتنه داسی ده چه اوس د دی حق د جایداد ، باغ، او سراچه په دریمه حصه حق کیږي او که د اوس په پیسو کی ؟

( **دوهم سوأل** ): که بالفرض ددی حق داوس په پیسو کی سی زما پلار حاجی دادمحمد مذکور تخمین ۱۹ کال کیږي چه فوت سویدی او دباغ او سراچی مذکور دخرڅ تخمین ۴۵ کاله کیږي مونږ دحاجی دادمحمد مرحوم اولاده ۱۲ تنه حصص حقدرای لرو دپورته تجارت مال چه زما مرحوم پلار په چلاؤ او گردش باندی اچولی دی او هم ۱۹ کاله مونږ دخپل پلار تر وفات وروسته په گردش او چلاو اچولی دی ددی په دریمه کښی زمونږ د ۱۲ تنو وارثانو حق څنگه دی آیا سته او که نه ؟ که چیری سته نو په کوم حصص باندی حقداری زمونږ دورثه ؤو کیږي هیله ده چه محترم مقام پورته معلومات دمسئلی په خط راته ولیکی ؟

**داول سوال جواب** : دغه تجارت کچیری پلار بی اجازی دعمه کړی ؤو نو هر څه گټه چه پلار کړی ده عمه په هغه کی اشتراک نلری بلکه هر څه چه دپلار څخه پاته دی که نقدی دی که خرڅ سوی شیان دی یوازی په هغه کی دخپلی حصی حقداره ده لکن دغه گټه چه پلار کړیده پلار ته ښه نده بلکه خیراتوی به ئی په مذهب دحضرت امام صاحب مبارک رحمة الله تعالی او که ئی دعمه په اجازه کړی وی او پلار دغه تجارت یعنی بیع او شراء یوازی دځان دپاره کړی وی نو بیا گټه ورده ته ښه ده.

سئلت عن ورثة لهم مال ورثوه من مورثهم فعمل فيه احدهم بدون اذن الباقين فربح فهل لايكون الربح بينه وبين سائر الورثة فالجواب نعم لايكون لهم فيه حظ ولايطيب له الربح ويتصدق به عندهما وعند ابی یوسف رحمه الله تعالى يطيب له الربح ‹ الفتاوی الكاملية صـ٥٣ › وكل اجنبی فی قسط صاحبه ــ ای كلواحد منهما اجنبی فی نصيب صاحبه حتی لایجوزله ان يتصرف فيه الاباذنه‹ تبيين الحقائق صـ٣١٢ج ٣ ›.

**ددوهم سوال جواب**: داول سوال څه دا معلومه سوه چه عمه د اوس په پیسو کی حق نلری نو څکه نور تفصیل ته ضرورت نسته.

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دحیلي په ډول لږمځکه چاته وبخښې شفع بندیږي کنه؟ که شفع ثابته سي کوم نرخ معتبردی؟ دخرڅ دورځې که دنن؟

(**اول سوال**): محترما زما او داکا زوی مځکی سره موښتی دی یعنی زه ئی شفیع یم او دعوی دشفعی می هم کړی ده اوس زما داکا زوی غواړی چه دا خپله مځکه پر بیگانه سړی باندی خرڅه کړی اول ئی زما او دخپلی مځکی تر مابین یوه ټوټه مځکه ودی بیگانه ته ورهبه کړه دپاره دیو حیلی چه ماد شفعی د دعوی څخه وباسی بیائی باندی خرڅه کړی اوس سوال دادی داهبه وبیگانه ته زما دشفع دباطله ولو دپاره اعتبار لری کنه؟

(**دوهم سوال**) داچه که ئی زد دشفعی دعوه گیر سم نو دغه بائع پر ما دنن ورځی دنرخ حق لری او که هغه قیمت چه بیگانه خریدار ئی په خوله ادعاء کوی؟

**داول سوال جواب**: که چیری دغه هبه بیگانه ته بلاعوضه سوی وی او دغه هبه شرعی ثبوت ولری نو دشفیع حق دشفعې باطلیږی ځکه چه موهوب له شریک په حقوقو کي دمځکي گرځي داصلي مالک سره او شفیع یوازی همسایه توب لری دمالک سره او شریک دحقوقو مقدم وی په شفعه کی تر همسایه

وان باعها ای الدار الاذراعا ای مقدار ذراع من طول الجدار الذی یلی جانب الشفیع فلا شفعة له لان الاستحقاق بالجوار ولم یوجد الاتصال بالمبیع وکذ الو وهب هذالقدر للمشتری لعدم الالتزاق ﴿مجمع الانهر صـ۴۸۵ج ۲﴾ هکذافی ﴿الفتاوی الهندیه صـ۱۸۹ج ۵﴾ وفیها. واذا قامت البینة علی الهبة قبل الشراء فان صاحبها اولی بالشفعة من الجار کذافی المحیط الخ ﴿الهندیة صـ۱۸۹ج۵﴾.

**ددوهم سوال جواب**: کله چه دشفیع او مشتری په مابین کی اختلاف په قیمت کی راسی او مشتری پر ډیر قیمة اصرار کوی او شفیع دلږ قیمة ادعاء ولری نو وبه گورو که چیری مشتری بائع ته قیمة ورتسلیم کړی ؤو او مبیعه ئی تسلیم کړی وه نو کچیری شفیع پر خپله ادعا شاهدان نه درلوده دمشتری قول معتبر دی پس له قسم اخستلو څخه او شفیع حق دقسم اخستلو نلری او کچیری قیمة بائع ته نؤو تسلیم سوی نو قول دبائع معتبر دی.

وان اختلف الشفيع والمشتری فی الثمن والدار مقبوضة والثمن منقود صدق المشتری بیمینه لانه منکر ولایتحالفان وان برهنا فالشفیع احق لان بینته ملزمة ( الدرالمختار) وقال ط وقد یقال ان الثمن انکان غیر منقود یرجع الی البائع فیؤخذ بقوله انکان اقل ممایدعیه المشتری ویکون حطا (ردالمحتار صــ۱۴۶ج ۵ بیروت ) هکذافی ( الهندیة صــ۱۸۵ج ۵ الهدایة صــ۳۹۵ج ۴ ) و ( مجمع الانهر صــ۴۷۶ج ۲ ) و ( الفقه الاسلامی صــ۸۱۵ج ۵ ) الشریک فی المبیع اولاثم الشریک فی حق المبیع ( حق الارتفاق ) ثم الجار ( الفقه السلامی صـ۸۰۵ج ۵ المجلة المـ۱۰۰۹ ) .

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که پلار دمځکې قباله دځلورو زامنو په نوم**
**جوړه کړې پنځم له حقه وباسي له وفات وروسته پنځم حق پکښې لري کنه؟**

**سوال** : يو سړی ۵ زامن لری دخپل سرای قباله ئی ده ۴ زامنو پر نامه کړیده پنځم زوی ئی دحقه ایستلی دی نور ۴ زامن ئی اسناد او شاهدان لری یا نلری اوس دغه پنځم زوی دپلار په جایداد کی پس له مرګه دپلار حق لری کنه ؟

**جواب** : دلته ۲ خبری دی اوله خبر داده چه قباله ده یو چاپر نامه جوړول بغیر له قبضه دلیل دهبی نه ګرځی یعنی که یو څوک ده خپل زوی یا زوجی یا بل چا پرنامه قباله جوړه کی او بیا هغه هبه سوی سرای یا مځکه ورته تسلیم کی او هغه یی قبض کی او مالکانه تصرف پکښی وکی نو هبه تامه سوی او ده هغه چا ملکیت ګرځی چه قباله یی پرنامه جوړه سوی ده او که هغه موهوب له دغه مذکور مال نوی قبض کړی نو دا ملکیت نه ثابتیږی حاصل داچه دغه ۴ زامن چه مستفتی ویلی دی که یی خپل سرای دپلار په ژوند کی قبض کړی ؤو او تصرف

مالکانه یې پکښې کړې ؤو نو دوی ده دغه سرای مالکان ګرځي او که نوی نو سرای به د میراث په ډول د ټولو ورثه ؤو تر مابین تقسیمیږی بله خبره داده چه ده یوه زوی محرومه کول کچیری دغه زوی فاسق او ظالم وی نو رواکار دی ځکه چه اعانت پر معصیت رانسی او که دغه زوی صالح سړی وی نو بیا د پلار د پاره دا یو لویه ګناه ده چه محرومه کوی یې او سره ددې جه ګناه ده بیا هم دی حق په سرای کی نلری که هغه نورو زامنو مالکانه تصرف د پلار په ژوند کی په سرای کی کړې ؤو

دفع لابنه ما لایتصرف فیه ففعل وکثر ذلک فمات الاب ان اعطاه هبة فالکل له والا فمیراث (الدرالمختار بهامش ردالمحتار ص۵۸۲ ج ۴) یملک الموهوب له الموهوب بالقبض فالقبض شرط لثبوت الملک (شرح المجلة سلیم باز ص۴۷۳) رجل وهب فی صحته کل المال للولد جاز فی القضاء ویکون آثما فیما صنع کذا فی فتاوی قاضیخان وان کان فی ولده فاسق لاینبغی ان یعطیه اکثر من قوته کیلا یصیر معینا فی المعصیة کذافی خزانة المفتین ولو کان ولده فاسقا واراد ان یصرف ماله الی وجوه الخیر ویحرمه عن المیراث هذا خیر من ترکه کذافی الخلاصة (عالمگیری نو لکشوری ص۱۰۶۴ - ۱۰۶۵ ج ۳ امداد الفتاوی ص۴۷۱ ج ۳)

والله تعالی اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که قاتل دچاپه قتل له محکمې دباندې اقرار وکړي ، په محکمه کي منکرسي، دده داقرار شاهدان په محکمه کي شاهدي اداء کړي بيانورشاهدان شاهدي ورکړي چې دمقتول وارثانو دعفوي اقرارکړي کوم شاهدان منظوردي؟

**سوال** : یکنفر نفر دیگری بقتل رسانده ودرحضور چند نفر خارج محکمه اقرار نموده که فلان مقتول من بقتل رسانده ودر محکمه منکر میشود شاهدان اقرار او در محکمه براقرار او شاهدی ادا میکند که این قاتل درحضور مایان اقرار نمود که فلان مقتول من به قتل رساندم بعداً قاتل مذکور چند نفر شاهدان حاضر محکمه میکند وشاهدان ادای شهادت میکند که ورثهٔ مقتول درحضور مایان شاهدان بقاتل مذکور از دعوی قتل قتیل مذکور عفوی نموده وابراء داده اکنون کدام شاهدان احق بالترجیح میباشند وقاتل مذکور قصاص میشود یانه ؟ خواهان فتوی میباشم ؟ بینوا توجروا ﴿محکمهٔ ابتدائیه ولایت قندهار﴾

**جــواب** : باید گفته شود که دراینجا بترجیح بعضی شاهدان بر بعض دیگر هیچ ضرورت نیست زیراکه بترجیح آنجا ضرورت میباشد که بین آنها تعارض آمده باشد واینجا تعارض نیست بلکه بینـهٔ عفو مؤیـد بینـهٔ اقرار است زیراکه اگر جنایت واقع شده نباشد پس بعفو ضرورت نمیباشد – محصول هر دو از بینهٔ اقرار وبینهٔ عفو ثبوت جنایة میباشد پس بترجیح هیچ ضرورت نیست واینکه قاتل قصاص میشود یانه باید بگوئیم که اگر عفو نزد قاضی ثابت شده باشد وقاضی شهود عفورا قبول کرده باشد قصاص نمیشود زیراکه عفو از مسقطات قصاص میباشد واقرار درخارج از محکمه اگر درحقوق العباد میباشد قبول میشود واگر درحقوق الله تعالی میباشد قبول نمیشود. واما حق العبد فهو المال من العين والدين والنسب والقصاص والطلاق والعتاق ونحوها ولايشترط لصحة الاقراربها مايشترط لصحة الاقراربحقوق الله تعالى وهي ماذكرنا من العدد ومجلس القضاء والعبادة الخ ﴿بدائع الصنائع صـ۲۲۳ج۷﴾ واما حقوق العباد فانواع منها حق طلب واستيفاء القصاص او الدية ...... ولايشترط لصحة الاقراربهذه الحقوق الفردية مايشترط للاقراربحقوق الله تعالى من التعدد وكونه في مجلس القضاء والنطق بعبارة صريحة الخ ﴿الفقه الاسلامي صـ۶۱۹ج۶﴾ يترتب على العفو عن القاتل عنه الحنفية والمالكية اسقاط القصاص مجاناً..... فانكان العفو مطلقاً ترتب عليه عصمة دم القاتل فلو رجع عن عفوه وقتل القاتل اعتبر الولي قاتلاً عمداً ﴿الفقه الاسلامي صـ۲۹۰ج۶﴾ والله تعالى اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمیراث مځکه مي وګټله نیم ملک ئې راتسلیم کړ نیم پاته دپاته ملک دتیروکلونوحاصل زماحق کیږي کنه؟

**سوال**: فضیلت مآب زما او دمحمد ایوب چه دالله داد زوی دی دبل اکاپر میراث باندی مو دعوه وه چه هغه اکامو وفات سو. او میراث ئی ما اختر محمد او محمد ایوب نامی ته پاته سوه. ماد محمد ایوب سره ټولې محکمې تر ثلاثه محمکی تر نهائی پریکړی پوری کړیدی هغه زما په ګټه صادري سوي دي نیم ملک ماته سپارل سوی دی زه دخپل ملک دتیرو کلو دحاصلاتو غوښتونکي یم نو مي موضوع عرض کړه هیله ده چه وماته شرعي فتوی راکړی چه زه حق لرم که یا ؟

**جواب**: که دغه مځکه واقعاً مستفتی ته پاته سوی وی په میراث او بیا محمد ایوب په ناحقه دده څخه ګرځولی وی او اوس محکمي مستفتي ته ور کړی وی نو د تیرو کلو دحصول حق پر محمد ایوب شرعاً نه لري لکن که دغه مځکه د اکا د وفات په وخت کی اجاري ته اماده وه نو دتیرو وختو اجرة مثل به دمحمد ایوب څه اخلی او که یی خپله وکرلو ته اماده کړی وي نو یې حکم دمزارعة دی( یعنی چه څوک چاته خپله مځکه په کښت ورکړی په نیمی یا دریمه یا څلورمه )نو به اصطلاح ته کتل کیږی چه عرف په نیمی ده او که په دریمه هغه اندازه به ځنی اخلی او که هسی بیکاره وه په هغه وقت کی نو که یی مځکی ته تاوان رسولی ؤو دهغه ضمان به ځنی اخلی او که نه وی نو دهیڅ شی حق نه لری لکن که په دې باره کی صلح ورسره وکړی نو دا ښه لاره ده ځکه چه په آیة کریمة کی راغی (والصلح خیر ).والحاصل انها ان كانت الارضْ ملكا فان اعدها ربها للزراعة اعتبر العرف فى الحصة والافان اعدها للايجار فالخارج للزارع وعليه اجر المثل والا فعليه النقصان ان انتقصت( ردالمحتار صـ۱۳۸ج ۵ ) هكذافى ( الفقه الاسلامى صـ۷۳۲ج ۵ ) من بذرلنفسه فانواع الحاصلات من البذرله لايعترضْ له من طرف احد( المجلة المـ۱۲۴۶ ) سواء كان البذرملكه او مغصوبا وسواء كانت الارضْ ملكه اومغصوبة ..... وقد صرحوا بان الخراج نماء البذرلانماء الارضْ ( شرح المجلة الاتاسى صـ۱۸۴ج ۴ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه يوحكومت مځكه توزيع كړي نيم قسطونه اداسي نيم په بل حكومت كي اداسي اسناد وركول سي بياحكومت دابيع فسخه كولاى سي كنه؟

**سوال** : دكندهار ښاروالی د ( ۱۳۵۷ ) كال يعني دانقلاب څخه دمخه دخپلو اصولو مطابق دجوړيدو په منظور نمرى (مځكى )وخلكوته توزيع كړى وى چه اكثرآئى په هغه وخت دحكومت كاركونكى او معلمين وه چه ددوى دتنخواه( معاش )څخه په اقساطو باندى د مځكي دقيمت يو حصه په بانک كى جمع كيدله چه په همدا جريان كى كمونيستى انقلاب مينځ ته راغى اكثرآ خلک مهاجراو يا ديوه ځاى څخه بل ځاى ته نقل سوى وه چه ددغو خلكو دوركړه سوى مځكو يوه حصه ئى تحويل او ډيره ئى پاته ده چه د طالبانو د اسلامى تحريک تربرياليتوب وروسته ئى يو څو نفره حاضر سول او په هغه بيعه چه په لومړى ځل ورته تعين سوى وه پاته پيسي ځينى تحويل سوى او سند ورته وركړل سو چه په دى ورستيو وختو كى دامارت د عالى مقام يو فرمان په دې شرحه رارسيدلى دى دطالبانو داسلامى تحريک دكاميابى څخه وروسته دقندهار په ښار كى دښاروالى لخوا دفابريكى فارم يا بل نامه سره چه په قطعى شكل سره ځايونه خرڅ سوى او اسناد دملكيت ئى اجرا يا نه دى اجرا سوى په شمول دهغو نمرو چه په كارته معلمين (گچ خانو ) دتحريک دكاميابى څخه وروسته ئى اسناد دملكيت دباقى پاتى مبلغ دتحويلى څخه وروسته اجرا سوى دا ډول معاملى باطلي او شرعى بڼه نه لرى ددې لپاره زمونږ د طرفه يو خاص هيئت هر يو د ښاروالى اود قضاياى امارت او زراعت مسؤلينو ته وظيفه وركول كيږى چه پورته ټوله املاک په صحيح شكل قيمت گزارى كړى او مشتريانو څخه باقى پاته مبلغ تحويل كړى او داملاكود مقرراتو مطابق ورته تسليمى او نوي اسناد دملكيت وركړى او كه څوک قناعت نه لرى شريعت دې ورسره وسي كله چه مونږ نومړى خلگ راجلب كړه هغوئ وايي چه زمونږ سره شريعت وكړئ اوس سوال دادى چه شرعآ مونږ دا حق لرو چه په دوئ دوهم ځل قيمت او په بل عبارت دنن ورځى قيمت تحويل كړو او يا دغه مځكه ددوئ څخه واخلو ونورو خلكوته ئى دنن ورځى په قيمت وركړو كنه؟ ستاسو دلار ښووني په اساس به خپل اجراات تنظيم كړو ؟

﴿مولوى دين محمد حق بين كندهاړ ښاروال﴾

**جواب** : ددغه کسانو سره چه حکومت عقد دبیعې کړی دی دانقلاب څه تر مخه نو دابیع که پرخپلو شروطو برابره سوی وی نو بیعه ئی صحیح او نافذه ده یعنی هغه مځکه د هغه خلقو ده هیڅکله حکومت نسی کولای او نه شرعاً داحق لری چه دهغو څخه مځکه بیرته واخلی یا نوی عقد ورسره وکړئ یائی بل چاته ورکړئ او که یی پر خپلو شروطو برابره نه وی کړی نو به حکومت اثبات دمخالفت دشروطو کوی بیا به ځان ته حق دفسخ دپخوانی بیعې ثابتوی کله چه پخوانی بیع فسخه سوه بیا دنوي عقد اجازه ستنه. لکن څرنګه چه نن ورځ افغانی ډیر کم قیمته سوی ده او په هغه وخت کی دبیعی ډیره بیش قیمته وه نو حکومت کولای سی چه دهغې ورځې څخه چه دغه پوروړو خپل قسطونه نه دی تاویل کړی هغه پورو ته حساب وکړی او جمع یی کړی او بیایی دهغه وخت په کالدارو یا ډالر یا سرو زرو یا سپینو زرو حساب کړی او دهغه مطابق حساب ځنی تاویل کړی په شرط ددې چه تجاوز او ظلم پکښی ونسی او نه و غریبانو ته تکلیف ورکول سی بلکه ښه داده که یو څوک غریب وی چه نور مهلت او وخت هم ورکول سی.

حکم البیع المنعقد الملکیة یعنی صیرورة المشتری مالکا للمبیع والبایع مالکا للثمن ﴿ المجلة المـ۳۶۹ ﴾ لکن علی التفصیل الاتی بیانه وهو ان الملکیة تثبت بمجرد العقد اذا استجمع البیع شرایط الانعقاد والصحة واللزوم و النفاذ ﴿ شرح المجلة الاتاسی صـ۳۵۷ج۲ ﴾ البیع النافذ یفید الحکم فی الحال ﴿ المجلة المـ۳۷۴ ﴾ ای ثبوت الملک فی البدلین لکل منهما فی بدل ﴿ اتاسی صـ۳۷۳ج۲ ﴾ اذا کان البیع لازما نافذاً فلیس لاحد المتبایعین الرجوع عنه ﴿ المجلة المـ۳۷۳ ﴾ هکذافی ﴿ الفقه الاسلامی صـ۱۶۲ج۴ ﴾ بخلاف النقود النحاسیة والغالبة الغش کالبشلک فی زماننا فانها اذا انقطعت عن ایدی الناس فی السوق او کسدت بنهی السلطان عن التعامل بها او رخصت کما وقع فی زماننافی البشلک او الزهراوی فمذهب ابی یوسف المفتی به ان البیع بها یبقی صحیحا ویجب علی المشتری ان یدفع قیمتها من الذهب او الفضة یوم وقع البیع والقرض فاذا کان کل عشرین بشلکا قیمتها یوم البیع ذهب مجیدی

مثلا وقد رخص البشلک او کسد او انقطع فعلی المشتری ان یدفع عن کل عشرین بشلکا ذهبا مجیدیا لانه قیمتها یوم البیع افاده فی ردالمحتار (شرح المجلة الاتاسی صـ۱۶۳ج۲) وفی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس او رخصت فعند الامام الاول والثانی اولا لیس علیه غیرها وقال الثانی ثانیا علیه قیمتها من الدراهم یوم البیع والقبض وعلیه الفتوی وهکذا فی الذخیرة والخلاصة عن المنتقی ونقله فی البحر واخره فحیث صرح بان الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات فیجب ان یعول علیه افتاء وقضاء ولم ارمن جعل الفتوی علی قول الامام ( ردالمحتار صـ۲۶ج۴ ) هکذا فی ( تنبیه الرقود - مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۶۰ج۲ ) فلوبقی منها ( ای من انواع العملة )نوع علی حاله او کان فی البلدة الاخری نوع منها قیمته مساویة لقیمته فی بلد العقد فالمشتری ملزوم بدفع ذلک الی البایع وعلی البایع القبول .

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## په هبه کي داشرط راتلای سي چې خرخوي به ئې نه؟

**سوال**: ما حاجي عبيد الله يوه ټوټه مځکه د سرای دجوړيدو لپاره خاص دالله ﷻ درضا په خاطر وملاعبدالرزاق او دهغه ورونو ته هبه کړه چه نور اختيارات ئی په دوئ پوری اړه لری ليکن دفروش حق په هيڅ وخت او هيڅ طريقه نه لری ځکه چه دوئ ته هبه سوی ده په گروی او کرايه ئی ورکولای سی ؟ ﴿فقط حاجي عبيد الله﴾

**جواب**: دغه ملاعبدالرزاق او دهغه ورونه که چيری فقيران وی يعنی دنصاب مالکان نه وی نو دغه هبه صحيح ده ولی هبه دلته صدقه گرځی او دوی کولای سی چه دغه مځکه خرڅه کړی او نور تصرفات هم پکښی وکړی او دغه شرط دنه خرڅولو چه دوی په مابين کی ايښی دی شرط فاسد دی اعتبار نلری او که چيری دوئ مالکان دنصاب وه يعنی هر يو مالک دنصاب ؤو نو بيا دغه هبه نه صحيح کيږی ولی هبه دمشاع ده او هبه دمشاع په قابل التقسيم شی کی صحت نلری که څه هم قبض کړی ئی وی ولی دا قبض ملکيت نه فائده کوی بناء پر راجح قول او که ملکيت پکښی ثابت هم سی نو ملک خبيث به وی واهب او همدارنگه دده ورثه حق درجوع لری که څه هم قريب وی نو ښه به داوی چه دغه عقد دهبی نوی کړی او ملاعبدلرزاق او دهغه ورونو ته هر يوه ته جلا جلا خپله حصه ورکړئ او پس له تقسيم څه يی هغوئ هر يو خپله خپله حصه قبض کړی.

ولو سلمه شائعا لايملكه حتى لاينفذ تصرفه فيه فيكون مضمونا عليه وينفذ فيه تصرف الواهب( تكمله ردالمحتار صـ۳۴۳ج ۲ ) وكما يكون للواهب الرجوع فيها يكون لوارثه بعد موته لكونها مستحقة الرد ..... قوله بالقبض لكن ملكا خبيثا وبه يفتى( تكملة ردالمحتار صـ۳۴۴ج ۲ ) وان وهبها واحد من اثنين لاتجوزعند ابى حنيفة رحمة الله تعالى وقالاتصح ..... ثم نقل عن تصحيح القدورى مانصه وقد اتفقوا على ترجيح دليل الامام واختار قوله ابو الفضل الموصلى وبرهان الائمة المحبوبى وابوالبركات النسفى ( الفتاوى الكاملية صـ۱۸۵ ) هكذافى( الفتاوى الانقروية صـ۲۸۳ج ۲ ) هكذافى ( احسن

الفتاوی صـ۲۶۱ج ۷ ﴾ ومع افادتها للملک عند هذا البعض اجمع الکل علی ان للواهب استردادها من الموهوب له ولوکان ذارحم محرم من الواهب ﴿ ردالمحتار صـ۵۷۰ج ۴ ﴾ ( وهب امة الاحملها وعلی ان یردها علیه او یعتقها او یستولدها او ) وهب ( دارا علی ان یرد علیه شیئا منها ) ولو معینا کثلث الدار او ربعها ( اوعلی ان یعوض فی الهبة والصدقة شیئا منها صحت ) الهبة ( وبطل الاستثناء ) فی الصورة الاولی ( و ) بطل ( الشرط ) فی الصور الباقیة لانه بعض او مجهول والهبة لا تبطل بالشروط ولاتنس مامر من اشتراط معلومیة العوض ۔ ﴿ الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۷۹ج ۴ ﴾ واذاتصدق بعشرة دراهم او وهبها لفقیرین صح لان الهبة للفقیر صدقة والصدقة یرا دبها وجه الله تعالی وهو واحد فلا شیوع لالغنیین لان الصدقة علی الغنی هبة فلاتصح للشیوع ﴿ الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۷۴ج ۴ ﴾

والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که دپلار له مرگ وروسته زوی په شخصي کاروبار ملک پیداکړي اکا حق پکښي لري کنه؟**

**سوال** : زما خپل مرحوم پلار او اکا محمد نعیم په ویش سره ګډ وه کله چه زما دپلار دمرگ څه وروسته ما خپل ځانته خپله خواری کښله. او پخپله شخصي ګټه مي یوه اندازه ملک او سرای رانیولی دی چه فعلاً زه سند عرفی په لاس کي لرم اوس زه خپل اکا ته په هغه شراکت مال کي چه زما دپلار او دده په مابین کي شریک ووحصه ورکوم لکن زما اکا وایي چه ته به خپل رانیولی ملک کی هم حق راکوی. نو زه ستاسو دمقام څه هیله کوم چه له رویه دشریعت وماته فتوی راکړئ چه زما پخپل شخصي ملک کي چه قباله ئې هم زما په نامه ده حق لری او کنیا ؟چه ستاسی دمعلومات په زریعه زه هغه کاروکړم. او تاسی زموږ مشکل دشرعی فتوی په واسطه راحل کړئ. دابه ستاسی لویه وسیله وی ؟

**جواب** : که چیری موضوع واقعاً داسی پیښه وی لکه تاسو چه لیکلی ده او دغه سرای او ملک ستاسو شخصی وی د اکا شراکت پکښی نه وی نو ستا اکا نسی کولای چه په زور باندی ستاسره ځان شریک کړی او نه په رانیولی ملک او سرای ستا کی حق لری.

لایجوزلاحد ان یاخذ مال احد بلا سبب شرعی ( المجلة المـ۹۷ ) وذلک کالغصب والسرقة والقماروالرباوالرشوة والدعاوی الباطلة وشهادة الزورالخ ( شرح المجلة الاتاسی صـ۲۶۴ج۱ ) وبناء علیه یحرم التعدی علی ملکیات الافراد مادامت مشروعة قال ﷺ من ظلم شبرامن الارض طوقه الله من سبع ارضین ( الفقه الاسلامی صـ۴۵۸۱ج۶ ط جدید ) الملک اختصاص بالشئی یمنع الغیر منه ویمکن صاحبه التصرف فیه ابتداء الالمانع شرعی ( الفقه الاسلامی صـ۵۷ج۴ ) .

والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که ددوو سرایوپه منځ کي دمسجد اوکاریز لپاره لاره وقف سي دسرایو مالکان کولای سي چې دکوڅې ته ابرو اودروازه راخلاصه کړي؟

**سوال** : څرنگه چه یولاره دمسجد لپاره وقف سوی وي دعامو خلگو لپاره یعنی هر څوک پر دغه لاره تیریدلای سی ومسجد او کاریز ته ځی هیڅوک ئی ممناعت نسی کولای او دغه لار د دوو سرایو په مابین کښی ده چه دغه لاره هم ددغو دوو سرایو مالکانو وقف کړیده اوس دغه ذکر سوی لاري ته د دغو دووسرایو څخه دیو سرای مالک کولای سی( حق لری )چه ودغه کوڅی ته خپل دسرای دروازه او دباران آبرو راوباسی. او نور خلق کولای سی چه په دغه کوڅه کی تیرسی که نسی کولای ؟

**داول سوال جواب** : که چیری دغه لار وتلي وي او عام خلق پکښی تیریږي نو هر سړی کولای سي چه ودغه لاري ته خپل دسرای دروازه راخلاصه کړي هیڅ څوک یی نسی منع کولای او دباران آبرو هم دغه لاري ته را ایستلای سی. په دې شرط چه خلقوته ضرر نه وی پکښی لکن بیا هم نور خلق داحق لری چه دئ ددغه آبرو را ایستلو څخه منع کړی که څه هم ضرر نه وی پکښی.

اخرج الی طریق العامة کنیفا او میزابا او جرصنا او دکانا جاز اذا لم یضر بالعامة ولکل واحد من اهل الخصومة منعه ومطالبته بنقضه بعده هذا اذابنی لنفسه بغیر اذن الامام ..... وانکان یضر بالعامة لایجوزاحد اثه«

تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۶۲ج۲) قال فی التنویر والملتقی اخرج الی طریق العامة کنیفا او میزابا ..... فلکل من اهل الخصومة ولوذ میا منعه ابتداء ومطالبته بنقضه بعد البناء سواء اضرام لم یضر (سلیم باز صـ۶۶۶) لکل واحد ان یحدث با باعلی الطریق العام (المجلة المـ۲۱۸).

**ددوهم سوال جواب**: لاره چه دعامو خلقو دتیریدو لپاره وی هیڅ څوک نسی کولای چه بعضی خلق دتیریدو څه پر دغه لار منع کړی که چیری دحکومت له طرفه اجازه دتیریدو وه پر دغه لار او همدارنګه په دغه تیریدو کی ضرر نه وؤ نورو خلقو ته.

فانکان الطریق عاما فلکل انسان حق الانتفاع به لانه من المباحات سواء بالمرور او بفتح نافذة او طریق فرعی علیه ..... ولایتقید الابشر طین الاول السلامة وعدم الاضرار بالاخرین اذ لاضرر ولاضرار الثانی الاذن فیه من الحاکم (الفقه السلامی صـ۶۰۷ج۵) هکذافی (تبیین الحقائق صـ۱۴۲ج۶).

(**نوټ**): دا احکام دهغه لاری دی چه وتلی وی یعنی عامه لاروی لکه مستفتی چه ئی پوښتنه کړی ده او هغه لاره چه خاصه وی یعنی وتلی نه وی دهغه احکام ددی څه جلادی او همدارنګه باید ووایو هغه آبرو او ناوه چه یو څوک یی دحکومت یا محکمی په اجازه وعامی لاری ته راوباسی او دغه آبرو یا ناوه پرداسی طریقه جوړ کړی چه دخلقو دآزار او ضرر او کالو خرابیدلو باعث او سبب نوی نو بیا څوک نسی کولای چه منع و کړی لکه دترمخه حوالو څه چه معلومه سوه.

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که بالغه انجلۍ په خپله کوزده راضي نه وي نکاح صحت لري کنه؟

**سوال**: زما وریره چه د حاجی محمد زی لور ده بې ددې له مشوری او رضاء ئې د شهباز زوی ته ورکړی او فعلاً هم دغه انجلۍ په دې خطبه راضی نه ده. د افسوس خبره داده چه د مذکور شهباز زامن وایی چه تاسی ماته دا انجلۍ راکړي اوس به ماته خامخا راکوئ ولی مو په اوله ورځ راکوله د دغه مذکور شهباز زامنو زور نیولی حتی تر دی چه وایي که شریعت هم ماته دغه انجلۍ نه راکوی نو ماته به ئې راکوئ او که پر ماخوز هم سی لابه ئې راکوئ د وه کسه دغې انجلۍ ته ورغلي وکالت ئې نه دی ورکړی دغه انجلۍ بالغه ده د خپل نفس مالکه ده ؟

**جواب**: کچیری صورت حال داسی وی لکه تاسو چه لیکلی دی او دغه انجلۍ چه بالغه هم ده په وخت کی د نکاح تړلو په دغه نکاح نه وی راضی نو دغه نکاح نه صحیح کیږی او ترڅو چه دغه انجلۍ پخپله راضی سوی نه وی او اجازه یی نه وی کړی نو هیڅکله ددې نکاح نه صحیح کیږی ددې انجلۍ خوښه او رضاء حتمی او ضروری ده او په دی هکله دا میرالمؤ منین فرمان هم صادر سوی دی او که څوک زور او جبر کوی نو تاسو محکمو یا نورو حکومتی ادارو ته رجوع وکړی هغه مکلف دی چه د دغسی ناحقه زور او جبر مخنیوی به کوی.

باب لاینکح الاب وغیره البکر والثیب الابرضاها الخ ﴿بخاری شریف صـ۷۷۱ج۲﴾هکذافی ﴿مشکوة المصابیح صـ۲۷۰﴾ نفاذ التزویج کان موقوفا علی الاجازة وقد بطل بالرد الخ ﴿ردالمحتار صـ۳۲۵ج۲﴾ هکذافی ﴿امداد الفتاوی صـ۱۷۴ج۲﴾ ﴿وعزیزالفتاوی صـ۴۱۹ صـ۴۳۰ وصـ۴۳۴﴾ و ﴿فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۸۳ج۸ صـ۵۸ج۸ ۶۲صـج۸﴾

بسم الله الرحمن الرحيم

## یوشریک بې له اجازي دنورو مشترکه مځکه خرڅولای یابخښلای سي کنه؟

**سوال** : یک قطعه زمین یا باغ یاسرائیکه بین چند برادر وخواهر مشترک باشد ایایکی از مشترکین میتواند اراضی فوق الذکر رابدون اجازه بالای کسی بفروشند یا بخش نماید درین باره لطف فرموده از روی شریعت اسلامی معلومات کافی هدایت فرمائید ؟

《 باحترام حاجی محمد هاشم 》

**جواب** : درین مسئله چند صوراست صورة اولی اینست که یکی از مشترکین این قطعه زمین یا باغ بفروش برساند در حالیکه درین زمین وباغ حصص دیگر مشترکین موجود وشامل میباشد ودرین مشترکین اطفال یا مجانین میباشد واین فروشنده نه وصی آنها باشد نه اجازه وصی گرفته باشد درین صورت بیع درحق اطفال ومجانین باطل میباشد ودرحق دیگر بالغان وعاقلان موقوف میباشد باجازه آنها ودرحق خود فروشنده بیع صحیح میباشد درصورتیکه حصه او مثل نصف یا ثلث بمشتری معلوم باشد اگرچه تقسیم شده نباشد واگرحصه او هم معلوم نبود بمشتری بیعش فاسد میباشد صورة ثانیه اینست که درین قطعه دیگر مشترکین میباشد لکن اطفال ومجانین وامثال آن نباشد وحصص آنها معلوم میباشد اگرچه تقسیم شده نباشد پس بیعش درحق خود بیع صحیح است ودرحق دیگران موقوف صورة ثالثه اینست که حصص هریک نه تقسیم شده باشد ونه معلوم میباشد حصه او بمشتری درین صورت بیع فاسد میباشد اولی وافضل بلکه واجب فسخ آنست .

قوله وقف بیع مال الغیر ای علی الاجازة علی مابیناه ﴿ردالمحتار صـ۱۵۲ج۴﴾ هکذافی ﴿الفتاوی الهندیة صـ۱۵۲ج۳﴾ ﴿الفقه الاسلامی صـ۲۷۱ج۴﴾ الشریک مخیران شاء باع حصته من شریکه وان شاء باعها من اجنبی بدون اذن شریکه ﴿المجلة المـ۱۰۸۸ والمـ۲۱۵﴾ والتصرف فی المال لیس الا للاب او الجدا والقاضی او اوصیائهم ﴿هکذافی الفقه السلامی صـ۷۴۹ج۷﴾ و﴿الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۴۵۴ج۲﴾ یصح بیع حصه شائعة معلومة کالنصف والثلث والعشر من عقار مملوک قبل الافراز لانه لایشترط فی صحة البیع الافراز عند التسلیم وقید الحصة بکونها معلومة لانها لو کانت غیر معلومة یفسد البیع لجهالة المبیع ﴿شرح المجلة الاتاسی صـ۱۰۸ج۲﴾ فلو قال لرجل بعتک نصیبی من هذه الدار بکذا او قبل المشتری ولم یکن عالما بنصیبه لایجوزهذا لبیع وان علم جاز (خانیة) ﴿سلیم باز صـ۱۰۳﴾ والثانی بیان ان ذلک (ای فسح البیع الفاسد) واجب علیهما رفعا للفساد ﴿اتاسی صـ۳۶۳ج۲﴾.

حکم هبه و بخششی درزمین مشترک اینست که قبل از تقسیم هبۂ حصه خود اگرچه معلوم باشد صحیح نیست مگرآن وقت که بعد از هبه تقسیم بکند یا موهوب له راامر بقسمت بکند و همچنان درهبه حصه غیرهم اذن غیر ضروری است هم تقسیم و بدون تقسیم یا امر بتقسیم هبه نه درحصه خودش صحیح است نه درحصه غیرباقی احکام مثل ماتقدم است.

لکن ان قسم الواهب الجزء الموهوب المشاع بنفسه او بواسطة نائبه وسلمه الی الموهوب له صح العقد لزوال المانع وکذالو امر الموهوب له ان یقسم مع شریکه (ردمحتار) ﴿سلیم باز صـ۴۷۳﴾.

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که په لږقیمت له چاڅخه په زور مځکه واخلي اوقباله په زور په جوړه کړي ابادي پکښې وکړي بیا مظلوم داسلامي حکومت په مټ بیرته خپله مځکه خپلولای سي ؟که ئې خپله کړي د ابادي څه حکم دي؟

**سوال** : چه یو سړی ډیر ظالم او صاحب دلوی قدرت وی تر دی له کارونه ئی د شریعت څخه خلاف وی دغه ظالم دیو مظلوم سړی څخه په اکراه او غصب یو سرای او دوکان دتوفک په زورځنی واخلی او په مقابل کی لږ روپی ورکړي چه هغه دیوه دوکان قیمت هم نه وی هغه ظالم چی په زور ئی قاضی ته دوه شاهدان وروستلی وی دهغه مظلوم کورته روپی وروغورځوی او په هغه مظلوم په زوره گوته ولگوی او کی لگولی نه وای وژنی ئې او بیا په دغه سرای کی نوی ابادی وکړي چه هغه دخپل قیمت څخه هم ډیره لوړه سی وروسته له ډیر وخت څخه په هغه علاقه کی شریعت نافذ شی مالک بیرته غوښتونکی دخپل سرای او دوکان وگرزی او همدغه شاهدان او اهل خبره دقاضی په حضور کی شاهدی ادا کړی چه دا قباله په جبر او اکراه باندی اجرا شویده نو اوس شریعت مقدس په دې باره کي څه حکم کوي چه ایا دغه قباله جبری او غصبی دهغه ظالم سند گرځی او کنه؟ او دقیمت دساختمان دغه ظالم مستحق کیدلی سی کنه ؟

**جواب** : په دغسی مسئله او واقعه کی لکه مستفتی چه لیکلی ده شرعی حکم دادی چه دغه مشتری که څه هم ددغه سرای او دکان مالک گرځیدلی دی لکن دغه ملک یی فاسد دی هر وقت که چیری بائع خپل رضائیت ښکاره کړی او دا رضائیت یی په داسی وخت کی ښکاره

کی چه جبر او اکراه پر ده نه وی نو په دې صورت کی دهغه مشتری ملک صحیح گرځی او که یی رضائیت نه کی ښکاره بلکه دفسخی غوښتنه یی وکړه نو هم دغه بائع حق لری او هغه سندونه چه ئی ستا څه په زور اخیستی دی ددی مانع نسی کیدای چه تاسو سودا فسخ کړی او هغه بناء چه ئی ستا څه په مغصوبه سرای کی کړیده هغه دی ونړول سی او که نړول سرای ته ضرر ولری بیا دی قیمت دنړول سوی ورکړه سی.

فصريح العبارات ان المشترى بالاكراه يملكه ملكا فاسدا عند القبض وبذلک صرح فى كتب الاصول عن بحث العوارض المكتسبة ﴿ تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۴۵ج۲ ﴾ فلو اكره بقتل او ضرب شديد ..... حتى باع او اشترى او اقرا وآجر فسخ ..... او امضى لان الاكراه الملجئى وغير الملجئى يعد مان الرضا والرضا شرط لصحة هذه العقود وكذ الصحة الاقرار فلذا صارله حق الفسخ والامضاء﴿ الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۸۹ج۵ ﴾ لكل من المتعاقدين فسخ البيع الفاسد﴿ المجلة المـ۳۷۲ ﴾.

وانما عدل عن قول التنوير ويجب على كل منهما الى اللام بمعنى على لافادة شيئين الاول بيان ان لكل منهما ولاية الفسخ دفعالتو هم انه اذا ملک بالقبض لزم والثانى بيان ان ذلک واجب عليهما رفعا للفساد ..... لكن الوجوب فى غير بيع المكره فانهم صرحوا بانه فاسد وبانه مخير بين الفسخ والامضاء﴿ اتاسى صـ۳۶۳ج۲ ﴾ ومن بنى او غرس فى ارض غير بغير اذنه امر بالقلع والردوللمالک ان يضمن له قيمة بناء او شجر امر بقلعه ان نقصت الارض به ﴿ تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۵۴ج۲ ﴾

والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه شئ په پور واخلي بيائې بيرته په هغه پور كي داخيستو ترقيمت په كم وركړي جواز لري كنه؟

**سوال**: پرما غلام سرور دعبد الرحمن نامی ( ۶۰۰ ) شپږ سوه لکه افغانئ باندی وی چه مانقدې رو پی نه درلودی بیامی ( ۸ ) اته منه تاریاک دیوه کال په پور فی من ( ۲۴۰ ) لکه افغانی دده څخه واخیسته کله چه مده پوره سوه دغه ذکر سوی تاریاک بیرته ده ته مي من په ( ۹۰ ) لکه افغانی بیرته ورکړ کله چه ددغه ( ۸ ) منو تاریاکو دکال مده پوره سوه بیا مي دغه ( ۲۸ ) اته ویشت منه تاریاک فی من ( ۱۶۰ ) یو سل وشپیته لکه افغاني ځینی واخیسته دکال په مده کله چه ددغه تاریاکو مده پوره سوه دکال ـ بیرته مي په دغه مده کی ذکر سوی عینی تاریاک دده څه واخیسته بیرته ده ته مي من ( ۷۰ ) او یالکه افغاني ورکړه نو ستاسو محترمو حضور څخه هیله کوم چه په دغه باره کی شرعی فتوی راکړی؟

**جواب**: دا چه یوه پلادی تاریاک په ( ۲۴۰ ) لکه ځنی رانیولی دی او دپیسی ورکولو تر مخه دی بیرته هغه تاریاک په ( ۹۰ ) لکه ورکړی دی او بیا دی ( ۲۸ ) منه تاریاک په ( ۱۶۰ ) لکه من ځنی رانیول او دپیسو ورکولو ترمخه دی بیرته په ( ۷۰ ) اویالکه ورکړی دغه دواړه بیعی په شریعت مطهره کی ناجائزی دی.

وفی الفتاوی العتابية ولو باعه بدنانير ثم اشتراه بدراهم باقل لايجوز. ....ولورخص السعر فانتقص من حيث السعر فاشتراه باقل مماباع لم يجزو لاعبرة للسعر كذافى الخلاصة ﴿ الفتاوى الهندية صـ۱۳۲ج ۳ ﴾ ومن اشترى جارية بالف درهم حالة او نسية فقبضها ثم باعها من البائع بخمسمائة قبل ان ينقد الثمن لايجوز البيع الثانى ﴿ هداية صـ۶۰ج ۳ ﴾

والله ﷻ تعالى اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه شريک په مشترک ملک كي په يوه سراى شخصي مصرف وكړي بيا په تقسيم كي دبل سي مصرف به څه په كوي ؟كه قيمت ئې كيږي نودكوم وخت ؟

**سوال** : مثلاً زيد او عمر د شراكت په مځكه كی تقريباً شل كاله پخوا د اوبو دوه ځاهان سره وكښه زيد پر دا يوه سراى شخصی سراى جوړكړی اوس چه ئی تقسيم سره وكړی په تقسيم كی عمر ته دزيد مځكه ورسيدله حال دا چه زيد پر دې مځكه باندې مصرف كړی دی ايا ددغه مصرف تاوان پر عمر دی او كه پر زيد او مصرف دهغه وخت اعتبار لری كه د اوس؟

(نوټ ) په تقسيم كی دواړه راضی دی ؟ ﴿المستفتی محمد اسمعيل﴾

**جواب** : دغه سراى كه زيد يوازی او يوازی دخپل ځان او شخصی استفادی دپاره جوړ كړی وی نو كه دعمر په اجازه وی او كه بې اجازی وی دتاوان حق پر عمر باندی نلری بلكه عمر ورته ويلای سی چه خپله بناء دی ونړوه او ايسته يی كړه او داهم كولای سی چه ديوازی بناء بغير له مځكې قيمت وركړی وزيد ته او كه يی دغه سراى دهغه بل شريک بې له اجازی دشركة دمال لپاره جوړ كړی وو يعنی ددی لپاره ئی جوړ كړی وو چه مشتركه استفاده څنی كيږی نو دا دجوړوونكی يو احسان بلل كيږی هغه بل شريک باندی ئی تاوان نه دی لازم لكن كه ئی اجازه ورته كړی وه بيا به ئی خپله حصه تاوان وركوی.

اذا بنـى احـد الـشـركـاء لنـفـسـه فـى الملـک المـشـترک القابـل للقـسـمة بدون اذن الاخرين ثم طلب الاخرون القسمة تقسم فـان خـرج ذلک البنـافى نـصيب بانيه فبها وان خـرج فـى نـصيب الاخـر فله ان يكلف بانيه هـدمه ورفعـه ﴿ المجلة المـ١١٧٣ ﴾ وكـذا الحكم لـو بنـى بـاذن شـركـائه لنـفـسـه لانـه مـستعير لحـصتهم وللمعير الرجوع متى شاء امالو بنـى باذنهم للشـركة فانـه يرجع بحـصته عـليهم بـلاشـبهه ﴿ سـليم بـازصـــ۶۴۷﴾هـكـذافى ﴿ دررالحكـام صـــ١٨١ج ٣ ﴾ و ﴿ الاتاسى صـــ١١٨ج ۴ ﴾ و ﴿ ردالمحتـار صـــ١٨٨ج ۵ ﴾ امـا اذا بنـى للـشـركة بـدون اذن شـريكه فـيكون البنـاء مشـتركـا والبانى متبرعا بـمصرفه علـى البنـاء ولـيس لـه الرجوع علـى شريكه حصة من المصرف ﴿ دررالحكام صـ١٨١ج ٣ ﴾ . والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## كه يو زوی دپلار په ژوند او وفات كي خپل كسب كوي دانور ورگډ دي كنه؟

**سوال**: مونږ دوه ورونه اعنی غلام نبی او محمد غنی دحاجی عبدالقادر زامن یو. زموږ دپلار مورثه مال پاته وه او زه غلام نبی دپلار دحیات څخه بیا تر اوسه پوری پخپل شخصی کسب اعنی دموټرانو په مستری خانه اخته یم. او دپلار مال هیڅ نه دی پکښې مصرف کړی. او زما دپلار کسب باغوانی وه او دپلار په حیات دپلار سره پر کاسه یو ځای وو. آیا زما کسب یعنی دکسب حاصل هم په ترکه یعنی مال میراث کښې حسابیږی اعنی مشترک بلل کیږی او که یا؟ ـ دپلار دوفات څخه وروسته تقریباً دوه نیم کاله پر یوه کاسه وو او ما مشر ورور غلام نبی و خپل کشر ورور محد غنی ته هفتگی ورکوله دواړو خپله گټه ودغه ځای ته راوړله اوس دوه کاله کیږی کاسه موسره جلا کړی ده حالانکه کسب مویو دی؟

**جواب**: دپلار متروکه مال چه هر څونه وی په هغه کی تاسی ۲ ورونه شریکان یاست لکن دغه یو ورور چه په مستری خانه یې خپلې شخصي پیسی پیدا کړی دی که چیری دغه شرطونه موجود وه.

(**اول**): داچه ددغه بل ورور مکمله نفقه دده دغاړی وی.

(**دوهم**): دا چه دهغه ورور دټولو امورو اختیارات به دده سره وی او هغوی دده بی امره او اجازی دنیاوی کسب نسی کولای.

(**دریيم**): دا چه په مستری خانه کی به دغه کشر ورور یوازی دیو کومکی به صفت کار کړی وی نه مستقل کار.

(**څلورم**) : دغه مشر ورور به د کشر ورور مال په دغه مستري خانه کې نه وي مصرف کړي نو که دغه څلور شرطه موجود وه دغه مال یوازي دمشر ورور دي په ترکه نه ګډیږي او دغه مشر ورور ته به په دې هکله قسم ایښوول کیږي.

سئل فی رجل مات عن ابن کبیر وابنین صغیرین لاعن ترکة فرباهما الکبیر ونشا فی خدمته من جملة عائلته مع ابنه المقارب لهما فی السن وحصلو اجمیعا بالکسب والعمل مالاولم یکن لهم مال واختلفو افیه فالکبیر یدعیه کله لنفسه ..... فما الحکم فی ذلک اجاب ان ثبت کون ابنه واخویه عائلة علیه وامر هم فی کل ما یفعلونه الیه وهم معینون له فالمال کله له والقول قوله فیما لدیه بیمینه ولیتق الله فالجزاء امامه وبین یدیه (الفتاوی الخیریة صـ۵۸ج ۲) ان زیداً یسکن مع ابیه عمرو فی بیت واحد ویعیش من طعام ابیه وقد کسب مالاً آخر فلیس لاخوانه بعد وفاة ابیه اد خال ماکسبه زید فی الشرکة (دررالحکام صـ۴۲۱ج ۳).

واما قول علمائنا اب وابن یکتسبان فی صنعة واحدة ولم یکن لهما شئی ثم اجتمع لهما مال یکون کله للاب اذا کان الابن فی عیاله فهو مشروط کما یعلم من عبارتهم بشروط منها اتحاد الصنعة وعدم مال سابق لها وکون الابن فی عیال ابیه فاذا عدم واحد منها لایکون کسب الابن للاب (الفتاوی الخیریة صـ۵۸) هکذافی (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۸ج ۲) و (دررالحکام صـ۴۲۰ج ۳) وتعبیر ولده لیس احترازیا فالحکم فی الزوجة والاخوة علی الوجه المذکور ایضا (دررالحکام صـ۴۲۱ج ۳)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## له جنازي وروسته دغه مرده اونوروته په ناسته دعاکول روادي ؟

**سوال** : محترمو علماء وروسته دلمانځه دجنازي دعا كول ومرده ته او نورو مردگانو ته په ناستي جائز دی كنه ؟

**جواب** : دعا كول پس له لمانځه څخه دجنازي تر مخه دكسر دصفوفو مكروه او بدعت دی فقهاؤ منعه ځنی كړی ده او پس له كسر دصفوفو تر مخه ددفن جائز ده چه منع هم نه ده كړی او سنت والی ئی هم ثابت نه دی او پس له دفن څخه مستحب ده.

اذا فرغ من الصلوة لايقوم بالدعاء ﴿ الفتاوى السراجية بهامش قاضيخان ص۱۴۱ج۱ ﴾هكذافى ﴿ البحر الرائق ص۱۸۳ج۲ ﴾ و ﴿ احسن الفتاوى ص۳۳۶ج۱ ﴾ و ﴿ تاتارخانيه ص۱۸۰ج۲ ﴾ و﴿ فتاوى دارالعلوم ديوبند ص۳۰۵ج۵ وص۳۴۱ج۵ ﴾ واكثر هم لم يذكروادليل المنع والبعض عللوا المنع بالزيادة على الجنازة والبعض الاخر عللوه بتكرار الجنازة وكلتا القبيحتين انما تلزمان اذاد عاقائما فى الصف دون بعد كسر الصف وكذا اكثر الفقهاء يعبرون بلفظ طويل اى لايقوم بالدعاء ولايعبرون بلفظ مختصر اى لايدعو فيكون الدعاء بعد كسر الصف عفواً ومباحالحديث ماسكت عنه فهوعفو رواه ابود اودنعم كم من مباح يصير ممنوعا لعارضٍ مثل الالتزام ﴿ منهاج السنن شرح جامع السنن الامام الترمذى ص۲۱۶ج۴ ﴾ ويستحب اذا دفن الميت ان يجلسو اساعة عند القبر بعد الفراغ بقدرماينحر جزور ويقسم لحمها يتلون القرآن ويدعون للميت كذافى الجوهرة النيرة ﴿ الفتاوى الهندية ص۱۶۶ج۱ ﴾ هكذافى ﴿ احسن الفتاوى ص۲۳۳ج۴ ﴾ .

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که اکا کوچني وراره هبه وکړي، مور زامنوته او هغه تقسیم چې دخوندو حق ور نه کړي صحت لري کنه؟

(**اول سوال**): زمونږ درې سوالونه په لاندې ډول دي هیله کوم چه د شریعت مطابق جوابونه ئې په تحریری ډول راکړې اول سوال یو نفر خپل جایداد دوو کوچنی وریروته مشترک وبخښی او ددی جایداد قبض د کوچنیانو پلار کړیدی که چیری وروسته ۱۸ کاله وروسته اکا وغواړی دابخښنه گرځولای سی او که نه؟

(**دوهم سوال**): دیوی والدی ۷ زامن او دوې لوڼی وي او دې والدې خپل حق ودرو زامنو ته مشترک وبخښی ایا دامشترکه بخښنه صحت لری او که نه چه خارجی شاهد او سند هم ونه لری؟

(**دریم سوال**): دیو میت یوه زوجه ۷ زامن دوې لوڼې وي زامنوئی جایداد په ۸ برخو تقسیم کړې یوه اتمه برخه د مور سوه او یوه یوه برخه ئی دزامنو سوله وخوندوته ئی حق نه دی ورکړی خوندی ئی چه هر وخت پوښتل سویدی هغه وایي چه زمونږ حق دټولو ورونو دی چه د پلار د مرگ ئی ۴۲ کاله کیږی او ۲۸ کاله دتقسیم کیږی دخوندو دحق په خاطر داویش غلط دی او که نه دی خوندی اوس هم مونږ پوښتلی دی مگر حق نه غواړی؟

﴿المستفتی ملامحمد نسیم﴾

**د اول سوال جواب**: دغه نفر چه جایداد یی خپل ۲ کوچنی وریروته هبه کړی او دهغوی پلار قبض کړی دی دغه هبه صحیح ده که څه هم هبه د مشاع ده او اکا په هیڅ وخت کی بیا پر دغه هبه رجوع نسی کولای.

اذا وهب واحد شیئا لطفل تتم الهبة بقبض ولیه او مربیه (المجلة المـ۸۵۲) وهب اثنان دارًا لواحد صح لعدم الشیوع وبقلبه لکبیرین لا (الدرالمختار) قوله لکبیرین هذه عبارة البحر وقد تبعه المصنف وظاهرها انهما لو کانا صغیرین فی عیاله جاز عندهما وفی البزازیة مایدل علیه فراجعه (ردالمحتار صـ۵۷۳ج ۴) قوله عندهما بل هو جائز عنده ایضا فالاولی حذف

عنـد هـمـا او ابداله بـضـمير الجمـع ﴿ تقريـرات الرافعـى عـلى ردالمحتـار صـ۲۵۲ هـكذافى سليم بـاز صـ۴۷۳ ﴾ من وهب لاصـوله وفـروعـه او لاخيه او اخته اولاولادهما اولعمــه اولعمتــه اولخالــه اولخالتــه شــيئا فلــيس لــه الرجــوع ﴿المجلة الـمـ۸۶۶ هـكذافى الهـنـدية صـ۳۸۷ج ۴ ﴾.

**د دوهـم سوال جـواب** : كـه چيرى ددغـه والـدې خپلـه حصـه دميـراث معلومـه سـوى وى او تقسيم سوى وى نو بيا دغه والده كولاى سى چه خپلو زامنو تـه ئى ورتقسيم كړى او هبه يى كړي او كه يى دميراث حصه نه وى معلومـه سوى يا ئې وهغـه زامنـو تـه چه بالغان وى بې له تقسيمه هبه وكړه نو بيائى هبه نه صحيح كيږى.

كـذلک لووهب احـد حـصـة فـى تـركـة قبل ان يعلـم مـايـصـيبه منـهـا من المـال لاحــد الورثـة لاتـصـح الهـبـة ﴿ دررالحكـام صــ۴۳۹ج ۲ هـكـذافى تنـقـيح الفتـاوى الحـامديـة صـ۹۳ج ۲ ﴾ وانيكون الموهـوب مقسـوما اذا كـان ممـا يحتمل القسمة وانيكون الموهوب متميزا ﴿ الهـنـدية صـ۳۷۴ج ۴ ﴾.

**د دريم سوال جواب** : دغه تقسيم صحيح ندى بلكه دخوند وخق به حتماً جلا كوى هغوى ته به خپله حصه وركوى بيا دهغوى اختيار دى كه ئى يو چاته هبه كوى كه ئى ځان تـه راګر ځوى تر څو چه حق او حصه ئى جلا نسى پـه شرعى تقسيم سره نـه دغـه تقسيم صـحيح كيږى او نه دنورو دپاره ددوى په حصه مال كى تصرف او مصرفول جائز دى.

سئل فى امرءة ماتت عن ام واخت شقيقة وخلفت تركة مشتملة على امتعة واوان اشهدت الاخت المزبورة على نفسها بعد قسمة بعضها انها اسقطت حقها من بقية ارث اختها وتر كتها لامها المزبورة فهل لايصح الاسقاط المذكور الجواب الارث جبرى لايسقط بالاسقاط﴿ تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۵۱ج۲ هـكذافى الكاملية صـ۱۴۷ ﴾

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که په حالت دغضب کي داسي ووايي(زمابنځه پر ماخور اومورده) څه حکم لري؟

**سوال** : که یوځوک ووایی چه زمابنځه پر ما خور او مورده او دی په حالت کی دغضب وی نو ددغه ښځي حکم څه دی ؟

**جواب** : چه یوځوک ووایی زما ښځه پرما خور او مورده په دې سره نه طلاق واقع کیږی نه ظهار که څه هم نیت یی دطلاق وی چه دامسئله صراحةً فقهاؤپه خپلو فتاوی کی لیکلی ده البته دالفظ ویل مکروه دی.

هنا الفاظ انت امی مثل امی کامی حرام کظهرامی ففی انت امی لایکون مظاهر او ینبغی ان یکون مکروها فقد صرحوا بان قوله لزوجته یا اخیة مکروه ﴿فتح القدیر صـ۹۰ج۴﴾ ( والا ) ینوشیئا اوحذف الکاف ( لغا ) وتعین الادنی ای البر یعنی الکرامة ویکره قوله انت امی ویاابنتی ویا اختی ونحوه (الدرالمختار) قوله اوحذف الکاف الخ بان قال انت امی ومن بعض الظن جعله من باب زید اسد درمنتقی عن القهستانی قلت ویدل علیه مانذکره عن الفتح من انه لابدمن التصریح بالاداة ﴿ردالمحتار صـ۶۲۶ج۲﴾ بخلاف مالو حذف الکاف منها فانه یلغو کما مرویاتی ﴿الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۴۴۹ج۱﴾ لوقال لها انت امی لایکون مظاهراً ﴿الفتاوی الهندیة صـ۵۰۷ج۱﴾

اگر کسی زوجه خودرا خواهر یا مادر بگوید برزوجه اش طلاق واقع نمی شود ونیز ظهار نمی شود البته چنان گفتن یعنی زوجه خودرا خواهر گفتن مکروه است.

﴿فتاوی دارالعلوم دیو بند صـ۲۱۲ج۱۰ هکذا صـ۲۰۴ج۱۰﴾ و﴿امداد المفتین صـ۶۸۷﴾ و﴿عزیز الفتاوی صـ۴۹۳ج۵﴾﴿امداد الفتاوی صـ۴۸۰ج۲﴾﴿فتاوی محمودیه صـ۱۲۶ج۸﴾.

(**سؤال**): دغه مذکور لفظ په عرف کې د طلاق او حرمة د پاره استعمالیږي او په حالت کې دغضب استعمالیږي نو باید دا طلاق صریح سي که نیت وي او که نوي باید طلاق واقع سي (جواب) که څه هم استعمال یې د طلاق او د حرمت د پاره کیږي لکن بیا هم تعریف دصریح نه باندې صادقیږي ولې دصریح په تعریف او بیان کې فقهاؤ لیکلي دي چه صریح هغه دي چه دکثرة استعمال په وجه داسې حدته رسیدلی وي چه سامع ته هیڅ شک او شبهة پاته نسي لکن دالفظ چه هر چا ویلي یا اوریدلي دي د هغه یقین پروقوع د طلاق نوي بلکه شکمن سي او دعلماؤ څه پوښتنه کوي چه آیا ددغه لفظ ویونکي دزوجي حکم څه دي او بل داچه که یو څوک دغه لفظ په غیر حالت کې دغضب یا په حالت کې دخندا او وایي نو هیڅ څوک به دانه وایي چه دا طلاق دي او صریح هغه دي چه په هر حالت کې دسامع یقین وي په وقوع د طلاق لکه دلاندې عباراتو څخه معلومیږي.

فالصریح ماظهر المراد منه ظهورا بینا حتی صار مکشوف المراد بحیث یسبق الی فهم السامع بمجرد السماع حقیقة کان او مجازا و منه الصرح للقصر لظهوره ﴿تبیین الحقائق صـ۱۹۷ج۲﴾ الصریح ماظهر به المعنی المراد ظهورا بینا بسبب کثرة الاستعمال..... فالمعنی الصریح واضح بحیث لایحتاج السامع الی التامل فیه سواء استعمل اللفظ فی المعنی الحقیقی له اوفی غیره کالمجاز المشهور المتعارف مثل لا اشرب من هذا الحوض ای من مائه ﴿اصول

الفقه الاسلامی صـ۳۰۸ج۱ ﴾ یفهم مماذکیر انه یشترط لایقاع الطلاق الصریح مایاتی...... ۴ الایکون مشکو کافی عدد الطلاق او فی لفظه الخ ﴿ الفقه الاسلامی صـ۳۸۰ج۷ ﴾.

(**سوال**): په (عمدة القاری صـ۲۵۰ج۲۰) کی په لفظ کی دیا اختی ویلی دی قال ابویوسف إنلم یکن له نیة فهو تحریم وقال محمدبن الحسن هو ظهارا اذا لم یکن له نیة الخ۔ او حال دا چه اداة دتشبیه هم نسته (جواب): داغه علامة عینی رحمه الله تعالی په ﴿ البنایةشرح الهدایةصـ۳۳۶ج۵ ﴾ کی راوړی دی ولوقال انت امی لایصیر مظاهرا او همدغه دبنایی نقل یی دنورو فقهاؤ داقوالو سره هم مطابق دی او همدارنگه فقهاؤ ویلی دی چه هلته چه اداة تشبیه نوی دامام ابویوسف صاحب او امام ابوحنیفة رحمه الله تعالی رأیه داده چه داقول لغو دی.

وان لم تکن له نیة او حذف الکاف کما فی الدرفلیس بشئی لاحتمال الحمل علی الکرامة وهذا عند ابی حنیفة و ابی یوسف وقال محمد یکون ظهارا قال جمال الاسلام فی شرحه الصحیح قول ابی حنیفة وابی یوسف واعتقده البرهانی والنسفی وغیرهما ﴿ اللباب شح الکتاب بهامش الجوهرة النیرة صـ۸۴ج۲ ﴾ او هغه اختلاف چه په عمدة القاری کی راغلی دی هغه اختلاف په الجوهرة النیرة کی د (انت علی مثل امی او کامی) دلفظ په متعلق راغلی دی ﴿ الجوهرة النیرة صـ۸۴ج۲ ﴾.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## له يوې ولې خځه چې لښتی جلاسوی وي
## په ګډه به ئې كاروي كه يواځې دلويه ولې مالكان؟

**سوال** : محترما دکوه کران دکلی او دفارم کوه کران او به په یوه لښتی کي جریان لری چه دغه لښتی دهغې ویالې ځخه را جلاسوی دی چه هغه دپنج آب په ویاله باندی مشهوره ده اوس دپنج آب خلق وایي چه تاسی تر پایه یا تر بابا صاحب پوری دپنج آب ویاله زموږ سره کار کړئ چه موږ دغه کار دپنځوس کالو راپه دې خوا نه دی کړی آیا دکوکران پر خلقو ددغې ویالې کارول لازم دي کنه ؟

**جواب** : دکوکران او فارم کوکران خلق مکلف دی چه د ویالی په پاکولو کی به دپنج آب دخلقو سره اشتراک کوی ترهغه ځایه پوری چه ددوئ لښتی جلاکیږی ددوئ دغه خبره چه دا پنځوس کاله راپه دی خوا دا کار موږ نه دی کړی شرعاً اعتبار نه لری.

اذا لزم كرى النهر المشترك بين عشرة اشخاص فمصارف اعلى حصة شريك الى نهاية اراضيها تقسم على جميعهم وما بعدها على التسعة واذا مرمن اراضى الثانى فعلى الثمانية ثم يسار على هذا السياق الخ (المجلة المـ۱۳۲۶) اما اذا كان النهر نهرا عاماً فاذ او صل الكرى الى فم نهر قرية فيخلص اهالى تلك القرية من مونة الكرى (دررالحكام صـ۳۳۵ج ۳) قال ابو حنيفة رحمة الله تعالى البداية بالكرى من اعلاه فاذ اجاوز ارض رجل رفع عنه مؤنة الكرى وكان على من بقى..... وبقول ابى حنيفة رحمة الله تعالى اخذ وافى الفتوى كذافى فتاوى قاضيخان (الفتاوى الهندية صـ۳۹۰ج ۵) هكذافى (ردالمحتار صـ۳۱۴ج ۵)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که مځکه اجاره کړي اوپه مځکه دعوه وسي درې فصله معطل سي څه حکم لري؟

**سوال**: د ( ۲ )کالو د پاره ما مځکه اجاره کړه غنم مي په وکرل خلګو دمځکې څخه په زور او به بندي کړي اجاره دار دمځکې مالک ته خبر ورکړی چه دمځکې څخه ئي او به بندي کړي دی خلګ وايي چه مځکه دولتی ده دمځکې مالک سرنه ګرځوی د اجاره دار ( ۳ ) حصوله ناغه سول وروسته مالک دمځکې دعوه شروع کړه مځکه خپل مالک په شرعی اسنادو وګټله د اجاره دار څخه ئی قیمت پوره اخستی دی دلته اجاره دار تاوان وکړی دلته دمځکې مالک حق لری چه دخلګو څخه د( ۳ ) حصولو تاوان واخلي؟ که د مځکي مالک دشریعت دلاری دتاوان حق پیدا کړی نو اجاره دار بیا دمځکې پر مالک حق لری چه د( ۳ ) حصولو تاوان دمځکې دمالک څخه دشریعت دلاري واخلي خلګو دمځکې د مالک څخه په زور اوبه ګرځولی دی؟

**جواب**: مالک حق نه لری چه دخلقو څخه تاوان واخلي که څه هم خلقو په زور اوبه بندي کړي وی دده دمځکي څخه او نه اجاره دار دا حق لری چه دخپلو حصولو تاوان واخلي دمالک څخه لکن هر څومده چه دده دمځکي څخه اوبه بندي سوي دي د هغونه وخت اجرة دې اجاره دار نه ورکوي او نه مالک دا حق لری چه ددغې مدې اجرة د اجارة دار څخه واخلی.

بخلاف مالومنـع الماء من ارضٍ رجل حـتی هلـک زرعـه عطـشالم یـضمن المانـع شیئا( جامع الفصولین صـ۱۳۵ج۲) حقابه دیگری رابملک خود بـرد لایـضمن اذله حـق ولایـة اتـلاف بعضه بواسطة الـشرب وسقی الـدواب والاصـل ان من اتـلف شیئا وله ولایـة اتـلاف بعضه ولویسیر الایضمن کغزاة احرق بعضهم مـافی دارالحـرب من الحطـب وغیـره ( جـامع الفـصولین صـ۸۵ج۲) فالتسلیم الـذی بـسببه یـستحق المؤ جـر المسـمی علی المسـتاجر هو عـبارة عن تخلیة المؤجر بین المسـتاجرو الماجورعلی وجه یـتمکن من استیفاء المـنفعـة بـلا حـائـل یـمنـعـه منـهـا..... حـتی لو عـرضٌ فـی بعـض المـدة او بعض المسافة مایمنـع من الانـتفـاع بـه کـمـالو غـصبت الـدارمن المـستاجر او غـرقت الارضٌ المـستاجرة او انقطـع عنـهـا الـشرب..... سقطت الاجـرة بقـدرذلک کـمـا فـی الهنـدیة وغیرهـا(شرح المجلة الاتاسی صـ۶۸۰ج۲). والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دحج او اوقافو وزارت کارکونکي دحاجیانو وکیلان دی که اجیران؟

**سوال** : لکه څرنګه چه تاسو خبر یاست چه هر کال دحج او اوقافو داداري لخوا ټول مملکت ته دحج دداخلی اعلان کیږی هغه په دې طریقه چه نومړی اداره مخکې تر حج دحجاجو مصارف لکه دطیاری کرایه دمکان کرایه ،خاک پولی او داسی نور اټکل کړی په دې معنی چه دهر مصرف حد اعظم په فهم کی ولری تر دې وروسته دهمدغه اورګان له طرفه څخه اعلان وسي چه هغه کسان چه اراده دحج لری کولای سی چه همدغه اداراتو ته مراجعه وکړي او دځان سره به هر سړی دومره روپۍ مثلاً دیارلس سوه یا پنځه لس سوه یا شپارس سوه ډالر او څو قطعي عکسونه او ورسره تصدیقونه په لاس کی لری او دداخلی په وخت کی به ئی ورکوي اوس ددغه اورګان و حج او اوقافو مسئولین مستاجرین دی او که وکلاء او که بل څه ؟

**جواب** : څرنګه چه دحاجیانو په مسئله کی تعریف داجاری صادقیږی فلهذا دغه مسئولین دحج او اوقافو باید اجیران وبلل سی نه وکلاء ولی دلته هم عقد په مابین کی سته چه دتعرفی ورکولو او پیسو تحویلولو په جریان کی دغه عقد مابین ته راځی او هم دغه عقد پر منافعو دی لکه هغه سهولتونه چه په تګ راتګ او په مدة کی داقامة په حرمینو شریفینو کی حاجیانو ته حاصلیږی چه یوا هم مقصد دعقد هم دغه سهولة دی او دغه عقد هم په عوض سره دی چه مرا دځنی هغه پیسی دی چه دمصرف سوی پیسو څه زائدی دی چه هغه دوزارت حق کیږی او تعین دمدی او عمل او نورو شرائطو حواله کیږی وعرف ته او که فرضاً به بعضی امورو کی جهالة وی نو هغه جهالة مفضی ونزاع ته ندی نو فساد هم نه راولی.

اما تفسيرها شرعاً فهى عقد على المنافع بعوض كذافى الهداية ( الفتاوى الهندية صـ۴۰۹ج ۴ ) ( الفقه الاسلامى صـ۷۳۲ج ۴ ) و ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲ج ۵ ) وهل تنعقد بالتعاطى ظاهر الخلاصة نعم ان علمت المدة الدرالمختار قوله ان علمت المدة صوابه الاجرة ( ردالمحتار صـ۴ج ۵ ) السمسار والمنادى والحمامى والصكاك وما لايقدر فيه الوقت ولامقدار العمل لما كان للناس به حاجة جازويطيب الاجر الماخوذ لوقدراجر المثل ( الفتاوى البزازية بهامش الهندية صـ۴۰ج ۵ ) و ( ردالمحتار صـ۳۲ج ۵ ) الجهالة براد بها الجهالة الفاحشة اوالتى تفضى الى نزاع يتعذرحله وهو النزاع الذى تتساوى فيه حجة الطرفين بالاستناد الى الجهالة ( الفقه الاسلامى صـ۳۷۹ج ۴ ).

وبما ان عرف الناس مصحح للشروط فى نظر الفقهاء فكل شرط فاسد فى الاصل ينقلب صحيحا ملز ما اذاتعارفه الناس ( الفقه الاسلامى صـ۳۸۲ج ۴ ) استعمال الناس حجة يجب العمل بها ( المجلة المـ۳۷ ) فكل ماافسدالبيع ممامر يفسدها كجهالة ماجوراو اجرة الخ ( الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۳۲ج ۵ )

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دویالي یالښتي حریم څومره دي؟

**سوال**: زه حاجي محمد گل غواړم چه ومونږ ته د ولي د حریم په هکله معلومات را کړئ چه یو څوک غواړی خپله مځکه دهغې ولي څخه جدا کړی چه پکښې تیره سویده په کومه اندازه حریم ورکړی اکثراً ددغه حریم پر اندازه دخلگو تر منځ جنجال وی ستاسو څخه خواهش کیږی چه په دغه هکله شرعي طریقه راوښوئ .دغه لښتی زما د مځکې په بغل کی تیر سویدی زه غواړم چه دلښتی او خپلی مځکی په مابین کی دیوال ووهم او دغه لښتی مشترک دی تقریباً (۱۰) کسانو په مابین کی چه زه هم د داغه لښتی څخه خپله مځکه او به کوم.او د دغه لښتی بغلونه هم دمځکی څخه را پورته دی او په کال کی یوه پلاپا کولو ته ضرورت لری؟

**جواب**: دغسی ویاله چه هر وقت کار ولوته اړتیا نلری حریم یی په اندازه د نیمایی دویالی دی بناء پر قول دامام ابو یوسف صاحب رحمة الله تعالی علیه چه داغه قول مفتی به دی او هغه ویاله چه هر وقت کارولو ته ضرورت لری هغه په اندازه داحتیاج او ضرورت حریم ورته تاکل کیږی.

حریم النهر الکبیر الذی لایحتاج الی الکری کل وقت من کل طرف مقدار نصفه فیکون مقدار حریمه من جانبیه مساویا لعرضه (المجلة المـ۱۲۸۳) حریم النهر الصغیر المحتاج للکری یعنی الجداول والقنی تحت الارض علی مقدار مایلزمها من المحل لاجل طرح الاحجار والطین حین کربها (المجلة المـ۱۲۸۴) قوله حریم النهر الکبیر الخ _ وهذه المادة مبنیة علی مذهب الامام ابی یوسف وبما ان رأی المومأ الیه فی هذه المسالة مفتی به فقد اختارته المجلة (دررالحکام صـ۲۸۹ج ۳) والفتوی علی قول ابی یوسف رحمة الله تعالی کذافی الفتاوی الکبری (الفتاوی الهندیة صـ۳۸۷ج ۵) هکذافی (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۱۰ج ۵) حریم النهر الصغیر المحتاج للکری فی کل وقت ...... هو مقدار مایلزمها حین الکری من المحل لطرح احجارها واوحالها الخ ...... (دررالحکام صـ۲۹۰ج ۳) والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که موټر په داسي ډول چپه سي چې ترافيکي ملامتيا

## ورباندي نه وي خوک پکي مړسي پرموټروان ديت سته؟ که سته نوڅومره؟

(**اول سوال**): دموټر چلولو په وخت کی یعنی دموټر د سرعت په وخت کی د ټیر د چاودیدو له کبله موټر چپه سو او موټروان او نور کسان زخمي او یو کس مړ سو په شهادت ورسیدی إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ اوس د ترافیکو د قوانینو سره سم موټروان بی گناه ثابت سویدی چه اوس د شرعی مطابق پرموټروان کوم دیت سته او که نسته ستاسو د لوړ مقام څخه هیله کیږی چه ومونږ ته جواب ولیکی او زمونږ مسئله حل سی ؟

(**دوهم سوال**): که چیری دیت وی نو به څونه وی ؟

**د اول سوال جواب**: که چیری د غه موټروان د عادی لارو او عادی سرعت څخه استفاده کړی وی او د واقعی ترمخه هم ټایر جوړ وو او خلل پکښی نو وا و د ترافیکی قوانینو څخه ئی هم مخالفت نوی کړی او د موټر د ټایر د چاودیدو له کبله موټر چپه سوی وی نو په دی صورت کی نه دیت سته نه نور تاوان او ضمان پر ده لازمیږی او که ده د غیر عادی لارو څخه استفاده کړی وی یائی بل یو داسی فعل کړی وی چه هغه د دغه واقعی سبب گرځیدلی وی بیانو پر ده باندی دیت لازمیږی.

اذا كانت السياره سليمة قبل السير بها وكان السائق يتعهدها تعهدا معروفا ثم طرء عليها خلل مفاجئ فى جهازمن اجهزتها حتى خرجت السيارة من قدرة السائق ومكنة من ضبطها ..... لو تقلبت بسبب ذلک على احد او شئ فمات او تلف فلا ضمان عليه ..... وذلک لان ماحصل بالسيارة بعد خروجها من ضبط السائق بحادثة حدثت بجهازمن اجهزتها لاتصح نسبتها الى السائق ولايقال ان السائق مباشر الاتلاف وغاية مايقال فيه انه مسبب للهلاک فانه هو الذى سير السيارة فى مبدء الامروبما انه يشترط لتضمينه التعدى ..... نعم ان اخل بشرط من هذه الشروط مثل عدم تعهده للسيارة او تسييره هامع خلل ظاهر فى جهازمن اجهزتها او سوقها سوقا عنيفافانه يضمن فى كل ذلک

(بحوث فی قضایافقهیة معاصرة صـ٣١٣) والسـائق مسئول عمایحدثه بالغیر من اضرارسواء فی البدن ام المـال اذا تحققت عناصرها من خطـاو ضـرر ولایعفی من هذه المسئولیة الافی الحالات الایتة-١- اذا کان الحادث نتیجة لقوة قاهرة لایستطیع دفعها وتعذر علیه الاحترازمنها وهی کل امر عارض خارج عن تدخل الانسان (الفقه الاسلامی صـ٥٢١٦ج ٧ ط جدید) المتسبب لایضمن الابالتعمد (المجلة المـ٩٣)

واللہ تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دولتي مځکه يوقومندان

## شخصي خلګوته ورکړي دولت ئې بيرته ځيني اخيستی سی؟ که اخيستلای ئې سي دهغوئ بناوي څه حکم لري؟ اوپه بناوکي فرق چې ځيني پوره وي ځيني مانده؟

**سوال**: څرنګه چه دملی بس يا شهری موټرانو سابقه استادګاه دډنډ په ولسوالۍ کې او دګندګان په سيمه کی (۲۹۴) قطعه مذکوره اندازه (۱۲) جريبه (۱۸) بيسوی دکستر دنقشی په حدود اربعه ثابته سوی دتوپکيانو په وخت کی داستاد عبدالحليم په دوره کې ئې خپلو انډيوالانو ته په خپل سرئی په نمره تقسيم کړی دی او هغه نفرو په بشپړه توګه قبضه کړی او سرايونه ئی پر جوړ کړيدی چه بعضی سرايو کی خلګ سکونت کوی او بعضی سرايونه خالی دی. حالا امارت او خاص دملی بس رياست نوموړې مځکې ته اشد ضرورت لري چه خپل کار ځنی واخلی لطفاً دشريعت مقدس په رڼا کی دلاندی سوالو ته دحل ضرورت ليدل کيږی.

(**اول سوال**): نوموړی مځکه دامارت دخاص ارګان مربوطه چه په پورته شکل تقسيم سوی دی ايا امارت ئی ورځنی اخستی شی او حق لری که يا ؟

(**دوهم سوال**): که امارت حق داخيستو ولری بيا دميشته کسانو سره څه چلند کوی او هغوئ د څه شی حق لری دخپل مصرف په اړوند؟

(**دريم سوال**): ايا فرق ئی سته دهغو کسانو چه سرايونه ئی مکمل جوړ کړی وی او سکونت پکښی کوی او دهغه کسانو چه مکمل ئی جوړ کړی وی خو سکونت نه پکښی کوی يا ئی څه اندازه کار پری کړی وی ؟

((دپورته سوالو دحل کيدو وروسته هغه اجراءات چه په نظر کی وی عملی به شی)).

**داول سوال جواب**: نوموړی مځکه کچيری شخصی مملوکه نوی دخلقو نو امارت حق لری چه دخلقو څه يی بيرته واخلی،

ان خلاف الكرخي المذكور انما هو فيما اذا كانت الارض ملكا اما اذا كانت وقفاً فيومر بالقلع والرد مطلقاً اتفاقا كما صرح به في مجمع الانهر لان الارض

لایجوز تملکها (شرح المجلة الاتاسی صـ۴۴۲ج ۳). (سلیم باز صـ۵۰۲ المـ۹۰۶) و(مجمع الانهر صـ۴۶۳ج ۲) تتمة - اذا بنی او غرس فی ارضٍ متروکة لمنافع العامة کالطریق والمرعی فانه یو مر بالقلع فی کل حال ای ولو کان القلع مضر ابالارضٌ او کان قدبنی او غرس بتاویل ملک اذلیس لبعض العامة او لکلهم اذا اجتمعوا ان یحولو اهذه الارضٌ لغیر ماوضعت له فی الاصل (سلیم باز صـ۵۰۴).

**ددوهم او دریم سوال جواب**: دمیشته کسانو مصرف که چیری مال متقوم وی لکه لرگی گاډر دروازی او داسی نور هغه دی وکاږی او یو دی سی او که غیر متقوم وو دهغه حق نلری لکه دمزدور او دبناء اجرة او داسی نور.

اذا کرب ارضاً غصبها ثم استردها صاحبها فلیس للغاصب ان یطالب باجرة الکراب (المجلة المـ۹۰۸) قال فی الهندیة رجل غصب ارضامو قوفة فانکان الغاصب زاد فی الارضٌ من عنده انلم تکن الزیادة مالامتقوماً بان کرب الارضٌ وحفرالنهر والقی فی الارضٌ سر قینا واختلط بالتراب وصار بمنزلة المستهلک فان القیم یسترد الارضٌ بغیر شئ آه وفی الخانیة ولو غصب نخلا او زرعا فسقاه وانفق علیه حتی انتهی فلاشئ له وکذالو قصر الثوب المغصوب (سلیم باز صـ۵۰۶) (الفتاوی الهندیة صـ۴۴۷ج ۲).

**تنبیه**: نوموړی مځکه یا نوری مځکی ترهغه پوری حکومتی او دولتی مځکی نسی بلل کیدلای چه حکومت یو شرعی دلیل او ثبوت نوی وړاندی کړی یوازی دا خبره چه دامځکه په کاډسترکی قید ده کافی نده ولی داد شرعی دلائلو څه ندی

ولیس للامام ان یخرج شیئا من یداحد الابحق ثابت معروف (ردالمحتار صـ۲۸۱ج ۳)

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دولتي مال چاته په کرایه ورکړي هغه ئې شریک ته ورکړي څه حکم لري؟

**سوال**: دکانو او صنایعو ریاست مربوط یو باب ګدام محترم عبدالکریم ته دمیل د جوړولو لپاره په کرایه ورکړی کرایه دګدام به دمیل دچالانیدو له نیتی څخه شروع کیږی کله چه میل چالان سو وروسته له دوومیاشتو عبدالکریم دغه میل پخپل شریک عبداللطیف باندی خرڅ کړ خو ۳۷۰۰۰ کالداری دکرایی په نامه عبدالکریم دعبداللطیف څخه اخیستی دی حال دا چه دګدام کرایه باید دکال په پای کښی دکانو او صنایعو دریاست په حساب دافغانستان بانک ته تحویل شی اوس ستاسی دمحترم حضور څخه پوښتنه داده چه نوموړی ۳۷۰۰۰ کالداری دعبدالکریم حق دی یا دعبداللطیف او یا دکرایي په عوض کښی دکانو او صنایعو په مربوطه حساب کښی دافغانستان بانک ته وسپارل سی دپوره معلوماتو په خاطر یوه ورقه قرارداد خط دکانو او صنایعو ریاست او عبدالکریم ترمینځ او یوه ورقه قرارداد دعبدالکریم او عبداللطیف ترمینځ ددې لیک مل درته تقدیم سول هیله ده شرعی فتوی راکړی؟

(دکانواوصنائعورئیس ملااکبرشاه جمالی)

**جواب**: محترم مستفتی صاحب هغه خط چه دعبدالکریم او محمد لطیف په مابین کی لیکل سوی دی او بیا د معدن او صنایع دمحترم رئیس صاحب له طرفه دستخط سوی دی دهغه څه دامعلومیږی چه دغه اجاره دګدام دعبدالکریم سره فسخه سوی ده او نوی عقد دمحمدلطیف سره سوی دی او په هغه شکل سوی دی لکه دعبدالکریم سره چه سوی دی نو پر دی اساس محمدلطیف مکلف دی چه دګدام کرایه پر هغه ترتیب بانک ته تاویل کړی لکه دعبدالکریم سره چه په قرارداد خط کی لیکل سوی دی او هغه ۳۷۰۰۰ کالداری چه

عبدالکریم اخستی دی کـه ئی خاص دگدام دکرائی پـه نیت اخستی وی او بـل لحاظ نوی پکښې نو حق نلری بیرتـه بـی محمد لطیف تـه ورکوی هغـه بـه دکال پـه پـای کی خپله کرایه بانک ته تاویله وی لکه څنګه چه موافقه سوی ده دا چه موږ وویل چه پخوانی اجاره فسخه او نوی عقد سوی دی هغه دعبدالکریم او محمد لطیف دقرارداد خط پـه شپږمه مـاده کی ویل سوی دی

( یہ کہ فریق اول اصل معاہدہ پر عملہ درآمد کی بعد متعلقہ فلور ملز سے کوئی تعلق نہیں رکھیں گے اور فریق دوم ہی الخ)او په اوومه ماده کی لیکلی دي.

( یہ کہ آج تاریخ تک تمام سابقہ ادائگاں بشمول ترانسفار مزکی قیمت وبل بجلی وکرایہ سائیٹ گذشتہ وآیندہ بذمہ فریق دوم یعنی محمد لطیف صاحب وغیرہ ہونگی )
او په نهمه ماده کی لیکلی دی.

( یہ کہ یہ معاہدہ ان امور میں جو کہ امارت اسلامی افغانستان سے متعلقہ ہیں امارت اسلامی کی نمائندہ برای صنعت ومعادن وغیرہ کی تصدیق وتصوب پر منحصر ہے لہذا ان کی تصدیق کی بعد نافذ العمل ہوگا ) .

تـصرفات الـفـضولی تـقـع منـعقـدة صـحيحة لكنـهـا موقوفـة علـى اجازة صـاحـب الـشـان وهـو مـن صـدر الـتـصرف لاجلـه ان اجـازه نفـذ وان رده بطـل ( الفقـه الاسـلامی صـ١٦٧ج ۴ )لوحـدث عـذر مـانع لاجـراء موجـب العقـد تنـفـسـخ الاجـارة مـثلاً لواسـتاجر طبـاخ للعـرس ومـات احـد الـزوجين تنـفـسـخ الاجـارة ( المجلة الـمـ۴۴۳ )

والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دیوه ورور زامن غائب وي دخورزامن ئې د اکا له زوی څخه دمور حق غوښتلای سی چې داکا دزامنو په منځ کي تقسیم هم نه وی سوی؟

**سوال**: څرنګه چه رب العزت شاهد او واحد دی چه زما د اکازامن دا ۱۵ کاله کیږی چه وخارج ته يي هجرت کړی دی دژوند او مرګ حال ئی نسته ملکیت ئی زماسره ګډ دی تقسیم نه دی سوی اوس ددوئ دخورزامن وماته وایي چه زمونږ دمور حق راکړه حال دا چه ددوئ خور مړه سوی ده زه ورته وایم چه تاسو خو په ما کی حق نه لرئ هر کله چه ستاسو ماماګان راغلل چه هغه زما داکازمن دی زه به ددوئ سره دملکیت تقسیم او ترکه وکړم بیا تاسو خپل حق ددوئ څخه واخلئ زه ستاسو دمور حق نسم درکولای ځکه چه صبا ورځ زما داکا زامن هیواد ته راسی ووايي چه مونږ خپله خور په حق رسولی وه تاولی ورکا وه نو زه لاجوابه پاته کیږم او دامسئولیت زه پرغاړه نه اخلم نو زه د دارالافتاء دعالی مقام څخه احترامانه هیله کوم چه ما داخرت دعذاب څخه وژغوری او ددوئ دجنجاله څخه نجات راکړی او دشریعت غراء محمدی ﷺ حق لاره راته وښیی چه زه پر هغه لاره باندی روان سم ځکه چه زه یو مظلوم انسان یم (حاجی عبدالرحیم)

**جواب**: داچه ستاسو ترمابین دملکیت تقسیم نه دی سوی او بعضی وارثان غائب دی او دهغوئ دخور زامن خپل حق غواړی نو اوس علاج دادی چه هغه دخور زامن یا یوبل وارث به په محکمه کی دقاضی څخه مطالبه دتقسیم کوی او قاضی به د دوی تر مابین جبراً تقسیم کوي او هر یوه ته به خپل حق ور رسوی او ستاسو داخبره چه دخور زامنو ته وایاست چه زه ستاسو دمور حق نسم درکولای ولی که زما داکا زامن راغله او هغو راته وویل چه مونږ خپله خور په حق رسولی ده داخبره صحیح نه ده ولی تاسو تر اوسه تقسیم نه دی کړی نو هغوئ به څنګه دخپلي خور حق ورکړی وی حال دا چه دتقسیم ترمخه نه هغه خور خپل حق هبه کولای سی نه ترتیربدلای سی . او ستاسو ترمابین قاضی تقسیم کولای سی که دغه څلور شرطه موجود وه:

(**اول**) دغه ملکیت به تاسو ته په میراث پاته سوی وی

(**دوهم**) دهغه مورث (متوفی) پر مرگ او پر عدد دوارثانو به شاهدان تیروی او که وصی موجود وو دهغه پر وصیة به شاهدان تیروی

(**درېیم**) اقلاً دوه کسه وارثان به حاضرېږی که څه هم یو صغیر وی یا موصی له وی.

(**څلورم**) ټول ملکیت به دحاضرو وارثانو سره وی.

یشترط الطلب فی قسمة القضاء فلذلک لاتصح القسمة من القاضی جبرا مالم یقع طلب ولومن احد اصحاب الحصص ﴿المجلة المـ۱۱۲۹﴾ هکذافی ﴿الفقه الاسلامی صـ۶۶۷ج ۵﴾ تصح قسمة القضاء تارة ولوغاب الشرکاء الاانه یلزم فی ذلک وجود شروط اربعة الشرط الاول انیکون المال المراد تقسیمه موروثاو مشترکا من جهة الترکة ..... الشرط الثانی انیکون المال المشترک منقولا او عقارافتقام البینة علی موت المورث وعلی عدد الورثة واذا کان الخصم الموصی له فتقام البینة علی الوصیة ..... الشرط الثالث یشترط حضورلااقل من وارثین من الشرکاء او حضوروارث وموصی له ولوکان احدهما صغیرا ..... الشرط الرابع یجب انیکون کل المال المقسوم فی یدالحاضرینالبالغین الـخ ﴿دررالحکام صـ۱۲۶ج ۳﴾ هکذافی ﴿الفتاوی الهندیة صـ۲۰۹ج ۵﴾ و ﴿الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۱۸۱ج ۵﴾ صرح علماؤنا بان الارث لایصح اسقاطه اذهو جبری لاسیمافی الاعیان ..... وفی الاشباه والنظائر لوقال وارث ترکت حقی لم یبطل حقه ﴿الفتاوی الخیریة صـ۹۹ج ۲﴾ الارث جبری لایسقط بالاسقاط ﴿تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۲۶ج۲﴾ هکذافی ﴿دررالحکام صـ۶۹ج ۴﴾ کذلک لو وهب احد حصته فی ترکة قبل ان یعلم مایصیبه منها من المال لاحد الورثة لاتصح الهبة کمالاتصح الهبة فیما لو قال احد وهبت مقدارامن الاشیاء التی املکها لابنی الصغیر ولم یعین الاشیاء التی وهبها ولم یعلم بها (التنقیح وعلی افندی)﴿ دررالحکام صـ۴۳۹ج ۲﴾ والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه کوچنۍ نجلۍ کوچني هلک ته په نکاح کړي (۱۵) کاله وروسته معلومه سي چې هلک لیونی، فلج او عصبي ده انجلۍ له نکاح څخه خلاصیدای سي؟

**سـوال**: من محمد نام ولد شیر محمد پانزده سال قبل صبیه یا دختر خورد که هنوز چند ماهه بوده عنوانی نامزدی زن وشوهری برای برادر زاده چند ماهه خود به لفظ ایجاب از طرف من وقبول از طرف مادر کلان بحضور دونفر شاهدان صورت گرفته است درین موضوع بین من ومادر کلان این پسر ایجاب وقبول گردید بعد ازیک سالگی معلوم شد که این طفل دارای سلامت جسمی وروانی نبوده به مرور زمان روشن گردید که طفل گنگ فلج دیوانه وفاقد سلامت عقلی وفکری می باشد ازهمان وقت اقدام به تداوی آن شروع شد تا مجرب ترین داکترهای شهر کراچی پاکستان ان راجع نمودیم ولی هیچ گونه بهبودی درحالت آن به مشاهده نرسید بالاخره علاج ناپذیر تشخیص گردید اکنون که به سن پانزده سالگی رسیده قادر به تکلم کردن راه رفتن منظم خوردن آب وغذا ورفع حاجت به اختیار خود نبوده وهم از نظر عقل وهوش هیچ چیز تشخیص داده نمی تواند واگر دست های آن ازاد باشد مواد فضله وغایطه خود می خورد اکنون به ریسمان بسته بوده نان کس دیگربد هنش میدهد ومواد رفع حاجت ان پاک میکند فعلاً که دخترم به سن پانزده سالگی رسیده حاضر نیست که در قید نام این انسان ناقص الخلقه از حقوق شرعی وانسانی خود محروم باشد بناء جریان موضوع به قرار فوق به محضر شما عرض شد وامید دارم که بایک ملاحظهٔ عمیق شرعی متناسب به حالت عقلي جسمی مدني وشرعی این پسر فتوی شرعی صادر فرمائید تا صبیه مظلومهٔ من از قید نامزدی آن خلاص شود؟

**جواب**: اگر واقعه همین طور باشد که مستفتی بیان نموده ونوشته کرده وهمین اوصاف نوشته شده مثل جنون کامل وفلج وغیره بتمامه درین پسر موجود باشد ودختر طلب فسخ نکاح نماید درین صورت جائز است که قاضی صاحب محکمهٔ درمیان ایشان تفریق کند ونکاح ایشان فسخ کند وعمل متأخرین احناف رحمهم الله هم براین است لکن شرط اینست که دختر هیچ گاه اظهار رضاء باین نکاح در حالتی نکرده باشد که بجنون زوج خود خبردار باشد باید گفته شود که اگر مجنون باوجود جنون قدرت جماع وخانه داری نداشته باشد حکمش حکم عنین باشد که باتفاق جمیع ائمهٔ وحنفیه رضوان الله علیهم اجمعین قاضی میتواند که بعد از مهلت دادن یکسال فسخ نکاح کند اما اگر قدرت جماع یا عنین بودن اوثابت نباشد لکن جنون داشته باشد جنون که باعث ایذاء شدید میشود مذهب امام صاحب وامام ابویوسف رحمهم الله تعالی عدم جواز فسخ است ومذهب امام محمد رحمة الله تعالی جواز حکم بفسخ است که عمل متأخرین حنفیهٔ رحمهم الله هم بقول امام محمد رحمة الله تعالی علیه است لکن قضاء قاضی شرط است در صورت فسخ زیراکه بحکم قاضی قول مرجوح راجح میشود وحکم قاضی رافع خلاف است وبعد از حکم قاضی قول ضعیف ومرجوح قوی ومعتمد علیه میگردد.

قال محمد رحمه الله تعالى ان كان الجنون حادثا يؤجله سنة كالعنة ثم يخير المرأة بعد الحول اذا لم يبرء و انكان مطبقا فهو كالجب و به نأخذ كذافي الحاوى القدسى ﴿ الفتاوى الهندية صـ۵۲۶ج۱ ﴾ و التفريق طلاق لكون الحاكم نائبا فيه مناب الزوج و هذا هو قولنا معشر الحنفية كما فى الهندية قال محمد انكان الجنون حادثا الخ ﴿ اعلاء السنن صـ۲۳۹ج۱۱﴾ هكذافى ﴿ معين القضاة و المفتين صـ۸۷ ﴾.

(**سوال**) اگر زوج را جنون شد بدرخواست زوجہ تفریق آن تواند شد یا نہ (الجواب) اگر جنون حادث باشد ہمچو عنین تامدت یکسال مہلت دادہ خواہد شد وبعد آن اگر صحت نیافت زوجہ را اختیار است واگر جنون مطبق است فی الفور فسخ میتواند شد حاجت بمہلت دادن نیست الخ ﴿ مجموعة الفتاوى بهامش خلاصة الفتاوى صـ۴۲ج۲ ﴾ هكذافى ﴿ جديد فقهى مسائل صـ۱۲۰ج۲﴾ ﴿ فتاوى محمودية صـ۱۷۰ج۸﴾ و ﴿ كفايت المفتى صـ۳۷۷ج۲ ﴾ امداد الاحكام صـ۲۹۱ج۲ وصـ۷۰۲ ج ۲ ﴾ و ﴿ امداد المفتين صـ۲۷۵ ﴾.

حضرت تھانوی رحمۃ اللہ علیہ نے اپنے زمانہ میں تمام علماء ہند کی اتفاق سں دوسری ائمہ اورامام محمد رحمۃ اللہ تعالی علیہ کی قول پر فسخ نکاح کا فتوی دیاہے تفصیل کے لئے دیکھے الحیلۃ الناجزۃ (ظفیر) ﴿ہامش فتاوی دار العلوم دیوبند صـ۲۵۵ج۱۰﴾.

شروط التفريق بالعيب..... (۱) الّايكون طالب التفريق عالما بالعيب وقت العقد..... (۲) الّا يرضى بالعيب بعد العقد فانكان طالب التفريق جاهلا بالعيب ثم علم به بعد ابرام العقد و رضى به سقط حقه فى طلب التفريق ﴿ الفقه الاسلامى صـ۵۲۱ج۷ ﴾ وفى شرح الطحاوى و انكان مجنونا فوجدته عنينا فانه ينتظر حولا و لا ينتظر الى البرء ﴿ تاتارخانية صـ۵۳ج۴ ﴾ اتفق ائمة المذاهب الاربعة و الامامية على التفريق بعيبين و هما الجب و العنة ﴿ الفقه الاسلامى صـ۵۱۷ج۷ ﴾ اتفق الفقهاء على ان الفرقة بالعيب تحتاج الى حكم القاضى وادعاء صاحب المصلحة لان التفريق بالعيب امر مجتهدفيه و مختلف فيه بين الفقهاء فيحتاج الى قضاء القاضى لرفع الخلاف..... و قضاء الحاكم يقطع دابر الخلاف الفقه الاسلامى صـ۵۲۰ج۷ ﴾. (شرائط تفريق) (۱) جنون خطرناک حدتک ہو شدید ایذاء کا باعث ہو معمولی جنون میں خیار تفریق نہیں الخ ﴿ احسن الفتاوى صـ۴۲۵ج۵ ﴾.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که ديو ضرورت په خاطر مځکه چاته هبه کړي بيرته رجوع کولای سي؟

**سوال**: زموږ د موضوع تفصيل ډير زيات دی خو په لنډ ډول باید ووایو چه زمونږ یو مځکه ده چه په دغه مځکه کی زمونږ ۶ ورونو اول واري خپلی مساوی حصص درلودی او دغه مځکه مونږ پخپله رانیولی وه موروثه نه وه او مونږ چه اول وارخپل تقسیم وکړنو زمونږ د ټولو ورونو په رضا او رغبت سره قبولي وکړی خو بیا هم حصص د جریب له لحاظ معلومي سوي خو د حدودو په لحاظ نسوی معلومي د دې وروسته د اصلاحات اراضی د قانون له وجې مونږ مجبوره سوو او تقریبًا ۸۷۰ جریبه مځکه مو د خپلې کورنی انسانانو ته هبه کړه هغو ته مو په حدودو تقسیم ور وکړی او حقابی مو ور معلومي کړي او هغوئ قبض کړی بیا مونږ هجرت و کړ هغه نوره باقی مځکه بیرته زمونږ ورونو تر مابین مشترکه پاته سوه . اوس زمونږ بعض ورونه وایی چه هغه ۸۷۰ جریبه مځکه چه مونږ د کورنی و اعضاء ته ورکړی وه چه عبارت دی د زوجات او زامنو څه هغه خو مونږ د اصلاحات اراضی او مترقی مالیه د قانون د ضرورت په اساس هبه کړی وه اوس چه هغه قانون د مابین څه تللی بولو مونږ په هغه هبه راضی نه یو بله پوښتنه دا ده دغه ۲۳ قطعي باقی مځکه د بعضی ورونو په اجازه او د بعضی بې اجازې تقسیم کیدلای سی کنه؟ ﴿المستفتی عبدالقادر﴾

**د اول سوال جواب**: څرنګه چه دغه ۶ ورونو ستاسو د لیکلی بیان مطابق ټولو پخپله رضا او رغبة دغه ۸۷۰ جریبه مځکه و خپلو زوجاتو او زامنو ته ورتقسیم کړی او ورهبه کړی نو د دوئ دغه هبه که د هر ضرورة په اساس وی بیرته رجوع پر دغه هبه نسی کولای او دغه مځکه د موهوب لهم ده.

من وهب لاصوله و فروعه او لاخيه اواخته ..... فليس له الرجوع ﴿المجلة المـ۸۶۶﴾ لو وهب كل من الزوج و الزوجة صاحبه شيئا وسلمه حال كون الزوجية قائمة بينهما ليس له الرجوع ﴿المجلة المـ۸۶۷﴾ هكذافى ﴿الجوهرة النيرة شرح القدورى صـ۴۲۵ ج ۱﴾ و﴿الفقه الاسلامى صـ۳۱ ج ۵﴾ ان الشيوع الذى من طرف الواهب فقط ليس مانعًا من تمام الهبة بالاتفاق فلو وهب شخصان

اموالهما المشتركة القابلة القسمة لشخص واحد فبما انه قد سلم المال جملة و قبض جملة جازت اذ لاشيوع في ذلک ( دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۲۴۴ج۲ ) هکذافی ( الفقه الاسلامی صـ۱۵ج۵ ).

**د دوهم سوال جواب**: دغه شپږ ورونه چه په دغه مځکه شریکان دي که بعضو اراده د تقسیم درلوده او طلب د تقسیم یی کاوه او هغه نور ورونه په راضی نه وه او تقسیم یی نه کاوه نو قاضی به ئی مجبوره کوي و تقسیم ته که ځای د تقسیم قابل وو او که په دغه شپږوکی یو غائب وو او دغه مځکه دوی رانیولی وه میراثی نه وه نو بیا قاضی نسی کولای چه تقسیم وکړی تر ځو چه ټول حاضر سوی نه وي.

اذا طلب احد الشركاء القسمة وامتنع الاخر ..... انکان المال المشترک قابلا للقسمة يقسمه الحاكم جبرا و الافلا يقسمه ( المجلة المـ۱۱۳۰ ) الطلب فی قسمة القضا شرط فلا تصح القسمة جبرا من الحاكم الا بطلب احد الشركاء ( المجلة المـ۱۱۲۹ ) اما اذا كان المال غير مشترک من جهة الارث بل كان مشتركا بسبب آخر كاشتراء المال المشترک فليس للقاضی تقسيمه ولو كان الغائب شريكا واحدا ..... مثلا لو اشترى خمسة اشخاص بالاشتراک عقارا و قبضوه ثم طلب بعد ذلک الشركاء الحضور فی غيبة احدهم من القاضی تقسيم العقار المذكور و تسليم حصة الغائب الى يد عدل فليس للقاضی اجراء التقسيم ( دررالحکام صـ۱۲۶ج۲ ) هکذافی ( سليم باز صـ۶۲۷ ) و ( تنقيح الفتاوی الحامدية صـ۱۷۴ج۲ )

والله ﷻ تعالى اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**که دموټرانو دنمایندګي نماینده ظلم کوي**

**رشوت اخلي دولت دغه نمایندګي په خپل لاس کي اخیستلای سي**

**سوال**: د جناب محترم عالیقدر امیرالمومنین و لوړ حضور ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

محترما: مونږ ټول موټروانان د قندهار ولایت او نورو ولایاتوستاسو لوړ حضور ته داسی عرض وړاندي کوو زمونږ سره په هرات، غزنی، او کابل کی د موټرانو د نمایندګی له خوا ډیر ظلم (ستم) او بې عدالتي کیږي داسی چه د پیسو او رشوت په مقابل کی د موټروانانو حق پایماله کیږي یعنی هر هغه موټر ته چه پیسی او رشوت و نمایندګی ته ورکړی اول نمبر ورکول کیږي چه دی مابین کښی یو موټر شل شپې کوی او بل موټر یوه یا دوې شپې کوي او د هر موټروان څخه پنځه یا شپږ لکه افغانی د رشوت په توګه اخیستل کیږي نو ستاسو د لوړ حضور څخه هیله لرو چه د هرات، غزنی، او کابل لکه د قندهار نمایندګی چه د طلباء کرامو لاس ته ورغلي او صدفیصد عدالت پکښی روان دی زمونږ غوښتنه ستاسو د لوړ حضور څخه دا ده چه د ټولو ولایاتو پخوانی نمایندګی د طلباء کرامو لاس ته ورکړی چه مونږ د پخوانی نمایندګیو د ظلم زور بی عدالتی او ستم څخه خلاص شو خدای ﷻ دی تاسو ته د نیکو عوض درکړی؟

موضوع امیرالمؤمنین دامنیی قومندان او هغه ابتدائیه محکمی ته او هغو دارالافتاء ته حواله کړل

**جواب**: محترم مستفتی صاحب په دې هکله باید حکومت داسی یو تصمیم و نیسی چه په هغه کی د موټرانو نظم هم برابر سی او د نمایندګیو مالکانو ته هم ضررونه رسیږي ولی د حکومت أو امر به داسی وي چه د ټولو عوامو مصلحت پکښی کی وي نه به یوازی د موټروانانو نفع او مصلحت په نظر کي نیسی نه یوازی د نمایندګی والا نه به د حکومت او بیت المال دپاره استفاده په نظر کی نیسی . دا هم کیدلای سی چه طالبان خپله نمایندګی جوړې کړی او نوری نمایندګی هم پر خپل حال پریږدي بیا که په موټروانانو کی هر څوک د نورو نمایندګیو څخه په عذاب وه هغه به د طالبانو په نمایندګی کي شمولیت کوي او که په عذاب نه وه هغه به خپل پر حال پاته کیږي او دا هم کیدلای سی چه هغه زړې نمایندګی پر خپل حال پاته سی او طالبان په هغه نمایندګی کی خپل منشی مقرّر کړی او بیا هیئتو نه باندي مقررسی . یا یو بله داسی لار اختیار کړی چه د دواړه جانبه مصلحت وي هم د موټروان هم د نمایندګی والا یوازی به د یوه طرف نفع نه سنجوی او نه به دا کار حکومت د خپلی فائدي دپاره کوي او که هر څوک د یوه طرف ګټه په نظر کی وساتی یا حکومت خاص د خپلی استفادي په خاطر دا کار کوي نو دغه امر یی ناجائز او غیر شرعی دی مسئولیت د آخرت به د أمر کوونکی پر غاړه وي.

التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة ﴿المجلة المـ۵۸﴾ اتی بصیغة المصدر المحذوف فاعله لیفید التعمیم لکل من یلی امرا عاما یتعلق بالرعیة فیشمل السلطان و من قلده السلطان بذاته او بالواسطة و یشمل ایضًا الاوصیاء و متولی الاوقاف جمیعهم تناط تصرفاتهم العائدة لمن هم تحت ولایتهم بالمصلحة ای بمافیه نفع یعود الیهم والافتصرفهم غیر صحیح و لانافذ شرعا ﴿شرح المجلة للاتاسی صـ۱۴۲ج۱﴾ ای ان تصرف الراعی فی امور الرعیة یجب انیکون مبنیا علی المصلحة و مالایکون کذلک لایکون صحیحا و الرعیة هنا هی عموم الناس الذین هم تحت ولایة الولی ﴿دررالحکام صـ۵۷ج۱﴾

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دموټروان اونماینده ترمابین مال ورک سي ذمه وار څوک دي؟

**سوال**: حضورته د محترم رئيس صاحب شورای مرکزی مقام عالی رياست تميز السلام عليكم.

د سږ کال د روژې په ۲۵ تاريخ مي درې گونی تانونه د انتقال په خاطر د لښکرگاه و نمايندگی ته یوورل او ور تسليم می کړه او په لښکرگاه کی می معين ځای ورسره و ټاکی چه انتقال ئی کړی صباته زه هغه معين ځای ته چه ورغلم گونی ئې راتسليم کړی خولی ئې گنډلي وي چه د يوې گونی څخه شپږ تانه کښل سوي وو او نور تانونه خواره واره پکښې ځای پځای سوي وو چه د کښل سوو تانو ځای و نيسی نماينده وايي چه مامکمل مال و موټروان ته سپارلی او موټروان وايي چه دغه موجوده سربسته ما ته سپارل سوی او ما را رسولی دي موږ نه نماينده په خپلو سترگو ليدلی چه اخستی وي او نه موټروان موضوع مو ستاسی عالی مقام ته عرض کړه څرنگه چه د شريعت محمدی حکم وي او په هر يوه باندی زما حق کيږي امر راکړی چه هغه زما د تاوان سوي مال حقوق ما ته وسپاری په درناوی؟

**(المستفتی محمود)**

**جواب**: دغه مستفتي که چيری د نمايندگی والا تصديق کاوه چه تاواقعًا شيان پوره موټروان ته ورکړی دی خو موټروان پوره نه دی را ته تسليم کړی نو موټروان ته به قسم اينبوول کيږي او که يی د نمايندگی والا تصديق نه کاوه بلکه تکذيب يی کاوه نو بيا به نمايندگی والا ته قسم اينبوول کيږي که يی قسم واخستی نو ذمه يی فارغه ده او مستفتي مجبوره دی چه يا به د نمايندگی والا تصديق کوي يا به يی تکذيب کوي او داسی مجهول به يی نه پريږدي ځکه د دعوی د صحت د شروطو څخه يو دا دی چه مدعی عليه به متعين وي.

يشترط ان يكون المدعى عليه معلوما فاذا قال المدعى لى على واحد لاعلى التعين..... مقدار كذا لاتصح دعواه و يلزمه تعيين المدعى عليه ( المجلة المـ۱۶۱۷ ) اذا امر صاحب الو ديعة المودع بالدفع الى رجل بعينه فقال دفعتها اليه و قال ذلک الرجل لم إقبضها منک و قال رب الو ديعة لم تدفع اليه ايها المودع فالقول قول المودع فى حق براء ته عن الضمان لافى حق ايجاب الضمان على المدفوع اليه كذافي الظهيرية ( الفتاوى الهندية صـ۳۵۸ج ۴ ) و تجب اليمين على احدهما لاعليهما لانه لابد للمؤكل من تصديق احدهما و تكذيب الاخر فيحلف المكذب منهما دون المصدق ( بدائع الصنائع صـ۳۴ج۶ ) و كذلک لو اودع ماله رجلاً و امره ان يدفع الوديعة الى فلان فقال المودع دفعت و كذبه فلان فهو على التفصيل الذى ذكرنا ( اى فى المؤكل ) ( بدائع الصنائع ضـ۳۴ج ۶ ). والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که په تقسیم کي دیوه ورور برخه کمه وي**

**دده له وفات وروسته دده زامن په اکاډپوره حق دعوی کولای سي کنه؟**

**سوال**: و حضورته د علماء کرامو د دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

وبعد: عرض دا دي چه یو شخص وفات سی او د هغه ورثه تقسیم بالرضاء وکړی د مذکور میت وارثان یا د وارثانو وارثان بیا حق د نوی تقسیم لري کیا؟مثلاً دوو ۲ ورونو د یو شباروز اوبه داسی تقسیم کړی دی یوه ورور په خپله رضا پردوه نیم ساعته اوبو قناعت کړیدی هغه باقی ئی بل ورور ته ورکړیدی اوس مذکور دوه نیم ساعته والا وفات سویدی د هغه زامن و خپل اکا ته وایي چه زمونږ د پلار حصه د اوبو کمه ده مونږ نوی تقسیم درڅخه غواړو ؟ ( المستفتی سید علی شیخ )

**جواب**: هر کله چه تقسیم بالرضاء وسی او بیا یو طرف دعوی د غبن فاحش کوی نو دوه ۲ صورته لري یو ۱ دا دی چه دغه دعوی کونکی د دعوی څه تر مخه دا اقرار کړی وي چه ماته خپل حق پوره رسیدلی دی یا ئی جانب مقابل ته ابراء ورکړی وي یا ئی مالکانه تصرف

پکښی کړی وي سره د اطلاع پر غبن فاحش باندي پدي صورت کی دعوی د غبن فاحش نه صحيح کيږي او نه نوی تقسيم کيږي هغه پخوانی تقسيم معتبر دی . دوهم . دا دی چه دغه دعوی کونکی دغسی اقرار يا ابراء يا مالکانه تصرف نوی کړی بيا ئی دغه دعوی صحيح کيږي . نو دا چه تا په خپله استفتاء کی ليکلی دی چه دغه يوه ورور پخپله رضا دغه تقسيم کړی دی او هم ئی قناعت کړی دی او باقی ئی خپل ورور ته ورکړی دی نو د دي څه دا معلوميږي چه پخپله مورث هم حق د دعوی نه درلودی نو وارثان ئی په طريق اولی نه لري لکه څنگه چه د لفظ څه د قناعت کولو او ورور ته د باقی حصی ورکولو واضح معلوميږي.

اذا ظهر غبن فی القسمة فاحش انکانت القسمة بقضاء القاضی تبطل عند الکل و انکانت بالتراضی اختلفوا فيه اذالقسمة بالتراضی آکد منها بقضاء القاضی . . . . . قال شارحه فی منحه بعد ما نقل الخلاف و الصحيح المعتمد ما قدمناه عن الکافي و قاضيخان و به جزم اصحاب المتون و صححه اصحاب الشروح و به افتيت مراراً . . . . . وهذا کله اذا لم يقر بالاستيفاء او الابراء و اما اذا اقر بالاستيفاء اوالابراء او شهد شاهدان علی ذلک لم تصح دعواه کما ذکر فی نقد الفتاوی کما نقله الانقروری فی فتاواه من القسمة ( فتاوی تنقيح حامدية ص۱۷۵ج ۲ ) و تسمع دعوی الغبن الفاحش ان لم يقر المدعی باستيفاء حقه فان اقر باستيفاء حقه لاتسمع دعوی الغبن ( الفقه الاسلامی ص۶۸۸ج ۵) هکذافی ( الفتاوی الهندية ص۲۲۶ج ۵ ) و ( الدرالمختار وردالمحتار ص۱۸۷ج ۵ ) .

يصح ان يکون احد الورثة خصما فی الدعوی التی تقام علی الميت اوله ( المجلة الم۱۶۴۲ ) و يفهم من ذکر الغبن بصورة مطلقة ان الغبن سواء کان فی القيمة . . . . . او کانت عين احد الطرفين اکثر من عين الاخر من جهة الزرع او الوزن او العدد و يکون ذلک فی المذروعات و الموزونات و المعدودات ای انه يشمل جميع هؤلاء ( دررالحکام ص۱۱۹ج ۳ ) و يفهم من هذه الايضاحات انه لايشترط فی دعوی الغبن الفاحش فی القسمة و جود التغرير کما فی البيع ( دررالحکام ص۱۲۰ج ۳ ) اما اذا ادعی المقسوم لهم دعوی الغبن الفاحش بعد

اقرارهم باستیفاء الحق بعد القسمة او بعد الابراء او بعد الاطلاع علی الغبن الفاحش و التصرف بالحصة بعد ذلک علی ماهو مذکور فی المادة ۳۵۹ تصرف الملاک لاتسمع الدعوی ( ردالمحتار ) ولاتنتقض القسمة ﴿ دررالحکام صـ۱۲۱ج۳ ﴾ المشتری الذی حصل له تغریر اذا اطلع علی الغبن الفاحش ثم تصرف فی المبیع تصرف الملاک سقط حق فسخه ﴿المجلة الم۳۵۹﴾ یتضمن الصلح احد معان ستة هی مایأتی ....... ۲ صلح بمعنی الهبة وهو ان یدعی الرجل عینا فی یدرجل ثم یصالح عنها علی بعضها فیکون الباقی هبة ﴿ الفقه الاسلامی صـ۲۹۸ج ۵ ﴾ .

( **تنبیه** ) : دا هم کیدلای سی چه دغه یو ورور دی هغه باقی حصه د اوبو خپل ورور ته هبه کړی وي نو داچه واهب اوس وفات سی دی نو ورثه ئی حق درجوع نلري پر موهوب له باندي لکه څنګه چی د فقهاء کرامو د عباراتو څه واضح ده. والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## له کوموسیموچې دولت مالونه بند کړي وي اوخلګ ئې په قاچاق وړي که دغه خلګ یائې مالونه ونیول سي څه حکم لري؟

**سوال**: په کندهار کی مرکزی دارالافتاء ته اسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

په غزنی او یا نورو ځایونو کي چه د هزارګانو علاقي ته غذائی او نور مواد بند دی اوس چه خلق ئی په قاچاق وړی او بیا د مسئولینو لخوا و نیول سی او بیا ئی غوښتنه کوي او یا ئی خاوند ورک سی تاسو فتوی راکړئ چه شرعًا څه و کړو مال استعمال کړو که یی رد کړو او که بل حکم لري دا باید ووایو چه قاچاقبر هم هزاره او هم پښتانه وی. ﴿امیرالمؤمنین﴾

**جواب**: هغه مالونه چه د قاچاقبرو څخه و نیول سی باید د دغه مالونو سره ډیر احتیاط وسی او باید ضائع نسی او خراب نسی او که یی مالکان معلوم وه خپلو مالکانو ته دي په محفوظه طریقه و سپارل سی او که یی مالکان نه وه معلوم نو جدّی کوشش باید وسی چه خپل مالکان یی پیدا سی او هغوئ ته و سپارل سی او که یی مالکان نه وي معلوم او سره د پوره کوشنه او اعلانونو بیا هم پیدا نسی او د پیدا کولو څخه یی مسئولین مأیوسه سوی وي بیا نو جائز ده چه بیت المال ته و سپارل سی د دغسی مالونو اخستل د خپلو مالکانو څخه تعزیر بالمال دی او تعزیر بالمال غیر جائز او حرام دی . دغه قاچاق برته دی پرته له مال

اخستلو په يو بله طريقه تعزير ورکول سی هر قسم تعزير چه د امام خوښ وي ځکه چه مخالفت او عدم اطاعة د امير جرم او گناه ده فاعل يی مستحق د تعزير دی.

وليس للامام ان يخرج شيئا من يد أحد الابحق ثابت معروف (ردالمحتار صـ۲۸۱ج ۳) فاذا حاز الشخص مالاً بطريق مشروع اصبح مختصًا به واختصاصه به يمكنه من الانتفاع به و التصرف فيه الا اذا وجد مانع شرعی يمنع من ذلک..... كما ان اختصاصه به يمنع الغير من الانتفاع به او التصرف فيه الا اذا وجد مسوغ شرعی يبيح له ذلک كولاية او وصاية او وكالة (الفقه الاسلامی صـ۵۷ج ۴) الغصب هو اخذ مال واحد و ضبطه بدون أذنه الخ و ما احسن ماعرفه به فی التنوير اذ قال هو ازالة يد محقة باثبات يد مبطلة فی مال متقوم محترم قابل للنقل بغير اذن مالكه لابخفية (شرح المجلة سليم باز صـ۴۸۵) (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۲۴ج ۵) الحال المساوی للغصب فی ازالة التصرف حكمه حكم الغصب (المجلة المـ۹۰۱)( ويجب ردعين المغصوب) لقوله ﷺ علی اليد ما أخذت حتی تردّ ولقوله عليه السلام لايحل لاحدكم ان يأخذ مال اخيه لاعبا ولاجادا او ان اخذه فليرده عليه زيلعی و ظاهره ان ردالعين هو الواجب الاصلی وهو الصحيح (ردالمحتار صـ۱۲۸ج ۵) لايجوز التعزير بأخذ المال فی الراجح عند الائمة لما فيه من تسليط الظلمة علی اخذ مال الناس فيأكلونه (الفقه الاسلامی صـ۲۰۱ج ۶) وافاد فی البزازية ان معنی التعزير بأخذ المال علی القول به امساک شئ من ماله عنه مدة لينزجر ثم يعيده الحاكم اليه لاأن يأخذه الحاكم لنفسه او بيت المال كما يتوهمه الظلمة اذلايجوزلاحد من المسلمين اخذ مال احد بغير سبب شرعی..... والحاصل ان المذهب عدم التعزير بأخذ المال (ردالمحتار صـ۱۹۵ج ۳) وليس فيه شئ مقدر وانما هو مفوضٌ الی رأی الامام علی ما تقتضی جنايتهم فان العقوبة فيه تختلف باختلاف الجناية (تبيين الحقائق صـ۲۰۸ج ۳) النوع الثالث الاموال التی تؤول ملكيتها للدولة من

الافراد او يكون للدولة عليها الولاية فالاولى مثل ما يؤول الى بيت المال كالاموال الضائعة اوالتى لاوارث لها لان بيت المال وارث من لاوارث له ( الفقه الاسلامی صد۵۲۳ج۵ )

( **نوټ** ) : دغه قاچاق بر که هزاره وي که پښتانه وي هغه یی حکم دی چه تیر سو ځکه چه دغه هزاره وو ته خو دغه مسئولینو اجازه ورکړیده چه را تیر سویدي او دا هل عدلو په مناطقو کی یی شیان رانیولی دي او بل دا چه دغه هزاره قاچاق بر په حالت کی د جنګ ندی نیول سوی نو عصمة د أموالو یی د مابین څه ندی تللی حتی که د جنګ په حال کی ونیول سی هم د دوی شخصی مال نه ځنی اخستل کیږي لکه چه وایی

وكذلك اهل العدل لا يضمنون ما اصابوا من دمائهم و اموالهم بسبب اسلامهم هكذافی الذخيرة فاما ما اصابو اقبل ذلک فهم ضامنون لذلک كذافی النهاية ( الفتاوی الهندية صد۲۸۴ج۲ ) . والله ﷻ تعالی اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دکونډې ، رضاعت اوشاهدی په اړه څومهمي پوښتنې اوجوابونه

**سوال**: محترما : څرنګه چه زموږ په ولسوالی او منطقه کی یوه ډیره مغلقه موضوع پیښه شویده او ډیر شدید اختلافات د خلګو او قومونو په منځ کی پیښ سول نو وروسته یی د دغې موضوع اختیارات موږ قومی مشرانو ته و سپارل نو د دې لپاره چه له یوه طرفه د خلګو حقوق ضایع نه سی او دبله طرفه زموږ څخه الهی مسئولیت بر طرفه سی نو ستاسو د محترم حضور څخه هیله کووچه موږ ته په یو څو مسائلو کی شرعی معلومات راکړئ ترڅو موږ د یوې موضوع د اسلامی اصولو سره مطابق حل او فصل کړو .

( **اول سوال** ) : که چیری یو شخص داسی ادعا وکړی چه پلانی کونډه ښځی په ما باندي ناره کړیده ، نو کله چه هغه کونډه ښځه د یو څو کسانو په حضور کی داسی ووایی چه زما دغه شخص نه میړه دی او نه یی میړه کوم او بل میړه په خپله خوښه انتخاب کړی نو په دې حصه کی د شریعت څه حکم دی ؟

( **دوهم سوال** ) : او که هغه شخص بیا دا ووایی چه دغه ښځه مخکی زما په نکاح وه نو دا دوهمه دعوه قابل د سماع ده او که نه ؟

(**دریم سوال**): او که د دغی کونډې ښځې پلار او کاکا د رضاعت شاهدي ووايي چه د کونډې مور د دغه ادعا کوونکی سړی و ښځی ته تی ورکړی دی چه اوس ژوندی ده نو د دغو دوو شاهدانو دغه ښځه د سابقه خسر او د ادعاکوونکی له سرایه و خپل کور ته بوتلل نو پدغه پورته عمل دی له شاهدی وزی او که نه؟

(**خلورم سوال**): که له یوه طرفه څخه د رضاعت شاهدان وی او له مقابل طرفه څخه د نکاح شاهدان وي نو د مقدم توب حق د کومو شاهدانو دی او د رضاعت د دعوی حق د چادی حق الله دی او که حق العبد دی شرعی حکم څه دی؟

(**پنځم سوال**): که چیری لومړی ادعا کوونکی سړی په ډیرو مجالسو کی ووایی چه دغه کونډه ښځه په ما باندي خور او مور ده او د دغو الفاظو شاهدان هم وي او بیا څه موده وروسته د نکاح کولو ادعا وکړی نو هغه لومړی خبری د طلاق معنی ورکوي او که نه؟

نو که په پورتنی پوښتنو کی تاسو مونږ ته شرعی معلومات راکړی نو دا به ستاسو د مهربانی عطف شفقت څخه لیری نه وي.

**جواب** د ټولو څه تر مخه باید په واضح ډول ووايو چه ښځه چه کونډه سی یا پیغله ښځه چه بالغه وي هغه د خپل اختیار ده هیڅ څوک نسی کولای چه د هغی بی له رضاء یی یا پخپله په نکاح کړی یا یی چا ته ورکړی او دا کار د هر چالپاره حرام قطعی دی که پلار وی که ورور وی که بل قریب وي د ښځی او هغه ښځه چه د هغی نکاح د دي بی له رضاء او اجازی وسی او دا بالغه وي نو نکاح یی باطله ده او په دي هکله د امیرالمؤمنین فرمان هم صادر سوی دی پر هر مسلمان لازمه ده چه د دغسی کار مخنیوی وکړی د خپل طاقت سره سم او د کونډی ښځی سکوت هم کافی ندی بلکه تصریح به کوی په خپله رضاء سره.

یاایها الذین امنوا لایحل لکم ان ترثوا النساء کرها (الایة سورة النساء آیة نمبر۱۹) ای تأخذوهن کما یؤخذ المیراث و تزوجوهن کارهات او مکرهات (تفسیر المظهری صـ۲۹ج۲) هکذافی (روح المعانی صـ۲۴۱ج۴) ان النبی ﷺ قال لاتنکح الایم حتی تستأمر ولاتنکح البکر حتی تستأذن الحدیث (بخاری شریف صـ۷۷۱ج۲) عن خنساء بنت خذام الانصاریة ان اباها زوجها وهی ثیب

فکرهت ذلک فاتت رسول الله ﷺ فردّنکاحها (بخاری شریف صـ۷۷۱ ج ۲) هکذافی (مشکاة المصابیح صـ۲۷۰) اما انکانت المرءة ثیبافرضاها لایکون الابالقول الصریح (الفقه الاسلامی صـ۲۱۳ج ۷) و (ردالمحتار صـ۳۲۶ج ۲).

## اوس به د سوالونو جوابونه په ترتیب سره ذکر کړو

**د اول سوال جواب:** نکاح عبارت ده د ایجاب او قبول څه په شرط د حضور د شاهدانو یوازی د ښځی په نعره کولو نکاح نه ثابتیږی او نه ښځه د سړی گرځی البته که ښځه راغله او ویی ویل چه دغه سړی زما میړه دی او سړی وویل چه ته زما قبوله ئی او په دغه حالت کی دوه ۲ نارینه نور یا یو نر او بل دوی ښځی موجودی وي او شرعی حرمت موجود نوو نو بیا دغه نکاح صحیح کیږي اوس چه نر دعوه کوی او ښځه انکار کوی نو نر به شاهدان تیر وي که شاهدان نوی نو ښځه به قسم اخلی که یی قسم واخستی بیا نو هر څوک چه دی انتخابوی هغه ته دی ورکول سی.

وینعقد بایجاب وقبول کلاهما بلفظ الماضی او احدهما..... و شرط سماع کل من العاقدین لفظ الاخر وحضور حرین او حر وحرتین الخ (متن مجمع الانهر صـ۳۱۷ج ۱) واما حکمها (ای الدعوی) فاستحقاق الجواب علی الخصم بنعم او لافان اقر ثبت المدعی به وان انکر یقول القاضی للمدعی الک بینة فان قال لایقول لک یمینه (الفتاوی الهندیة صـ۳ج ۴).

**د دوهم سوال جواب:** د دغه سړی د دواړو دعوُو تر مابین فعلاً داسی تناقض ندی موجود چه مانع ذ سمع د دعوی سی ولی د تناقض شرط دا دی چه دواړی دعوی به په مجلس کی د قاضی سوی وي یا به یوازی دوهمه دعوی د قاضی په حضور کی وي او د اولی دعوی شاهدان به قاضی ته تیریږي هغه به یی قبلوی او که هر وقت دغه شرط هم موجود سو او د قاضی په حضور کی یی دعوی د پخوانی نکاح وکړه او بیا شاهدان تیر سوه چه ده دعوی د نعره کولو د ښځی کړی ده نو دا واقعًا تناقض دی نو که دغه مدعی د خپلو دوو دعوو تر مابین موافقه په یو وجه د وجوه ممکنة رانه وستی دوهمه دعوی یی غیر مسموع ده او اوله

دعوی چه د ښځی د نعره کولو ده هغه مسموع ده پر هغه باندې به دی شاهدان تیر وي یا به ښځه قسم اخلی.

التناقض هو سبق كلام من المدعى مناقض لدعواه ای سبق كلام منه موجب لبطلان دعواه ( المجلة المـ١٦١٥ ) و هل يشترط كون الكلامين المتناقضين عند القاضى او الثانى فقط و يحتاج الى اثبات الاول عند القاضى ليدفع به دعوى المدعى فيه خلاف قال فى الدرالمختار عن البحر و ينبغى ترجيح الثانى لان به التناقض آه ( سليم باز صـ٩٠٨ ) كذلك اذا ثبت للقاضى بان المدعى قد تكلم كلاما فى غير مجلس القاضى منا فيا للدعوى التى اقامها امامه فيكون ذلك تناقضا ايضًا ( دررالحكام شرح مجلة الاحكام صـ١٧٦ج ۴ ) اى لو امكن توفيق الكلامين الذين يريان متناقضين و وفقهما المدعى ايضًا يرتفع التناقض الخ ( المجلة المـ١٦٥٧ ) اى لو امكن توفيق الكلامين الذين يريان متنا قضين ولم يوفقهما المدعى بالفعل فلا يرتفع التناقض استحسانا و على القول الاصح ( دررالحكام صـ٢٨۴ج ۴ ) اذا حصل تناقض بين دعويين فتكون الدعوى الثانية مردودة و لكن للمدعى ان يعقب دعواه الاولى لان الدعوى الثانية لم تستمع بسبب ظهور كذبها اما الدعوى الاولى فلم يظهر كذبها ( دررالحكام صـ٢٧٠ج ۴ ).

**د دريم سوال جواب**: هغه عداوة چه د هغه په سبب شهادة رديږي د هغه تعريف دا دی چه دغه خصم به د مدعی علیه یا مشهود علیه په خوشحالی خفه کیږي او په غم به یی خوشحاله کیږي او بعضی علماء وایی چه د دغه خصم څه به داسی افعال صادر سوی وي چه هغه سره د ده عدالة ساقط سی نو د غیر عادل شاهدی نه قبلیږي او دغه مشهود علیه به دغه عداوة پر دغه مذکوره طریقو باندې په شرعی ثبوتاتو ثابتوی یوازی په دعوی د عداوة د هغه شاهدی نه ردیږي او دا چه ښځه خپل پلار یا اکا بیولی وي خپل کورته په داسی حالت چه کونده وي او په حالت کی د عدّی هم نوی نو په دې فعل سره نه عداوة ثابتیږي نه عدالت ساقطیږي ولی دا شرعًا یو جائز فعل دی.

والعدو من يفرح بحزنه لفرحه كما فى البحر و الخصومة اذا جرت بين المدعى والمدعى عليه بغير حق فهى دنيوية ( تنقيح الحامدية صـ٣٣٣ج١ پاكستان ) ونقل فى القنية ان العداوة بسبب الدنيا تمنع مالم يفسق بسببها اويجلب منفعة اويدفع بها عن نفسه مضرة وهو الصحيح وعليه الاعتماد ( تنقيح الحامدية صـ٣٣٤ج١ پاكستان ) والعداوة الدنيويةهى العداوة التى تنشأ عن اموركالمال والجاه وتعرف بالعرف فلذلك لاتقبل شهادة المجروح على الجارح وورثة المقتول على القاتل والمقذوف على القاذف والمشتوم على الشاتم الخ ( دررالحكام شرح مجلة الحكام صـ٤٠٢ج٤ ) ذكر فى البحر عن ابن وهبان لوادعى شخص عداوة آخر يكون بمجرد دعواه اعترافامنه بفسق نفسه ولا يكون ذلك قادحا فى عدالة الشاهد انه عدو مالم يثبت المدعى انه عدوله . . . . . و الظاهر ان كيفية اثبات كونه عدوّاله ان يثبت السبب الذى تثبت به العداوة بحكم العرف ( شرح المجلة للاتاسى صـ٢٧٣ ج ٥ ) هكذافى ( تنقيح الحامدية صـ٣٣٣ج١ ) لو قال المشهود عليه انه يوجد بينى و بين هؤلاء الشهود عداوة دنيوية و لم يبين سببها فلا يطرء خلل على شهادتهم ( دررالحكام صـ٤٠٣ج٤ )

**د خلورم سوال جواب**: رضاع د حقوق الله د انواعو څه ده او دعوی يی مقدمه ده ترنكاح يعنی كه د رضاع شاهدان تير سوه نو د نكاح شاهدانو ته التفات نه كيږي.

ويجب الاداء بلا طلب لو الشهادة فى حقوق الله تعالى وهو كثيرة عدّ منها فى الاشباه اربعة عشر قال ومتى اخر شاهدا الحسبة شهادته بلا عذر فسق فترد كطلاق امرءة اى بائنا وعتق امة و تدبيرها و كذا عتق عبد و تدبيره شرح وهبانية وكذ الرضاع كما مرفى بابه ( الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ٣٧٠ج ٤ بيروت ) .

ولو شهد رجلان عدلان او رجل و امرء تان بعد النكاح عندها لايسعها المقام مع الزوج لان هذه شهادة لو قامت عند القاضي يثبت الرضاع فكذا اذا قامت عندها كذافي فتاوی قاضیخان (الفتاوى الهندية صـ۳۴۷ج۱).

**د پنځم سوال جواب**: دا خبره چه دغه کونده ښځه په ما باندی خورا و مورده په دغه لفظ سره ظهار نه واقع کیږي ولی ظهار چه ملک یا سبب ته د ملک یی اضافة نوی سوی نو پر اجنبية نه واقع کیږي.

باب الظهار - تشبيه المسلم زوجته او جزء شائع منها بمحرّم عليه تأبيدا (متن الدرالمختار) قوله زوجته شمل الامة وخرجت مملوكته والاجنبية الا اذا اضافه الى سبب الملك كما سيأتي (ردالمختار صـ۵۷۴ج۲ بيروت)

والله ﷻ تعالی اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دغصب په مالونوکي دغصب دورځې

## قيمت معتبرده که دنن؟ که دغصب دورځې وي اوهغه مثلاً افغانۍ بې ارزښته وي نودهغه وخت دپیسوخارجی معادل نن هم کیدای سي کنه؟

**سوال**: محترما. بشما علماء متبحر وجید کشور عزیز ما بهتر معلوم است که در طی اضافه از پانزده سال جنگ های خانمان سوز که در وطن ما افغانستان جریان داشته وبوقوع پیوسته است — دارائی و مواشی اهالی و مردم ما خصوصاً درسمت شمال کشور اکثراً بتاراج بُرده شده وچور وچپاول گردیده است که بصراحت گفته می توانم که بشکل دسته جمعی رمه ها وگله های بزوگو سفندان مردم به این طرز غصب شده است وحالا که نظام آلهی و شریعت غرای محمدي ﷺ از اثر فیض وبرکت تحریک اسلامی طلبای افغانستان درآن ساحات قایم وجاری گردیده است — این دعاوی حقوقی به کثرت در ولایات مذکور اقامه شده و مردم خواهان اعادهٔ حقوق مسلم و شرعی خویش شده اند که این معضله ها و وقایع - مشکلات فراوان رابین شورای علماء و محاکم ولایات سمت مذکور ایجاد نموده است بدین معنی که اکثر علماء بدین قول وفتوی شرعی می باشند که ضمان یوم الغصب مُعتبر است یعنی همان مال و مواشی غصب شده بدراهم ودنانیر سنجیده شده - فعلاً بشکل فلوس مروج امروزی

